# دَ
# خیرالبیان
# تنقیدی مُطالعه

ترتیب او مقدمه

قلندر مومند

# دَ خیرالبیان

# تنقیدی مُطالعه



قلندر مومند



دَ چاپ ځائ
پېښور

اشاعت ———— اول

کال ———— ۱۹۸۸ء

شمیر ———— یوزر (۱۰۰۰)

لیک ———— انوارالحق داؤدزے

چاپونکی ———— دَ چاپ ځائې

اوخورونکی کوهاټ روډ پېښور

# انتساب

دَ خپل والد محترم

## صاحبزاده سيف الرحمنؒ

په نامه چې زه ئې په ورومبى ځل دَ
بايزيد روښان له اهميته خبر کړم

الهم اغفره

# فهرس

## هوالناصر

دَ "خيرالبيان" دا نوے ترتيب په څنو لوستونکيو ته اجنبي وښکاري ځکه

چې دا دَ پښتو اکيډيمۍ دَ هغه چاپ شوی خيرالبيان سره سمون نه خوري چې

دَ مولينا عبدالقدوس صاحب دَ مقدمې او حاشيو سره چاپ شوے دے او نه

دَ کابل دَ چاپ هغه نسخې سره مطابقت لري چې دَ اصل متن تصويري نقل

دے او دَ محترمو عبدالحئ حبيبي (مرحوم) او پروفيسر عبدالشکور رشاد پرې

په ترتيب مقدمه او لغت نامه ليکلې ده. دا نسخه له دغو دواړو نسخو نه

اخذ شوے يو دريم قرأت دے. چې زما دَ تحقيق مطابق اصل خيرالبيان دَ دے

زه دې نسخې ته چې دَ کومو دلائلو په بنا اصل خيرالبيان وايم هغه دا دي:

۱:- دَ خيرالبيان په باره کښې عامه عقيده چې دَ خيرالبيان له څنو حصو

دَ حالنامې له څنو بيانونو او دَ اخون درويزه له الزامانو ثابتيږي دا ده چې دَ

بايزيد روښان او دَ هغه دَ منونکيو په خيال دا يو الهامي کتاب دے. دَ الهامي

کتاب دَ عظمت او دَ " من جانب الله" کيدو تقاضا دا ده چې ټول کتاب له

خدايه وګڼلے شي. ولې دَ پېښور او کابل چاپي نسخو کښې دَ احاديثو دَ حضرت علیؓ

دَ ارشاداتو دَ هادي (بايزيد روښان) دَ وېناګانو، دَ عبدالقادر جيلانیؒ او محمدالدينوري

دَ حوالو دَ موجودګۍ په وجه ئې دا حيثيت مجروحيږي او ځکه دَ دې خبرې ډېر

اعتبار نه شي کيدے چې يو خوا خو دې دَ کتاب دَ خدائ له طرفه ګڼلے شي

او بل خوا دې "خدائ" دَ خپلې خبرې دَ دليل دَ پاره دَ بندګانو دَ مقولو

محتاج وي.

۲- بايزيد روښان دَ خپل يو بل تصنيف "مقصودالمومنين" دَ تاليف وجه

دا ښئ :" قال لی ابنی الشيخ عمر رضی الله عنه ان کان رضاك اکتب لاجل

ابنائك و اهلك و عيالك من ايات القرآن و احاديث الانبياء و اقوال الاولياء نصيحة ثم اجبتُ قولَه و أُريد ان اكتبها مفصلًا بمقدار علمي و ادراكي بالعناية و بالمدد و بتوفيق الله تعالیٰ في واحد و عشرين فصلًا و سميتها "مقصودالمومنين" [1]

ترجمه - ماته زما خوږ شيخ عمر ووئيل چې که ستا خوښه وی نو دَ خپلو ځامنو او اهل و عيال دَ پاره دَ قرآن او دَ نبيانو له احاديثو او دَ وليانو له اقوالو څخه نصيحت وليکه نو ما ئې دا خبره ومنله او اراده مې وکړه چې دَ خپل علم او ادراک په مقدار او دَ خدائې پاک په مهربانئ مدد او توفيق په يويشت فصله مشتمل يو کتاب وليکم او نامه مې ئې "مقصودالمومنين" کښېښوه."

دَ "مقصود المومنين" په حقله دا رائے هيڅ هم نه ده پېش کړې چې دا دَ "خيرالبيان" نه مخکښې ليکلے شوے کتاب دے بلکې دَ مؤرخينو او ليکونکيو په دې کامل اتفاق دے چې خيرالبيان اګاهو او مقصودالمومنين ورپسې ليکلے شوے دے نو که دَ پېښور او دَ کابل دا چاپي نسخې په رښتيا هغه خيرالبيان دے چې پير روښان ليکلے وو نو بيا خو دَ مقصود المومنين دَ ليکلو ضرورت نه وو ځکه چې دَ قرآن کريم په ايتونو په احاديثو او دَ اولياؤ په اقوالو مشتمل دَ نصيحت کتاب خو دَ دغه خيرالبيان په شکل کښې له اګاهو نه موجود وه - له دې نه دا صفا ښکاری او دَ بل دليل ضرورت بالکل ختموی چې دَ اصل خيرالبيان په متن کښې دَ قرآن کريم ايتونه، احاديث او دَ اولياؤ اقوال نه وو - او هر کله چې موجوده چاپي نسخو کښې دا شته نو دا خيرالبيان اصل خيرالبيان نه دے - لکه څنګه چې دَ دې مضمون په آخر کښې دَ شاملو ضميمو ا ب او ج نه به ښکاره شی دَ خيرالبيان

[1] مقصود المومنين - ص - ۱۲۹ - ۱۲۸

او مقصود المومنین ترمځه ډېر اینونه او احادیث مشترک دی دغسې دَ کومو اولیاؤ ذکر چې په مقصود المومنین کښې دے هغو کښې دَ څلورو پینځو اولیاؤ مقولې خیرالبیان کښې هم شته او دَ مزې خبره دا ده چې څلور حوالې[خو] خیرالبیان کښې کټ مټ هم هغه دی چې مقصود المومنین کښې هم راغلې دی.

۳- چاپی او عکسی نسخو کښې "خیرالبیان" دَ رسم الخط دَ بحث نه پس شروع کیږی او ابتدا ئې له بسم الله الرحمٰن الرحیم نه کیږی چې وړیسې دَ کتاب دَ نوم په حیثیت "تفسیر" لیکلے شوے دے[۱]- ځکه نو دا قیاس وزن لری چې دَ "تفسیر" دَ لفظ نه پس ته لیکلے کتاب خیرالبیان نه بلکې دَ خیرالبیان تفسیر دے. دَ دې قیاس تائید له دې حقیقته هم کیږی چې په ذکر شوې صفحه دَ عربۍ دَ عبارت "کل امر ذی بال لم یبدأ باسم الله فهو اجر قال النبی علیه السلام- کلمة بسم الله..... قال علی رحمه الله علیه هذا الکلام"[۲] ترجمه نه په فارسۍ کښې شوې ده او نه په پښتو کښې- او دا څیز دَ دې ثبوت دے چې دا تمهیدی کلمات دَ "مفسّر" له خوا دی- له "خدایه" نه دی- او چې دا سره ومنو نو بیا به دا خامخا منو چې دَ پېښور چاپی او دَ کابل عکسی نسخه خیرالبیان نه بلکې دَ "خیرالبیان" تفسیر دے.

۴- په کتاب کښې چې په وړومبی ځل "قال هادی رحمة الله علیه هذا الکلام"[۳] راغلے دے نو فاضل حاشیه نګار دَ جُملې نحوی غلطیو ته دَ اشارې نه پس وائی- یرید به، نفسه، کان الکتاب من امالیه و کتبه بعض تلامذته-[۴] یعنی دَ "قال هادی رحمة الله علیه" (وائی هادیؒ) نه ئې مطلب خپل ځان دے- داسې ښکاری چې دا کتاب دَ هغه له امالی ځخه دے او دَ

[۱] چاپی نسخه پېښور ص- ۴- عکسی نسخه کابل ص- ۵- ب- [۲] پېښور چاپ ص۴- کابل عکسی چاپ ص ۵ ب او ۶ ا- [۳] پېښور چاپ ص- ۵- کابل عکسی چاپ ص-۶ا
[۴] لکه دَ نوټ [۳].

هغه ځنو شاګردانو لیکلے دے". دَ مولینا عبدالقدوس قاسمی له دې حاشیې نه دا ښکاری چې په اول اول کښې دَ فاضل حاشیه نګار وائی هم دا وه چې دا کتاب هغه "الهامی" خیرالبیان نه دے چې بایزید روښان باندې "نازل" شوے وه بلکې دا دَ هغه املا ده چې خپلو شاګردانو ته ئې وئیلې وه او بیا هغو لیکلې وه. دَ "هادی رحمة الله علیه" په واحد غائب کښې دَ ذکر نه هم دا معنیٰ جوتېده نو خدائې خبر چې بیا دَ کومو دلائلو په بنیاد حافظ عبدالقدوس قاسمی صاحب خپله رائې بدله کړه.

۵- دَ خیرالبیان په باره کښې دَ کتاب له نصه دا واضحېږی چې خیرالبیان دَ سورۂ الرحمٰن په انداز لیکلے شوے دے لکه چې بایزید ته حکم کېږی." او بایزید وکښه خیرالبیان په هغه هسې الحان چې ئې به لوست سورة الرحمٰن[1]." ولې عجیبه خبره دا ده چې دَ دې "خدائی حکم" نه محکښې هم کتاب هم په دغه "الحان" لیکلے شوے وه او دَ پېښور دَ چاپ په دیارلسو او دَ عکسی نسخې په یولسو مخونو کښې دَ دې حکم دَ صادرېدو نه اګاهو دَ دې حکم پېروی شوې ده. له دې نه دا څرګندېږی چې په کتاب کښې ځائې په ځائې دَ سورة الرحمٰن دَ طرز تتبع کښې "په قران کښې دی عیان، په قران کښې دی بیان، نبی وئیلی دی علیه السلام، هادی وئیلی دی رحمت دَ خدائې په دغه دا کلام، عیان، او تمام "غندې ترکیبونه او الفاظ دَ دې خبرې دلیل نه شی کېدے چې هر کله دا الفاظ دَ سورة الرحمٰن په "الحان" دی ځکه نو دا دَ خیرالبیان اصلی الفاظ دی. او دَ دیو په بنیاد دَ پېښور او کابل چاپې او عکسی نسخې دَ خیرالبیان اصل نسخې دی.

۶- دَ خیرالبیان په دوارو نسخو کښې یوه بله خبره هم ډېر اهمیت لری

---

[1] پېښور ص-۱۳- کابل ص-۱۱ الف

کتاب دوې ځله د "بسم الله الرحمٰن الرحیم" له ښکو شروع کیږی یعنی کتاب په اصل کښې دوه حصې لری یوه حصه ئې په څلورو صفحو د چاپ او ۵ ب د عکسی نسخې مشتمله ده او پکښې صرف د رسم الخط بحث شوے دے او بله حصه ئې له دغه پس ده چې په اصل کښې له دغه ځایه د "خیرالبیان" سره متعلقه حصه شروع کیږی او د تمهیدی بسم الله نه پس یو ځل بیا د "بدایة الکتاب" نه مخکښې بسم الله الرحمٰن الرحیم لیکلے شوی دی۔ له دیو معروضاتو نه زما مقصد دا دے چې د کتاب وړومبۍ حصه خو پخپله "بسم الله الرحمٰن الرحیم" د دریو ځلو د لیکلو په وجه د "خیرالبیان" له تعریفه ووځی۔

۷- اخون درویزه د خیرالبیان په حقله لیکی:-

"*این ملعون کتابے را تصنیف کرده بعض کلمات او را بزبان عربی بلا ادراک ترکیب و ترتیب جمع آورده و بعضے را بزبان فارسی و بعضے را بزبان افغانی و بعضے را بزبان هندی اما هر کدام ازین کلمات ناموزون و ناموافق افتاده بحدے که طبائع اهل علم ازآن متنفر میگردد و آن را خیرالبیان نام برده و چوں مملو از کفر و الحاد و مشحون از افترا و فساد بوده فقیر آنرا شرالبیان نامیده و اگر خر بیان نامند هم مناسب است۔ او دعوے نموده که این بر وفق مدعائے من از جانب الله تعالیٰ نزول یافته*"۔ [1]

ترجمه:- او دې ملعون یو کتاب لیکلے دے چې څه ټکی ئې د ترکیب او ترتیب د پوهېدو نه بغیر په عربۍ کښې راجمع کړی، څه ئې په فارسۍ کښې او څه ئې په پښتو کښې او څه ئې په هندۍ کښې راجمع کړی دی۔ ولې دا ټول ټکی ناموزونه او ناموافقه دی تر دې حده چې د عالمانو

---

[1] تذکرة الابرار والاشرار ص- ۱۴۸- د مولینا عبدالقدوس صاحب د مقدمې د ص-۲۰ ۵ په حاشیه دا عبارت د تذکرة الابرار د ص ۳۹۴ په حواله درج دے- خو زما د وړاندې تذکرة الابرار تولې صفحې ۲۴۸ دی۔

طبعیتونه تري کړکه کوی او دغه (کتاب) ته يې نوم خیرالبیان ایښے دے او هر کله چې دَ کفر او الحاد نه ډک او په افترا او فساد پُور دے نو فقیر (درویزه) پرې نوم شرالبیان ایښے دے - او که خربیان ورته ووئیلے شي نو هم مناسب دی. دَ ده دا دعوی ده چې دا زما دَ مدعا سره سم دَ خدائې تعالیٰ له جانبه نازل شوے دے"

دَ اخون درویزه له بیانه دا معلومیږی چې دې کتاب کښې بایزید روښان خپل "ناموزونه" او "ناموافقه" ټکی راغُنډ کړی دی. که چرې په دې کتاب کښې دَ قران کریم ایتونه، احادیث او دَ اولیاؤ اقوال وے نو اخون درویزه به دا خامخا لیکل او په دغه صورت کښې به دَ اخون درویزه غندې "سخت گیر" عالم هیچری هم خیرالبیان ته دَ "شرالبیان" یا "خربیان" نوم نه وے ورکړے. ځکه چې اخون درویزه په دې هم سړے کافر کوی چې دا ووائی چې "زه مومن یم انشاء الله تعالیٰ"[1] نو دَ قران کریم ایات او احادیث نبوی لرونکی کتاب ته يې داسې نسبت څه رنګه کولے شو او ځکه دا خبره دَ اخون درویزه دَ عقیدې او عمل نه ډیره غیراغلبه ده چې دومره لویه گستاخی ترې صادره شي. دَ دې دلیل په رڼا کښې یو ځل بیا مونږ دا وئیلے شو چې په اصل خیرالبیان کښې دَ قران کریم ایتونه او احادیث نه وو او هر کله چې دَ پیښور او کابل نسخې دا لری نو ځکه دا دَ هغه خیرالبیان نسخې نه دی چې اخون درویزه لیدلے وه -

۸- دَ اخون درویزه نه پس چې کوم لیکونکی خیرالبیان غندلے دے هغه خوشحال خان ختک دے - په سوات نامه کښې خوشحال بابا وائی:-

دَ روښان خیرالبیان يې وه لیدلے
هغه هم مجهول بیان وه ناپسند لے[2]

---

[1] تذکرۃ الابرار - ص- ۱۴۸ - [2] تاریخ مرصع دَ افضل خان ختک -

دلته خوشحال بابا دَ مخزن غندې خېرالبیان هم مجهول گڼی خو دَ "نا پسندلی" لفظ پرې زیاتوی او لهٔ دې هم دا ښکاری چې کوم خېرالبیان دَ خوشحال بابا لهٔ نظره تېر شوے وهٔ هغهٔ کښې دَ قرآن کریم ایتونه او دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم احادیث مُبارک نهٔ وو گڼی دَ خوشحال بابا غندې دینی شعور لرونکی شخصیّت به هیچرې دا لفظ خېرالبیان دَ پاره نهٔ وهٔ استعمال کړے۔

۹۔ دَ خېرالبیان دَ چاپی او عکسی نسخو عبارت بخپله هم دا شهادت ورکوی چې دَ قرآن کریم ایتونه، احادیث او دَ "هادی" اقوال دَ عبارت پهٔ مینځ کښې رانښویستی شوی دی۔ دَ مثال پهٔ طور دا عبارت ولولئ :-

"او بایزیده۔زهٔ به دَ خپلې فرښتې وته کړم فرمان چې نهٔ کښې تپه دَ بدکاران لهٔ تپې دَ نیکوکاران ادمیان۔ و کل شیءٍ فضلناهُ تفصیلاً (وهرچیزے راعیان کردیم بیان کردنی) پهٔ قرآن کښې دی عیان۔

ان الله یفرق الناس یوم القیامة بسبب خصالهم عیان (بتحقیق الله تعالیٰ جدا می کند ادمیان را در روز قیامت بسبب خصلتهائے ایشان۔ هادی وئیلی دی دے رحمت دَ خدائ پهٔ دهٔ دا کلام۔

بیا به دَ خپلې فرښتې وته کړم فرمان چې وخېژوی وبلندیهٔ وته نیکوکاران الخ۔[1]

اوس تاسو وگورئ چې دَ دې حوالې دَ پښتو ورومبے عبارت او وروستے عبارت بالکل پهٔ مصنوعی طریقه لهٔ یوه بله جدا شوے او منځکښې ئې عربی او فارسی عبارت ننویستے شوے دے۔

اوس یوه بله حواله وگورئ۔

" ماته نهٔ شی فرض روژه نهٔ نفل کهٔ پهٔ وهېره ځهٔ وخوری یا وڅښی یا صحبت کا یا واچوی بېرون پهٔ قصد، نه چې ئې غلط کا شیطان۔

---

[1] خېرالبیان۔ پېښور چاپ ص-۶۸ کابل- ص ۴۲-ب۔

وَ ما کان رَبُّكَ نسیًّا په قران کښې دی عیان۔

انسیان موکل علی الانسان نبی وئیلی دی علیه السلام۔

چې په قصد واچوی روژه ئې ماته شی یو دې قضا ولری ولې کفاره پرې واجبه نه شی په تا دې وی اعلام[1]۔

او دا هم ولولئ۔

"که علت نه وی په اسمان گواهی دې نه قبلوی امام بیرون دَ ډېر ادمیان۔

وَ اَوْفُوْا بِعَهْدِ اللهِ اِذا عاهَدْتُمْ وَ لَا تَنْقُضُوْا الْاَیْمَانَ په قران کښې دی بیان۔

اَلْوفاءُ بِعَهْدِ الرحمٰن شَرْطٌ لِلْاِنْسانِ هادی وئیلے دے رحمت دَ خدائې په دهٔ دا کلام۔

که دَ کم عیب میاشت یو کس ووینی روژه دې نه کښائی که علت وی په اسمان عیان[2]۔

دا حوالې ما دَ دوئ دَ اختصار په وجه رانقل کړې گنې ټول کتاب دَ داسې عبارتونو نه ډک دے چې تسلسل ئې دَ فارسی او عربی دَ عبارت په وجه ماتیږی او که دا فارسی او عربی عبارتونه دَ پښتو دَ عبارتونو له منځه وویستے شی نو عبارت معنیٰ دار او بې تکلفه شی۔ ځکه نو دا دعویٰ به صریحًا بې بنیاده نه وی چې دَ پېښور او کابل چاپ خیرالبیان کښې ځنې عبارتونه له بهره داخل کړے شوی دی او له دغې وجې دغه نسخې دَ خیرالبیان اصل نسخې نه پاتې کیږی۔

۱۰- دَ پېښور چاپ دَ خیرالبیان دَ نسخې په مقدمه کښې مولینا عبدالقدوس صاحب دَ دبستان مذاهب دا عبارت رانقل کړے دے:-

---

[1] خیرالبیان پېښور ص ۱۶۵- ۱۶۴- کابل- ۹۸ الف- ۹۸ ب-
[2] خیرالبیان پېښور ص ۱۷۱- کابل ص- ۱۰۱ الف-

او را تصانیف بسیار است به عربی و پارسی و ہندی و افغانی۔ مقصود المومنین به عربی است گویند حق تعالیٰ با او بے میانجی جبریل سخن کردے۔ و کتابے دارد خیرالبیان نام۔ و آں به چهار زبان است اول به عربی دوم به پارسی سوم به ہندی چہارم به پشتو۔ یعنی لُغت افغانی ہماں یک مطلب را به چهار زبان گفته و آں خطابیست از حق تعالیٰ بر حضرت بایزید را (هکذا) و آں را صحیفه الٰہی دانند۔

ترجمه۔ دَ بایزید تصنیفات په عربی فارسی هندی او پښتو کښې ډیر دی۔ مقصود المومنین په عربی دے۔ وائی چې خدائې پاک به ورسره بې دَ جبرئیل دَ واسطې نه خبرې کولې۔ دَ ده یو کتاب خیرالبیان دے۔ چې په څلورو ژبو دے۔ یو په عربی بل په فارسی دریم په هندی او څلورم په پښتو هم یو مطلب ئې په څلورو ژبو وئیلے دے۔ دا کتاب دَ الله تعالیٰ خطاب دے بایزید ته۔ (روښنایان) دا کتاب دَ خدائې کتاب گڼی"[1]

په دې عبارته دا صفا ښکاری چې دَ روښانیانو دَ عقیدې مطابق خیرالبیان دَ خدائې کتاب وه لکه چې په وړومبی دلیل کښې دَ عامې عقیدې په حواله او اووم دلیل کښې دَ اخون درویزه دَ الزام په بنیاد وئیلے شوی دی خو که چرې خیرالبیان دَ "خدائې دَ خطاب" نه بغیر بل څه لرلے نو دبستان مذاهب به ئې ضرور ذکر کړے وه ځکه چې دَ کوم څیز دَ دبستان دَ لیکونکی په مشاهده کښې نه دے راغلے هغه دے په صیغهٔ مجهول کښې لیکی او چې مشاهده کښې ئې څیزونه راشی هغه دَ "است" دَ فعل معاون په ذریعه ظاهروی۔ کوم ترتیب چې دا نسخه لری هغه دَ دبستان مذاهب دَ بیان سره سم دے یعنی دَ "خدائې له خوا خطاب چې دَ جبرئیل یا دَ بل کوم ولی په واسطه نه بلکې براه راست شوے دے۔

---

[1] دَ خیرالبیان (پېښورچاپ) مقدمه ص ۵۳

او ځکه زه دا دعویٰ کولے شم چې زمونږه دا نسخه هغه نسخه ده چې دَ اخون درویزه خوشحال بابا او دَ دبستان مذاهب دَ لیکونکی له نظره تېره شوې وه. تلك عشرة كاملة

(۲)

پکارخو دا ده چې دَ برنیو معروضاتو نه پس ما نور څه نه وے وئیلے ولې زه دا محسوسوم چې کومې چې غلط فهمئ دَ بایزید روښان دَ کتاب په سلسله کښې خورې شوې دی هم هغسې خیالات دَ هغه دَ ژوند، تعلیماتو، نورو کتابونو او دَ هغه دَ لوئې مخالف اخون درویزه دَ ژوند او کتابونو په لړ کښې هم عام دی ځکه نو دَ خیرالبیان په خپل صحیح پس منظر او پیش منظر کښې دَ لُستلو او په هغې دَ پوهېدلو دَ پاره دا ضروری ده چې څومره زما له وسه کېږی په دغو عنواناتو هم خبرې وکړم. وَما توفیقی الا بالله.

دَ بایزید روښان دَ ژوند په باره کښې وړومبی غلط فهمی دَ هغه دَ پېدائش دَ تاریخ په باره کښې ده. دَ مولینا عبدالقدوس صاحب دَ تحقیق مطابق بایزید په ۹۳۱ھ کښې پېدا شوے وه[۱]. دوی دا نه دی څرګند کړی چې "معلومات دوی ته له کومه ځایه حاصل شوی دی. دَ دوی په تتبع کښې بناغلی سید تقویم الحق کاکاخیل هم دَ بایزید دَ پېدائش کال ۹۳۱ھ مطابق ۱۵۲۴ء ښئیلے دے.[۲] شاید چې دیو دواړو فاضلو لیکونکیو ته دَ دبستان مذاهب دَ هغه بیان نه دا غلط فهمی شوی وی چې پکښې ئې دا لیکلی دی چې دَ بایزید دَ پېدائش نه یو کال پس په ۹۳۲ مطابق ۱۵۲۵ء بابر" ابراهیم خان افغان" له شکست ورکړے وه.[۳] حالانکې دَ پانی پت هغه جنګ چې ابراهیم لودی شهید پکښې شکست خوړلے وه په ماه رجب ۹۳۲ مطابق اپریل ۱۵۲۶ شوے وه.

---

[۱] مقدمه دَ خیرالبیان. ص. ۴. [۲] مخزن. مقدمه. ص یز

[۳] دبستان مذاهب (انګریزی ترجمه) ص. ۳۶۵ نیویارک ۱۹۳۷

دَ افغانستان لیکونکیو کښې ښاغلیو قیام الدین خادم دَ بایزید دَ پیدائش کال په هجری سن ۹۳۱ لیکلے دے خو عیسوی سن ئې غلط کړے دے.[1] ځکه نوکیدے شی چې دا دَ طباعت غلطی وی. حبیبی صاحب په مختلفو وختونو کښې دَ بایزید دَ پیدائش مختلف تاریخونه ورکړی دی. دَ مثال په طور په ۱۹۶۲ء (۱۳۴۲ هش) کښې چې مرحوم حبیبی صاحب دَ پښتو ادبیاتو دَ تاریخ دوهم ټوک لیکلونو دَ بایزید دَ پیدائش کال ئې ۹۳۲ لیکلے دے[2] او چې دَ خپل عمر په اخری حصه کښې ئې "دَ روښان پیر عصر او دَ ده غورځنګ" نومې مقاله لیکله نو دَ دې مقالې په ۱۰ مخ ئې دا کال ۹۳۱ ھ (۱۵۲۴ء) لیکلے دے.[3] دا عیسوی کال هم په دې لحاظ غلط دے چې دَ ۹۳۱ په هجری کال کښې دَ عیسوی ۱۵۲۴ کال صرف درې میاشتې شاملې دی نورې نهه میاشتې ئې په ۱۵۲۵ ورګډیږی.[4] غرض دا چې تر اوسه څومره لیکونکیو دَ بایزید روښان دَ پیدائش کال لیکلے دے نو ۹۳۱ ھ او ۹۳۲ ھ نه ئې خبره نه ده اړولے. حالنامه چې دَ علی محمد قندهاری لیک دے او دَ روښانیانو په حقله دَ بل څه مستند دستاویز په غیر موجودګۍ کښې اِکی یوه داسې تذکره ده چې اعتبار پرې کیدے شی. دَ بایزید روښان دَ پیدائش کال خو صراحتًا نه ښئی ولې ورته داسې اشاره کوی چې دَ بایزید دَ پیدائش نه "بعد از چند سال لشکر مغل سوئی هندوستان امد. شهر بهیره را تاخت نمود".[5] بهیره بابر هغه حمله کښې نیولې وه چې دَ هغه په پینځو حملو کښې دریمه وه او په کال ۹۲۵ ھ مطابق ۱۵۱۹ء کښې ئې کړې وه. بابر دَ بهیرې دَ نیولو نه پس دَ شاه بیګ ارغون دَ حملې په وجه په ۱۲/۱۱ ربیع الاول

---

[1] بایزید روښان ص ۶. [2] مرحوم الله بخش یوسفی هم ۹۳۲ صحیح ګڼی. یوسف زی پټهان ص. ۲۶۳. [3] دَ روښان یاد. ص. ۲۷۴۰. ۱۹۷۶ء (۱۳۵۵ ھ). [4] تقویم تاریخی ص. ۲۳۳. [5] دَ پښتو اکیډیمی ټائپ شوې حالنامه ص. ۴.

۹۲۵ مطابق ۱۳/مارچ ۱۵۱۹ له بهیړې ووتلو (۱) اوس که دې تاریخونو سره دَ حالنامې تفصیل یو ځائې کړے شي نو دا دَ ۹۲۵ کال دَ بایزید روښان دَ پیدائش نه " بعد از چند سال" دے او که دا "چند سال" درې کاله هم وګڼو نو دَ بایزید دَ پیدا کېدو کال ۹۲۲ھ کیږی چې دَ عیسوی کال دَ ۱۵۱۶ سره سمون خوری -

خو دلته یو بل مشکل پیدا کیږی او هغه دا چې هم دا حالنامه ځکښې وائی " بعد از یک سال کم و بیش مخلوق هندوستان را از افغانان گرفتند...... و در آن وقت بایزید قدس سره پنج ساله بود" ۲ یعنی "کم و زیات یو کال پس مغلو هندوستان له پښتنو ونیوه...... او هغه وخت بایزید قدس سره پینځه کلنے وه" مغلو چې هندوستان له پښتنو نیولو نو دا دَ ۹۳۲ھ کال وه چې عیسوی کال ترې ۱۵۲۶ جوړیږی او که دا وخت دَ بایزید روښان عمر پینځه کاله وه نو صفا ثابتیږی چې هغه په ۹۲۷/۲۸ ھ مطابق ۱۵۲۱ء کښې پیدا شوې وه -

دا دواړه تاریخه داسې دی چې په هیڅ طریقه ئې خپلو کښې سمون نه راځی - او سړے مجبور شی چې یو یا بل تاریخ صحیح وګڼی - البته که په بهیړه دَ مغلو دَ تاخت دَ کال (۹۲۵) نه " بعد از چند سال" دَ بایزید دَ پیدائش کال وګڼو نو ۹۲۷ھ ممکن کیدے شي - خو دَ دې مطلب دَ پاره به دَ حالنامې په الفاظو کښې داسې تبدیلی راوستل وی چې معنیٰ ئې دا راووځی چې دَ مغلو له تاخته څو کاله پس بایزید انصاری پیدا شه - اوس چې حالنامه کښې کوم عبادت دے دَ هغې له رویه دَ "بایزید انصاری" له پیدائشه " بعد از چند سال" مغلو په بهیړه حمله کړې وه - ځکه نو تر هغه وخته چې بل کوم باوری سند نه وی پیدا شوے مونږ په یقین سره دا نه

---

۱، ۲ حالنامه -

شو وئیلے چې دَ پیر روښان دَ پیدائش کوم تاریخ صحیح دے؟ ۹۲۱ھ، ۹۳۲ھ ۹۲۵ھ، او که ۹۲۷ھ؟

دَ پیر روښان دَ وفات په باره کښې هم که هر څو دَ محققینو تر منځه اختلاف دے۔ خو کم از کم دَ حالنامې تر حده دا اختلاف نشته ځکه نو دَ حالنامې په موجودګۍ کښې دَ بل کوم معتبر سند تر پیدا کیدو پورې به مونږ مجبور یو چې دَ حالنامې بیان کړے کال صحیح ومنو۔ حالنامه بالکل په صفا او غیر مبهم انداز کښې وائی:-

"بعد از اغاز غوان یعنی شمشیر گرفتن پیر دستگیر قدس سره بدونیم سال بتاریخ ہجری نہ صد ہشتاد از ہجرت رسالت پناہ بوصال دوست پیوست" [1]

یعنې "دَ تورې راوکښلو له اغازه یعنی دوه نیم کاله پس دَ رسول کریم دَ هجرت په ۹۸۰ (نهه سوه اتیا) کاله پیر دستګیر دوست سره واصل شه"

او دا نهه سوه اتیا په غیر مبهمو ټکو کښې دَ پیر روښان دَ وفات کال دے خو دې کښې هم اوس اوس یو "خو" پیدا شوے دے۔

دَ افغانستان ګران ځلمی هوادمل په ۱۳۶۲ هش (۱۹۸۴ء) کښې "دَهند دَ کتابخانو پښتو خطی نسخې" په نامه یو کتاب چاپ کړے دے۔ دې کتاب کښې دَ خیرالبیان دَ یوې بلې قلمی نسخې تفصیلات بیان شوی دی چې په ۱۰۷۹ھ کښې لیکلې شوې ده۔ او دَ حیدراباد (هند) دَ سالار جنګ میوزیم لائبریرۍ په لسم نمبر ښئبلې شوې ده۔ دَ خیرالبیان دَ دې انتهائی قیمتی نسخې ترقیمه داده "تمت تمام شد بتاریخ دوہم ربیع الثانی سنه ۱۰۷۹ هجری موافق سنه نود وشش از آغاز میا روښان بایزید رحمت الله علیه این نسخه خیرالبیان که تصنیف میاں روشان بایزید رحمت اللہ علیہ مذکور باشد باتمام رسید" [2]

---

[1] حالنامه - ص - ۲۹۱-

[2] ذکر شوے کتاب ص - ۲۱۳-

(ترجمه) تمت تمام شه په تاریخ دَ دوېمې دَ میاشتې دَ ربیع الثانی سنه ۱۰۷۹ هجری چې دَ میاں روښان بایزید رحمت الله علیه دَ اغاز له شپږ نوی کاله سره موافق دے۔ دا نسخه دَ خیرالبیان چې دَ ذکر شوی میاں روشان بایزید رحمت الله علیه مذکور تصنیف دے مکمل شه۔"

له دې نه پس په ص ۲۱۴ ښاغلے هېوادمل لهدې ترقیمې دا نتیجه راوباسی چې په ۱۰۷۹ کښې دَ بایزید انصاری دَ وفات ۹۶ کاله پوره شوی وو او هم په دې بنا دا اندازه لګوی چې دَ بایزید انصاری دَ وفات کال ۹۸۳ھ دے۔

دَ ښاغلی هوادمل دَ رائې دَ احترام باوجود زه ورسره اتفاق نه کوم ځکه چې دَ 'اغاز نه مطلب وفات نه دے بلکه دا چې دا لفظ دَ روښانی تحریک په سلسله کښې یوه خاصه معنٰی لری۔ کرانو لوستونکیو به دَ حالنامې هغه عبارت لُستے وی چې بره ئې حواله ورکړے شوه او هلته هم دا لفظ په دې شکل "بعد از آغاز نمودن یعنی شمشیر گرفتن پیر دستگیر" راغلے دے۔ دلته دَ 'اغاز نه مطلب "شمشیر گرفتن" دے او هم دَ دې 'اغاز" په وجه بایزید انصاری توتی ته دَ 'اغاز پور" نوم ورکړے وه او دغه جنګ کښې شریکو ملګریو ته دَ 'اغازپوریانو لقب ورکړے شه لکه چې حالنامه وائی:۔

"بعدهٔ پیر دستگیر قدس سرهٔ آن جنگ جا را آغاز پور نام نهاد۔ یعنی درآن سرزمین آغاز شمشیر گرفتن کرد و آن یاران که درآن جنگ حاضر بودند، انها را آغاز پوری لقب کردند و یک حصهٔ از غنیمت ایشان از یاران دیگر زیاده می یافتند۔" ؎

ترجمه۔" له دغه پسه پیر دستګیر قدس سرهٔ دَ جنګ هغه ځائې (یعنی دَ توتی کوهستان۔ ناقل) باندې 'اغاز پور نوم کښېښوه۔ یعنی په دغه سرزمین ئې

؎ حالنامه دَ پښتو اکېډیمې تائپ شوې نسخه ص۔ ۲۹۰

دَ تورې دَ رااخستلو آغاز وکړه- او هغه ياران چې په دغه جنګ کښې حاضر وو هغوی ته آغاز پوريان لقب ورکړے شه او دوی به له نورو يارانو نه په مال غنيمت کښې يوه حصه زياته موندله"

دَ حالنامې دَ دې بيان په رڼا کښې چې دَ خيرالبيان دَ حيدرآباد(هند) دَ نسخې تر قيمه دَ غورلاندې راولو نو دا ترې څرګنديږی چې دَ ۱۰۷۹ه کال دَ آغاز پور دَ جنګ نه شپږ نوی کاله پس شوے وه- په دې لحاظ دَحالنامې هغه کے پوره شی چې دَ آغاز پور دَ جنګ دَ کال دَ نه بيانولو په سلسله کښې محسوسيږی او دا ثابته شی چې دا جنګ په ۹۸۳ه کښې شوے وه- او چې دا خبره ثابته شوې ومنو نو بيا دَ حالنامې بيان کړے دَ بايزيدانصاری دَ وفات کال ۹۸۰ه ځکه غلطيږی چې دَ حالنامې ليکونکی دا خبره صفا کړې ده چې " بعد از آغاز نمودن يعنی شمشير گرفتن پير دستگير قدس سرهٔ بدونيم سال بتاريخ ہجری نه صد ہشتاد از ہجرت رسالت پناه بوصال دوست پيوست"[1] (ترجمه له ديه اګاهوشوې ده) نو اوس به دا دوه نيم کاله ۹۸۳ه سره جمع کوُو او ۹۸۵ يا ۹۸۶ه به دَپيرروښان دَ وفات کال منو- او دا به فرض کوُو چې دَ حالنامې له ليکونکی يا نقل کونکی نه دَ کال په ليکلو کښې دومره غلطی شوې ده چې دَ "نه صد ہشتاد وپنج" يا "نه صد ہشتاد وشش" په ځائې ئې "نه صد و ہشتاد" ليکلے يا نقل کړے دے-دا قياس دَ پی ايچ ډی دَ پاره دَ ډاکټر اخترخان تحقيقی مقاله کښې هم شوے دے دَ مقالې په ص ۱۲۹ ليکلی شوی دی:-

"دَ دې ټول قياس بنياد په دې دے چې مونږ دا ومنو چې دَ پير روښان وفات دَ آغاز پور دَ جنګ نه دوه نيم کاله وروستو شوے وه-دا روايت هم دَ حالنامې دے او دَ کال ۹۸۰ه تعين هم حالنامې کړے دے- دَ حالنامې

---

[1] حالنامه-ص-۲۹۱-

پهٔ دې دوو روایتو کښې یو روایت غلط او یو روایت صحیح دے......مونږ دَ کتاب دَ دې دوو متضادو جزو تر میانځه فیصله نهٔ شو کولے البته یوه خبرهٔ داسې کیدے شی چې دَ دې دواړو روایتونو به تطبیق وشی او هغه دا چې دَ حالنامې دَ کاتب نه دې پهٔ تاریخ هجری نه صد هشتاد نه پس یو تکے یک یا دو پاتې شوے وی او اصلی عبارت نهٔ صد هشتاد و یک یا نهٔ صد هشتاد و دو وی" دَ دې قیاس پهٔ رڼا کښې زما دَ قیاس دَ پارهٔ بنیاد زیات پوخ شی۔ او زهٔ وئیلے شم چې دَ حالنامې دَ لیکونکی یا نقل کونکی نه دَ " نه صد هشتاد" نه پس دَ " و پنج " یا " و شش" تکی پاتې شوی دی او دَ بایزید انصاری دَ وفات کال ۹۸۵ ھ یا ۹۸۶ ھ دے۔ اودا هغه کال دے چې دَ ابس ایم ظفر دَ قیاس ۹۸۶، ۹۸۷ھ سره نژدې دے۔[له]

اوس نو چې مونږ دَ بایزید انصاری دَ ژوند دَ واقعاتو نقشه جوړوؤ نو شکل به ئې څهٔ داسې وی۔

پیدائش۔ ۹۲۵ ھ (غالباً)

دَ الهام دعوی ۹۵۷ نه اګاهو

تجارت او واپسی ۹۵۷

مجاهده ۹۵۷ - ۹۶۲ ھ

کانی ګرم نه هجرت ۹۶۲ نه پس

دَ صراط التوحید تکمیل ۹۷۸

دَ آغاز پور جنګ ۹۸۳

وفات ۹۸۵ - ۹۸۶

دَ حالنامه (اوّله) خیرالبیان او مقصود المؤمنین دَ تکمیل دَ کلونو پهٔ پارهٔ

---

له دَ خیرالبیان مقدمه دَ حافظ عبدالقدوس صاحب ص- ۳۳

کښې څه داسې معلومات په لاس نه راځي چې د هغو په بنياد څه ووئيلې شي د خيرالبيان په باره کښې دومره وئيلې شو چې صراط التوحيد او مقصود المؤمنين د تکميل د خيرالبيان په باره کښې دومره وئيلې شو چې د صراط التوحيد او مقصود المؤمنين نه مخکښې مکمل وو. اوس اوس د بايزيد د يوې نوې رسالې درک هم لګيدلے دے چې نوم ئې فرحت المجتبیٰ [1] دے خو متأسفانه د دې رسالې د تاليف کال هم معلوم نه دے.

د بايزيد په حالاتو کښې د حالنامې د بيان سره متناقض صورت د هغه د وفات سره متعلق واقعات دی. د مخزن روايت دے:-

القصه آن ملحد بعد ازان لشکر جمع کرده و بجانب ننگرهار برآمده و بر موضع بڑو را تاخته و بعد از تاخت روی بکوه آورده- امّا محسن خان غازی از جلال آباد درپئے او يلغر کرده به موضع توراغه در رسيده و چون اين ملحد ياران خود را لافها زده و قرار داده بود هرگاه که نظر بر من محسن خان افتد از اسپ خواهد افتاد- اندکے در ميدان تحمل کردند امّا سواران اسلام به يکبارگی حمله کردند تا شکست در کفار نابکار پيدا شد و جماعتے عظيم از ايشان بکشت و اين ملحد خودش پياده گريخته و بکوه برآمده و تشنگی هوائے گرم بر او اثر کرد و خجل شده تا بعد ازان جون باز در حدود اشنغر آمده از زحمت آن هوائے گرم بمرده در اشنغر دفن کردند- [2]

د اخون درويزه د دې عبارت ترجمه څکه کوم چې د دې حصې د پښتو روايت مختصر دے او ډېر ځکی پکښې قابل فهم نه دی.

"القصه هغه ملحد (بايزيد انصاری- ناقل) پس له هغې لښکر جمع کړه او د ننګرار په خوا ووت او د بړو [3] په کلی ئې حمله وکړه او له تاخته پس

---

[1] د هند د کتابخانو پښتو قلمی نسخې- د زلمی هواد مل- ص ص- ۲۲- ۲۴-

[2] مخزن- ص- ۱۲۶- [3] دا کلے د موجوده افغانستان د ننګرهار د ولايت د رودات د ولسوالی په نمرخاته پروت دے.

ځ په غره روان شه - خو محسن غازی له جلال اباده ورپسې یرغل کوونکے توررا‌غله ته ورسېده او هر کله چې دې ملحد خپلو یارانو ته لاڼې وهلې وې او وئیلی ئې وو چې کوم ساعت زما نظر په محسن خان پرېوځی نو رهم هغه درنګ به) هغه له اسه راګوذار شی - (یاران ئې) په مېدان کښې لږه شیبه ایسار شو خو دَ اسلام سورو پرې په یو ځل حمله وکړه چې ناپکارو کفارو ماتې وکړه او یوه لویه ډله ئې له دوی ځنې ووژله (هم داسې الفاظ دی) او دا ملحد پخپله پیاده وتښتېده او غره ته وختـه او له تندې نه ګرم باد پرې اثر وکړه (؟) او خجل شه - چې له دې نه پس دَ اشنغر حدودو ته ورسېدو هم دَ هغه ګرم باد له زخمته مړ شه او اشنغر کښې ئې ښخ کړه "

اوس دَ مخزن دَ پښتو روایت ولولئ -

"دے ووت دَ ننګرهار په مېدانو نه

له هغه درسته ننګراره دغه یو بره ئې وسه په اورونه
ده هم ژر په ببرنه فېر (؟) دَ غره ته وکړه په قراره
ولې محسن غازی ورپسې راغے یکجلب ئې تېځلے بې اختیاره
دا مېدان دَ توررا‌غه وه چې تاریک محسن خان ورغله وبله
لکه کرپ وربان‌دې کښېښوه دَ مصرۍ دَ تاریک و تښـتولـه
لښکرئې غځ[1] کړه په مېدان کښې تـاریک پلے تښـتېدنه
صدرحمت په محسن بانډې چې تاریک ئې په غنډۍ وخېژونه
تاریک تېښته وَپلے (؟) کـړې پـرغـنډۍ وه ورخـتلے
ده ابه نه وې موندلې ځکه دے وه جـل وهـلے
سکه[1] دا له ئې ؟ لړمون وسه هم وعده ئې دروغژنه شوه یک لخته

---

[1] چاپی نسخه کښې "لکه" دے -

دغه پسه اشنغر لره روان شه پهٔ نژدې شپې کښې دے ولوېده لهٔ تخته۔"[1]

دَ اخون درويزه پهٔ دې دواړو بيانونو کښې چې کوم فرق دے هغه زهٔ بيانوم :—

۱۔ بايزيد لهٔ ننګرهاره راووتو او دَ برو پهٔ کلی ئې حمله وکړه۔ (فارسی)

لهٔ هغه درسته ننګراره دغه يو پراؤ ئې وسهٔ پهٔ اورونه (پښتو)

۲۔ بايزيد يارانو ته دَ فتح لافې وهلې وې (فارسی)

دا ذکر پښتو کښې نشته۔

۳۔ لهٔ دې پسه دَ اشنغر حدود ته ورسېدو هم دَ هغه کرم باد لهٔ زحمته مړ شهٔ او اشنغر کښې ئې ښخ کړهٔ۔ (فارسی)

دغه پسه اشنغر لره روان شه پهٔ نژدې شپه کښې دے ولوېده لهٔ تخته۔ (پښتو)

پهٔ تذکرة الابرار والاشرار کښې چې دَ مخزن نه پس ليکلے شوے دے دَ بايزيد انصاری دَ وفات پحقله دا ليکلی شوی دی۔

"چوں در موضع کالا پانی آمد رحلت بالعنت از دارالفنا بدارالبقا نموده در حدود ہشنغر او را دفن کرده۔"[2]

ترجمه "چې دَ کالا پانی کلی ته ورسېده لهٔ دارالفنا نه ئې دارالبقا ته دَ لعنت سره رحلت وکړهٔ او دَ اشنغر پهٔ حدود کښې ئې ښخ کړهٔ۔"

دَ روښانی تحريک مستند تاريخ "حالنامه" کښې دَ دې "تاخت" او دَ توراغهٔ دَ جنګ هېڅ ذکر نشته۔ کهٔ دا خيال وکړے شی چې "حالنامه" کښې دانسته دَ توراغهٔ دَ شکست ذکر نهٔ دے شوے نو سوال دا پېدا کيږی چې دَ برو دَ سوزولو لهٔ ذکره ولې اغماض شوے دے۔ او ترڅو چې دَ دې سوال مطمئن

---

[1] مخزن۔ ص۔ ۱۳۳۔ [2] تذکرة الابرار والاشرار ادارهٔ اشاعت سرحد۔ ص ۱۵۵۔

کوڼکے خُواب حاصل نهٔ شي تر هغه دَ مخزن او تذکرة الابرار روایت دَ معلومو وجوهاتو لهٔ کبله قابلِ یقین نهٔ شي کېدے۔

حالنامه دَ بایزید انصاری دَ وفات لهٔ ذکره مخکښې دَ مغلو او اپریدو تر منځه دَ جنګ واقعات بیانوی۔ دَ اپریدیو لهٔ خوا خېبر سره دَ میرزا سُلیمان پهٔ لښکر دَ حملې پهٔ باره کښې وائی۔ چې "هرکله پیرِ دستګیر لهٔ دې واقعې خبر شهٔ هغه طائفې ته ئې سرزنش وکړهٔ[1]۔ دلته لهٔ یوې واقعې هم دا نتیجه نهٔ شي وتے چې بایزید انصاری دَ مغلو او اپریدیو، ورکزیو وغېره تر منځه پهٔ جنګونو کښې موجود وو۔ البته دَ حالنامې دا الفاظ " بعده پیرِ دستګیر قدس سرهٔ فرمود که ایں سرزمین بمردم مغل نزدیک است درمیان ما و ایشان جنګ واقع می شود"[2] دا څرګندوی چې دَ مغلو او پښتنو تر منځه دَ حالت جنګ غندې کېفیت ضرور وهٔ او هم لهٔ دغه وجې بایزید انصاری دا فېصله وکړه چې:

" بهتر آنست که ایں ملک را ګزاشته بجانب ملک یوسف زئی بروم که آں ملک از مردم مغل ګوشه است[3]"

ترجمه:۔" بهتره دا ده چې دا ملک پرېږدم او دَ یوسف زیو ملک ته لاړ شم چې هغه ملک لهٔ مغلو یو خوا دے"

دَ حالنامې دا حصه دا پهٔ وضاحت ثابتوی چې بایزید انصاری مغلو سره جنګ کول نهٔ غښتل او اګرچې دَ دواړو فریقو تر منځه هم مات شوے وهٔ خو بایزید انصاری دا نهٔ غښتهٔ چې مغلو سره دې غېر ضروری هنګامې او جنګونه وشي۔

---

[1] حالنامه ص۔۲۹۱ (ترجمه)۔ [2] پس ته پیرِ دستګیر وفرمائیل چې دا سرزمین مغلو ته نژدې دے او زمونږ او دَ هغوی تر منځه جنګونه واقع کېږی" (ترجمه) حالنامه ص۔۲۹۱۔

[3] هم دغه کتاب هم دغه صفحه۔

دا ذکر 'حالنامه' کښې داسې خلاصیږی۔

"آخر پیر دستگیر قدس سرهٔ ازان سرزمین روان شد تشریف به ملک یوسف زئی بُرد چندگاه درآن ملک یوسف زئی بسر بُرد بتاریخ هجری نهصدهشتاد ازهجرت رسالت پناه بوصال دوست پیوست... بعد از تجهیز و تکفین قالب مبارکش را در صندوق نهاده درآں نواحی دفن کردند[1]"

ترجمه۔" اخر پیر دستګیر قدس سره له هغه سرزمینه روان شه او دَ یوسف زیو ملک ته ئې تشریف یوړه۔ څه موده ئې دَ یوسف زیو په ملک کښې تېره کړه....... دَ رسالت پناه له هجرته په ۹۸۰ تاریخ دوست سره واصل شه...... دَ تجهیز او تکفین نه پس ئې دَ هغوی مبارک قالب په صندوق کښې واچولو او په هغه نواحو کښې ئې دفن کړه"

دَ حالنامې له دې بیانه دَ هغه ټولو خبرو نفی کیږی چې دَ اخون درویزه دَ بیان په سند دَ بایزید انصاری دَ وفات په باره کښې خورے دی۔ یعنی:۔

۱۔ دا چې دَ بایزید انصاری وفات دَ جل وهلو په سبب شوے وه

۲۔ دا چې بایزید انصاری په اشنغر کښې وفات شوے وه۔

۳۔ دا چې بایزید انصاری دَ کالا پانی په مقام وفات شوے وه۔

۴۔ دا چې کالا پانی دَ اشنغر په نواحیو کښې څه ځائې دے[2]

اوس به راشو دَ بایزید انصاری تعلیماتو او دَ هغو په باره کښې خوروشویو غلط فهمیو ته۔ دَ بایزید انصاری دَ تصوّف په باره کښې چې تر اوسه هرچا څه لیکلی دی هغوی په دې متفق دی چې بایزید دَ نورو صوفیاؤ نه علی الرغم دَ څلورو په ځائې دَ اتو مقاماتو قائل وه۔

دا مقامات ۱۔ شریعت ۲۔ طریقت ۳۔ حقیقت ۴۔ معرفت ۵۔ قربت ۶۔ وصلت ۷۔ وحدت او ۸۔ سکونت یادیږی۔ دَ بایزید خپلو لیکونو او دَ هغه دَ تحریک دَ ځنو

---

[1] حالنامه هم دغه ځائې۔ [2] لکه چې دَ صراط التوحید" دیباچه" نګار ښاغلی عبدالشکور دَ خپلې" دیباچې" په ص-ن لیکلی دی۔

شاعرانو لهٔ شعرونو نه دي غلط فهمئ ته تقویت رسی۔ خو که دَ خیرالبیان متعلقه حصې په غور وُلستے شی نو دا ترې څرګندیږی چې دا وروستی ذکر شوی "څلور مقامه" دَ بایزید دَ بیان کړی "معرفت" مدارج دی۔ دَ خیرالبیان دا ځایونه په غور ولولئ:۔

"او بایزید۔ دَ شریعت دَ طریقت دَ حقیقت دَ معرفت دَ یکانګئ پوهه مې دَ پیغمبرانو کړی دی علیهم السّلام[1] او بیا لهٔ دې نه پس دَ "شریعت" تفصیل شروع شی چې دَ پېښور دَ چاپي نسخې تر صفحه ۱۸۸ پورې بیان شوے دے۔ په ص ۱۸۸ دَ طریقت، په ص۔ ۲۲۳ دَ حقیقت او په ص ۲۵۲ دَ معرفت دَ "زده او چار" دَ تفصیلاتو ذکر دے۔ او لهٔ دغه پسه بل یو فصل هم نه دے قائم شوے۔ بلکې دَ معرفت په بیان کښې دا وضاحت راځی:۔

"کوره! په معرفت کښې مقام دَ قربت دَ وصلت دَ وحدت دَ سکونت دے په تا دې وی اعلام۔ او عارف واجد، مقرب، واصل، موحد، مسکین وی عیان[2]۔

لهٔ دې اوس ظاهریږی چې قربت، وصلت، وحدت او سکونت دَ معرفت مقامونه دی ځان له بېل بېل مقامونه نه دی۔

- دَ بایزید انصاری "خلیفه اول" محمد کمال صاحب وائی:

"پیر که از چهار مقام و از چهار سیر واقف باشد الخ[3]

ترجمه:۔ پیر چې لهٔ څلورو مقامونو او څلورو سیرونو واقف وی الخ"

بیا وائی:۔

"وهر که از چهار مقام و چهار سیر خبر نه باشد.... اگر از چنیں پیر باز گردد مرتد و مردود نه شود"[4]

---

[1] خیرالبیان پېښور چاپ۔ ص۔ ۷۹۔ [2] خیرالبیان دَ پېښور چاپ۔ ص۔ ۲۵۳۔ [3] حالنامه ص۔ ۱۰۲۔ [4] حالنامه ص۔ ۱۰۳۔

ترجمه: هر څوک چې له خلورو مقامونو او څلورو سیرونو خبر نه وی که له داسې پیره څوک واوړی نو نه مرتد کیږی نه مردود کیږی."

دَ حالنامې مطابق دَ بایزید روښان او دَ هغه دَ والد تر مینځه دَ یوې مکالمې په دوران کښې بایزید خپل پلار ته دا وینا کړې وه:-

"راه نبی علیه السلام شریعت و طریقت و حقیقت و معرفت است" [1]

ترجمه: "دَ نبی علیه السلام لاره شریعت طریقت حقیقت او معرفت وه"

بایزید انصاری یو ځائې کښې دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلم یو حدیث بیانوی. وائی "قال النبی صلی الله علیه وسلم الشریعته کمثل اللیل والطریقة کمثل النجوم والحقیقة کمثل اللیل والطریقه کمثل النجوم والحقیقة کمثل القمر والمعرفة کمثل الشمس و لیس فوق الشمس شیئًا. [2]

ترجمه: شریعت لکه دَ شپې دے او طریقت لکه دَ ستوریو دے او حقیقت لکه سپوږمۍ ده او معرفت لکه دَ نمر دے او دَ نمر دَ پاسه هیڅ شے نشته (دَ دې حدیث په فارسی ترجمه کښې دَ حالنامې مصنف دَ "لیس فوق الشمس شیئًا" معنیٰ کوی "نیست چیزے روشن تر از آفتاب" یعنی دَ نمر دَ پاسه څه روښان نشته."

دَ حالنامې مصنف دَ ځنو خلقو نه دَ بایزید انصاری دَ خفګان په سلسله کښې لیکلی دی:-

"خاطر پیر دستگیر قدس سرهٔ همواره از مردم شهر به تنگ بود. اگرچه یار و اغیار خدمت و حرمت پیر دستگیر میکردند، نذر و نیاز می آوردند اما در تمام مسلمانی در نمی آمدند که آن علم و عمل شریعت و طریقت و حقیقت و معرفت است." [3]

---

[1] حالنامه ص-۱۷۳- [2] حالنامه ص- ۱۷۹ او ص- ۱۸۰ او دَ پېښور چاپ خیرالبیان ص- ۲۵۶- [3] حالنامه-ص- ۱۹۱-

ترجمه: "پیر دستگیر قدس سرهٔ خاطر به تل دَ ښهر له خلقو تنګ وه- اګرچه خپلو پردو به دَ پیر دستګیر خدمت او حرمت کولو نذر نیاز به ئې راوړه ولې ټولې مسلمانۍ ته دننه نه راتلل چې هغه دَ شریعت، طریقت، حقیقت او معرفت علم او عمل دے"

دَ ټولې مسلمانۍ دَ تعریف په سلسله کښې بایزید انصاری سره دا قول هم منسوب دے "و تمام مسلمانی شریعت و طریقت و حقیقت و معرفت است"[۱]

دواړو کښې دَ بایزید روښان دَ مصروفیاتو په باره کښې دَ حالنامې مصنف لیکی:-

"...دَ عارف واحد (نسخه کښې په غلطۍ واحد لیکلے شوے دے) را بسوئے سیر قربت و عارف مقرب و سامع را به جانب سیر وصلت و عارف واصل را به جانب سیر وحدت و عارف موحد را بجانب سیر سکونت و برتبه تخلّقوا باخلاق الله راغب گردانید" [۲]

"او عارف واحد به ئې دَ قربت دَ سیر خوا ته عارف توب دے به ئې دَ وصلت دَ سیر په طرف عارف واصل به ئې دَ وحدت دَ سیر په طرف عارف موحد به ئې دَ سکونت دَ سیر په طرف او دَ تخلقوا باخلاق الله مرتبې ته راغب کول"

بدخشان ته دَ بایزید انصاری دَ قاصد خلیفه یوسف په لاس دَ فخرالطالبین دَ لیږلو او هلته دَ مرزا سلیمان له عالمانو سره دَ بحث دَ واقعې په ضمن کښې دَ حالنامې لیکونکی دَ خلیفه یوسف دا وینا ریکارډ کړې ده-

"چنانچه پیشوائے دین اسلام فرموده است- الشریعة اقوالی والطریقة افعالی والحقیقة احوالی والمعرفة اسراری"

ترجمه: شریعت زما خبرې، طریقت زما کردار، حقیقت زما حال او معرفت زما رازونه دی"

---

[۱] حالنامه ص-۱۵۳- [۲] ص-۱۹۵- [۳] ص ۲۸۳-

له دیو ټولو حوالو صفا څرګندیږي چې بایزید روښان د خپل "علم توحید" هم هغه څلور منازل ګڼل د کومو چې نور صوفیا قائل دي - او د قربت وصلت وحدت او سکونت "سېرونه" ئې د "معرفت" مراتب ګڼل چې په دیو کښې د وړومبیو دریو په نتیجه کښې د "سکونت" درجه صرف کامل پیر ته حاصلیږي - او د بایزید روښان په باره کښې دا اخرنی څلور مقامات د جدا منازلو په طور د هغه د څنې مریدانو د غیر محفوظو بیانونو او د مخالفینو د پروپیګنډې په وجه پیدا شوي دي چې مقصد ئې شاید دا وه چې بایزید انصاری د صوفیاؤ له لارې بېل وښئېلے شي - او اګرچې څنو صوفیاؤ دا مقامات په سلګونو او زرګونو هم شمېرلي دي خو دغه صوفیان د طریقو خاوندان نه وو بایزید خپله طریقه لرله او ځان ئې اِکّي یو کامل پیر ګڼلو ځکه نو دې مخالفانه پروپیګنډو او اعتراضاتو ته زیات شېلمه وه -

د خیرالبیان فاضل حاشیه نګار او مرتب مولینا عبدالقدوس صاحب د خیرالبیان په دې عبارت او عارف واحد، مقرب، واصل موحد، مسکین وي عیان " له دا حاشیه لیکلې ده " په خیرالبیان کښې ئې دلته د واجد لفظ زیات کړے دے - چې معنیٰ ئې "موندونکے" دے - خو د بایزید په مقاماتو کښې د وجد یا وجدان څه مقام نشته - ځکه دا کلمه هسې د وصف په طور استعمال شوې وه - یو خاص مقام ته اشاره نه کوي - مقرب، واصل، موحد، مسکین څلورو مقاماتو ته اشاره ده " له

ما د خیرالبیان په نوټونو کښې د مولینا عبدالقدوس صاحب په دې حاشیه د خپلو خیالاتو اظهار کړے دے خو دلته یو ځل بیا دا خبره ځکه دوباره کوم چې که چرې د مولینا عبدالقدوس صاحب غندې عالم فاضل او

---

له خیرالبیان - ص - ۲۵۳ - له د خیرالبیان هم دغه صفحه د (حاشیه)

"بایزید شناس" نه داسې غلطي کیږي نو له نورو به څوک څه ګیله کوي.

دَ بایزید روښان تر ټولو مخکښې چاپ شوی کتاب صراط التوحید کښې راځي.

"هرکه..... صاحب معرفت واز گروه عارفان گردد..... نامش عارف واجد گردد" [1]

ترجمه:- هرڅوک چې..... صاحب معرفت او دَ عارفانو له ډلې شي نامه یې عارف واجد شي"

خیرالبیان کښې دا عبارت شته:-

"ترو بویه چې دَ حقیقت په نغته دې چار کا، له ګناه دې پستنه اوسی دَ هغه پورې څو ذاکر عارف واجد شي۔ عیان" [2]

بیا وائی:- "ګوره په معرفت کښې په عارف واجد دا ورمندن دی چې هیڅ له ما شریک نه ګنی الخ" [3]

بیا وائی:- "ګوره ګناه دَ معرفت په عارف واجد هغه دے چې له ما سره څه شریک ګنی الخ" [4]

او بیا وائی.

"ترو بویه چې دَ معرفت په ورمندن چار کا۔ پستنه دې اوسی له ګناهانو ترو دې یاد دَ نیستۍ پرېږدی یا دوی دې زما هستي په یاد دَ اثبات چې دَ غوږ پرده یې لرې شي تر هغې پورې څو واجد [5] عارف مقرب شي عیان" [6]

ګویا صراط التوحید او خیرالبیان کښې دا خبره پخپله واضحه کړے شوے وه چې دَ پیر کامل په نغوته چې مرید د حقیقت تر مقامه ورسی اودَ پیر

---

[1] صراط التوحید ص۔ ٦٩۔ [2] هم دغه کتاب ص۔ ٢٦٢۔ [3] هم دغه کتاب ص۔ ٢٦٣۔ [4] هم دغه کتاب ص ٢٦٤۔ [5] خیرالبیان پېښور چاپ ص ٢٦٦ کښې یې دَ واجد په ځائې واحد لیکلے دے او مخکښې یې ترې (کذا) لیکلے دے یعنی له دې ښکاری چې حافظ عبدالقدوس صاحب یې په معنیٰ نه دے پوه شوے۔ [6] هم دغه کتاب هم دغه مخ۔

بشئلې ذکر جاري وساتي نو هغه دَ معرفت مقام بیاموي۔ دا "بیا موندل" هم هغه شے دے چې دَ هغې په صورت کښې ذاکر دَ "عارف واجد" مقام ته ورسي او لهٔ دې نه پس چې ترقي کوي نو دا "عارف واجد" به عارف مقرب شي (دې مرتبې ته روښاني لټریچر کښې عارف سامع هم وائي ځکه چې دَ غوږه پرده يې لرې شوې وي لکه چې مو اخرني اقتباس کښې وځیړل) لهٔ دې مقامه پس دَ ترقۍ په نتیجه کښې عارف مقرب (یا عارف سامع) عارف واصل شي او دَ عارف واصل کېدو نه پس دَ نورې ترقۍ په نتیجه کښې دَ عارف موحد مرتبې ته ورسي او دَ دې ترقۍ انتها هغه وخت وشي چې عارف موحد عارف مسکین شي۔

ګرانو لُستونکیو به غور کړے وي چې دا ټول تفصیلات په خپله په صراط التوحید او خیرالبیان کښې موجود دي خو دَ لرې بې احتیاطۍ په نتیجه کښې ترې "لا ینحلې" مسئله جوړه کړې شوې ده۔ او داسې نورو اکثرو ځایونو کښې هم شوي دي۔

اوس به راشو دَ اخون درویزه هغو الزاماتو ته چې په مخزن او تذکرة الابرار و الاشرار کښې يې دَ بایزید انصاري په تعلیماتو لګولي دي۔ دا الزامات حافظ عبدالقدوس صاحب دَ خیرالبیان په مقدمه کښې مختصرًا داسې لیکي :۔

۱:۔ دَ بایزید عقیده دَ باطنیهٔ (اسمٰعیلیهٔ) وه۔ ده په کالنجر کښې دَ ملا سُلیمان ملحد سره ملاقات وکړو۔ څو ورځې يې دَ هغه په صحبت کښې تېرې کړې۔ هغه دَ ده عقیده وخوځوله۔

۲:۔ دَ جوګیانو په مجلس کښې هم ناست وه او دَ (لهٔ) هغوی نه يې دَ تناسخ او دَ اوتار عقیده اخستې او په زړه کښې يې خپله کړې وه۔

۳:۔ دَ دې صحبت په وجه به ده ځان ته دَ خدائې مظهر وئیل او

مریدانو ته به يې دا وئیل چې دا موجوده اجسام چې ختم شي نو دَحیواناتو ارواح دَ نورو حیواناتو په جسم کېنېوځی (کېنې ننوځی) -

۴:- دے دَ پېغمبرۍ هم مدعی وه - خیرالبیان يې الهام کتاب گڼلو او وئیل يې چې په ما دَ خدايې دَ (لهٰ) طرفه نازل شوے دے چونکې جبریل خو اوس نازلیږی نه ځکه دا کتاب الهام نه وه، ده دَ (لهٰ) ځانه جوړ کړے وه - بلکې څه حصه پکښې ورسره ملا ارزانی جوړه کړې وه -

۵:- دَ ده دوه مُهرونه وو په یوه باندې دا نقش وه سبحان الملک الباری - جدا کرد عالم نوری از ناری بایزید انصاری -

او په دویم باندې دا

بایزید مسکین - هادی المضلین دَ (لهٰ) اول نه دا معلومیږی چې ده ځان خدايې گڼلو او دَ (لهٰ) دوېم نه دا چې ځان يې پېغمبر گڼلو -

۶:- دے دَحشر نشر منکر وه او مریدانو ته به يې وئیل چې په حلالو وی که په حرامو جسمونه مو لوئې کړئ چې دا یوځل لاړشئ بیا ژوندی کېدل نشته -

۷:- دے دَ شفاعت منکر وه او یو ځل چې ورپسې دَ پیر بابا ډله دَ بحث دَ پاره تلې وه نو په دې موضوع ورسره بحث شوے وه او دے يې پړ کړے وه -

۸:- ټول عمل او کاروبار يې دَ ټګۍ او چل ول وه یا خويې دا حال وه چې سبزه به يې نه پرېکوله او سپږه به يې نه وژله او یا يې دا حال شه او یا يې دا حال شه چې په چا چې به يې وس بر شه په ټګۍ به يې ووژل لکه تیراهي چې يې وژلی وو -

۹۔ خپل مریدان به ئې اخر دَ نیک عمل نه پاتې کړل او په لوټ مار به ئې اخته کړل۔

۱۰۔ په مریدانو کښې ئې ښځې هم شاملې وې او دَ عوامو دَ پاره ئې یوه تماشه جوړه کړې وه چې خلق ځان ته رامات کړی۔

۱۱۔ دَ بایزید په هغو کارونو کښې چې اخون درویزه صاحب ئې مخالف دے، سماع او سرود هم راځی۔ چې بایزید سماع ته ښه وئیل او څو څو راګونه ئې پکښې ایجاد کړی وو خو اخوند درویزه صاحب په خپلو الزاماتو کښې دَ دې ذکر نه دے کړے۔[1]

دَ اخون درویزه لهٔ دې الزاماتو نه پس حافظ صاحب دَ دبستان مذاهب دَ مصنف په حواله دا نوی الزامات هم درج کړی دی:۔

ا: نموځ به ئې کولو خو هر طرف ته به ئې کول روا ګڼل۔

ب: باد به ئې هم لکه دَ ابو پاکونکے ګڼلو ځکه به ئې په ابو غسل ضروری نه ګڼلو۔

ج: دَ (لهٔ) خپلو مریدانو نه سوا نور خلق به ئې بنیادم نه ګڼل او وئیل به ئې چې خدائې نه پېژنی او ځان نه پېژنی هغه موذی دے قتل ئې روا دے۔ خود شناس هندو به ئې دَ (لهٔ) مسلمان نه ښه ګڼلو۔[2]

ښاغلے حافظ عبدالقدوس صاحب "دَ بایزید دَ کتابونو او دَ خیرالبیان دَ مطالعې" په رڼا کښې دَ دې ټولو الزاماتو تردید کوی۔ او دا وائی چې

[1] دَ ۱ نه تر ۱۰ پورې الزاماتو دَ پاره دَ حافظ عبدالقدوس صاحب دَ مقدمې لهٔ ص۔ ۷۹ نه ۸۱ پورې او وروستنی الزام دَ پاره ص ۸۱ حاشیه ملاحظه کړئ۔

[2] هم دغه ځائې ص۔ ۸۱ ۔

دا الزامات پهٔ دهٔ دَ افواه پهٔ بنا خلقو دَ (لهٔ) ځانه لګولی دی"[1] هرکله چې حافظ صاحب دَ دیو الزاماتو نسبت صرف اخون درویزه او دَ دبستان مذاهب مجوسی مصنف ته کړے دے ځکه نو مونږ دا وئیلے شو چې دَ حافظ صاحب پهٔ رائې کښې دا دواړه لیکونکی پهٔ خپلو الزاماتو کښې حق بجانب نهٔ وو۔

حافظ صاحب دَ اووم اعتراض پهٔ باب لیکی :۔

"دَ شفاعت انکار دے صرف تر دې حده کوی چې کوم خلق بې عمله وی او ناقصانو پیرانو پهٔ دې طمع کړی دی چې ستاسو به شفاعت کیږی هغوی به دَ قیامت پهٔ ورځ دَ حسرت لاس مږی او بخشش به ئې نهٔ کیږی"[2]

دَ دې پهٔ حاشیه کښې حافظ صاحب لیکی "او دا دومره خبره هم دَ اهل السنة دَ عقیدے نه خلاف ده"

زهٔ افسوس کوم چې دَ ډیر غور باوجود زهٔ پهٔ دې پوه نهٔ شوم چې حافظ صاحب دا نتیجه څنګه راوکښه۔ دا خبره پهٔ دې سیاق و سباق کښې شوې ده۔

"ګوره پهٔ کوم چار لهٔ ما بخشائښ غواړی۔ دَ لُستن پهٔ بهنه، یا دَ نمانځهٔ پهٔ بهنه یا دَ عبادت پهٔ بهنه۔ یا دَ کښلیو دَ دیدن پهٔ بهنه ردلته قرأت غلط شوے دے) یا دَ علم پهٔ بهنه یا دَ نسبت پهٔ بهنه یا دَ زهد پهٔ بهنه یا دَ شفاعت پهٔ بهنه ځنې ادمیان"[3]

دَ دې پهٔ سلسله کښې بیا خیرالبیان کښې تفصیل دے چې "زهٔ به ئې نیا مرزم........ دَ پیغمبرانو دَ شفاعت پهٔ بهنه چې چار نهٔ

---

[1] ایضًا۔ [2] مقدمه۔ ۸۲۔ [3] خیرالبیان دَ پېښور چاپ ۲۳۸ دَ کابل چاپ ۱۳۵ ا۔

کا پهٔ نخته دَ پېغامبرانو" ؎۱

دلته دَ "پیرانو" خبره نهٔ ده بلکې دَ پېغمبرانو پهٔ ارشاد دَ عمل دَ نهٔ کولو خبره ده چې دَ هغې پهٔ سزا کښې به خدائ پاک هغوی نهٔ بخښی او دَ خیرالبیان پهٔ متعلقه صفحه (۲۴۱) دَ سورة المدثر دا ایت دَ دې لاندې لیکلے شوے دے چې "فما تنفعهم شفاعةُ الشافعین" (پس نفع به و نهٔ رسوی دوی ته شفاعت دَ شفاعت کونکیو) او دَ دې ایت پهٔ تفسیرکښې حضرت مولوی مراد علی صاحب فرمائ۔

"شفاعت مؤمنانو لره دے نهٔ کافرانو لره" ؎۲

نو که چرې دَ پېغامبرانو پهٔ ارشاد عمل نهٔ کونکے بایزید انصاری لهٔ شفاعته محروم گڼی نو دې کښې کومه داسې دشواری ده چې حافظ صاحب ئې دَ اهل السنة دَ عقیدې خلاف گڼی۔

ترڅو پورې چې دَ نبوت دَ دعوې الزام دے۔ نو پهٔ خیرالبیان، مقصودالمؤمنین او صراط التوحید کښې خوڅهٔ داسې نښته چې دَ هغهٔ پهٔ بنیاد دَ اخون درویزه یا دَ بایزید انصاری دَ نورو مخالفینو دا خبره ومنلے شی چې پیر روښان دَ نبوت مدعی وهٔ۔ دَ حالنامې دَ بیان مطابق خو هغهٔ دَ قاضی خان پهٔ مخکښې لهٔ نبوته صفا انکار کړے وهٔ۔ دَ حالنامې دَ روایت مطابق دَ قاضی خان دَ یوې پښتنې پهٔ ځواب کښې بایزید انصاری ووئیل "من میگویم که هادی ام راه رسول علیه السلام می نمایم و علم النبی میدانم و مریدان را طریق توحید هدایت میکنم و از ضلالت و جهل و شرک باز میگردانم و حاسدان از روی حسد بجائے هادی مهدی و بجائے ولی نبی میگویند" ؎۳

---

؎۱ خیرالبیان ص۔ $\frac{۲۳۸}{۲۴۱}$ (کابل ۱۳۵ ب / ۱۳۶ ب) ۔ ؎۲ تفسیر یسیر۔ ص۔ ۷۲۸

؎۳ حالنامه۔ ص۔ ۲۵۲۔

ترجمه -" زه وایم چې هادی یم دَ رسول علیه السّلام لار ښیُم او دَ نبی علم باندې (خلق) پوهوم او مریدانو ته دَ توحید دَ لارې هدایت کوم او دَ ګمراهۍ جهل او شرک (له لارې) نه ئې منع کوم او حاسدان دَحسد له رویه دَ هادی په ځائې مهدی او دَ ولی په ځائې (دَ) نبی (دَ دعوی کولو خبرې) وائی"

البته یوه خبره په حالنامه کښې داسې ده چې که ده پخپله دَ نبوت دعویٰ نه وے هم کړې دَ اخون درویزه په نزد دَ ده دَ کفر دَ پاره کافی وه۔ حالنامه وائی:

"بدانید- چوں پیر دستگیر قدس سره را در خانه چهار روز گذشت ـ از حضرت رب العزت ندا در رسید که اے بایزید اگر خواهی بر تو آن سخنها بگویم که حبیب خود را گفته و فهمانیده بودم- پیر دستگیر قدس سره سر بسجده نهاد وگفت یا پروردگارا تو قادری و صمدی و قدرت داری و صمدی وَ قدرت داری و من بندۀ عاجز وکمترینم- اگر کار بهترین بر کمترین رسانی می توانی و درکار تو هیچ یکی را شرکت نیست و تو در کلام مجید خود فرموده قوله تعالیٰ- و اخرین منهم لما یلحقوا بِهِم- یعنی مبعوث ساخت درمیان دیگراں از مومنان که ایشان نرسیده اند باآنکه سابقانند امّا لاحق خواهد کرد حق تعالیٰ پسینیانرا بعلم و دانش و بمرتبه باپیشینیان و هو العزیز الحکیم و خدائی غالب است در امر بعث هرکرا خواهد برسالت فرستد- خداوند حکمت است ـ در اختیار پیغمبری برائی هرامتی- ذالک فضل الله- ایں نبوت یا بعث افزونیٔ کرم خدائیست یوتیه من یشاء میدهد آنرا هرکرا میخواهد والله ذوالفضل العظیم و خدائی خداوند فضل بزرگست که همه دُنیا و آخرت درجنب اں محقر و مختصر نماید-[1]

ترجمه: " یوه شئ- هرکله چې پیردستګیر قدس سره په کاله کښې څلور ورځې تېرې

---

[1] حالنامه ص- ۵۳-۵۴-

کړي، دَ رب العزت له لوری ورته اواز راغے چې اے بایزیده! که خوښه دې وی تاته به هغه خبرې وکړم چې خپل حبیبؐ ته مې کړې وې او هغوی مې پرې پوه کړی وو۔ پیر دستګیر قدس سره سر په سجده کښېښوه او وې وئیل، یا پروردګاره! ته قادر یې، صمد یې او قدرت لرې او زه عاجز بنده او کمترین یم۔ که دَ بهترین کار کهترین ته رسوې کولے شې او ستا په کار کښې هیڅوک شرکت نه لرې او تا پخپل کلام مجید کښې فرمائیلی دی۔ قوله تعالیٰ۔ واخرین منهم لما یلحقوا بهم۔ یعنی مبعوث یې کړه له مینځه دَ نورو مؤمنانو چې هغوی لا نه دی رسیدلی سابقانو ته ولې لاحق کوی به حق تعالیٰ وروستی په علم او دانش او مرتبه ورومبنیو سره و هو العزیز الحکیم او خدائې دَ بعث په امر غالب هر څوک چې وغواړی په رسالت یې لیږی۔ دَ حکمت خاوند دے۔ په اختیارولو دَ پېغمبری دَ هر امتی دَ پاره [1] ذٰلک فضل الله۔ دا نبوت یا بعث دَ خدائې دَ کرم زیاتوالے دے یوتیه من یشاء ورکوی یې هر چاته چې یې خوښه وی والله ذوالفضل العظیم او خدائې دَ لوئې فضل خاوند دے چې تموله دنیا او اخرت یې په مخکښې محقر او مختصر ښکاری۔ [2]

لکه چې مخکښې عرض وشه حافظ عبدالقدوس صاحب پخپله مقدمه کښې دَ اخون درویزه او دَ دبستان مذاهب دَ الزاماتو دَ تفصیل نه پس دَ هغو تردید کړے دے خو ورسره یې دا هم وئیلی دی چې

[1] دَ فارسی دَ دې جملې دا معنیٰ هم کیدے شی چې " دَ حکمت خاوند دے دَ هر امت دَ پاره دَ پېغمبر په غوره کولو " خو دا معنیٰ یې سیاق و سباق سره سمه نه ده۔

[2] کوم ایتونو ته چې په دې عبارت کښې اشاره شوې ده هغه دَ سورهٔ جمعه ایتونه دی۔

"په دې پاتو اعتراضونو کښې اول اعتراض دَ وحدة الوجود مسئله ده"[1] او له بده مرغه ئې بیا نور اعتراضات نه دی پېش کړی صرف دَ وحدة الوجود په باره کښې ئې دَ امت دَ علماؤ او صوفیاؤ وېناګانې راوړی دی. په دې کښې هیڅ شک نشته چې دَ وحدة الوجود مسئله په علماؤ کښې یوه نزاعی مسئله ده او که چا ئې په منلو کښې افراط کړے دے نو څنو نورو مقدسو مشرانو ئې په مخالفت کښې هم انتها کړې ده خو سره دَ دې هم چا په متفقه طور دَ وحدة الوجود منونکیو ته کافر نه دی وئیلی په دې سلسله کښې دَ ګران او فاضل ورور سید تقویم الحق کاکاخیل دا وېنا ډېره صحیحه ده:-

"زه به دغه همره ووایم چې که دَ بایزید نه مخکښې دَ بایزید نه لویو او پاکو صوفیانو دایا دَ دې غندې نورې خبرې کړی دی نو دَ اخوند درویزه بابا نه مخکښې دَ هغه نه لویو او درنو عالمانو دَ هغوئ په حق کښې دومره سخت او دومره ګران ټکی استعمال کړی دی چې دَ اخوند درویزه سخته ژبه دَ هغوی په مقابله کښې ډېره نرمه او ډېره پسته ښکاری. او اوس دَ حقې لارې خلق دواړه ډلې په حقه ګڼی"[2]

بیا دَ بایزید انصاری دَ "وحدت الوجود" په سلسله کښې دا خبره هم هېرول نه دی پکار چې دَ هغه "وحدت الوجود" داسې نه وه لکه چې ګڼلے شوے دے. حالنامه وائی:-

"روزے پیر دستگیر را شخصے پرسید که حال شما با خدا چگونه است. فرمود که گاهے او و گاهے از و. یعنی گاهے عروج نموده برتبه لطافت می رسم و گاهے نزول کرده درمرتبه

[1] مقدمه. ص ۸۲. [2] مخزن. دَ سید تقویم الحق کاکاخیل مقدمه. ص.

کثافت می ایم یعنی گاہے خودرا دریا می بینم و گاہے از دریا زاد وجود خود میدانم"[1]

ترجمه: "یوه ورځ یو سړی له پیر دستګیره پوښتنه وکړه چې ستا حال خدای سره څنګه دے وئ فرمائیل "چې کله هغه او کله له هغه" یعنی کله عروج وکړم او دَ لطافت مرتبې ته ورسم و کله نزول وکړم او دَ کثافت مرتبې ته راشم یعنی کله ځان دریاب وینم او کله له دریابه خپله هستی ګڼم" بالکل "تکنیکی طور بانديې دا وحدت الوجود نه بلکې وحدت شهود دے ځکه چې دَ "هم از وست" مقوله دَشهود دیانوده.

خو ترڅو چې دَ حافظ عبدالقدوس صاحب له خوا دَ اخون درویزه او بایزید تر منځه دَ وحدت الوجود په باره کښې دَ اختلاف او دَ دې اختلاف په بنیاد دَ بایزید برخلاف دَ کفر او ارتداد دَ فتوې لګولو تعلق دے ډېر په ادب عرض کوم چې دا تعبیر صحیح نه دے.

تر اوسه چې مونږ ته دَ اخون درویزه کوم کتابونه رارسیدلی دی دا دَ هغه خپل تحریر نه دے بلکې مخزن، تذکره او ارشاد الطالبین درې واړه دَ هغه دَ مشر ځوئ حضرت میاں عبدالکریم (کریمداد) له قلمه راوتلی او اخون درویزه ته منسوب شوی دی[2] او کریمداد صاحب او دَ هغه متبعینو دَ وحدت الوجود په سلسله کښې دَ هم هغو خیالاتو اظهار کړے دے چې دَ حافظ عبدالقدوس په خیال دَ اخون درویزه په نزد قابل مذمت وو۔ یوازې خیالات نه بلکې اصطلاحات او خاص طور سره دَ تصوّف شاعرانه مصطلحات ئې هم هغه استعمال کړی دی چې دَ ځنو علماؤ په خیال کښې دَ "روښانی شاعری" سره خصوصی تعلق لری او دَ هغو په بنا دیو عالمانو ځنی شاعران "روښانیان" ګڼلی دی

---

[1] حالنامه۔ص۔۱۹۷۔ [2] دَ مخزن مقدمه۔ص۔ لج۔

مثلاً کامل پیر، دَ وحدت بحر، شاه، شهي (دَ محبوب حقیقي دَ پاره) دَ ذکر خفي فضیلت وغیره. دا ټول اصطلاحات دَ کریمداد او دَ هغه دَ مقلدینو په لیکونو او شاعرۍ کښې مونده شي. مثلاً دَ کریمداد صاحب دَ الف نامې دا شعرونه وګورئ.

ت. توحید دے ته ئې ګوره
چې جلوه کا لور دَ لوره
له چا راز کا په کعبه کښې
له چا راز کاندې له اوره

---

ث ثبوت دے دَ ذات دے
کل دا غیر نبوت دَ لات دے
هر طالب چې غیر بین دے
دے بنده عابد دَ لات دے

---

ج جمال دے څرګندیږی
نور ئې لور په لور تاویږی
یو آفتاب دے را ختلے
په دا بې شماره ذرو باندې نمایږی

---

ح حیات واړه دَ شاه دے
دَ دو بین لورے سیاه دے
غه څبنتن دَ دواړو کانو

چې په دا ژوندون اګاه دے
دَ حیاة مثال ئې بحر
دَ امکان مثال ئې کاه دے

---

چې زه الله په وحدت یو وو
ولې اوس مې دَ صورت حجاب ترمیان دے

---

یو ابه دی چې بهیږی
څوک په سیند څوک په ویاله کښې

---

هر چې یو وینی یو غواړي
دَ عارف دغه نقشه ده

---

دَ اخون درویزه دَ نمسی عبدالحلیم بابا دا شعرونه ولولئ۔

دَ کثرت لورے به پربږدم
دَ وحدت په لور به ځمه

---

خ خالی کړه زړه له غبره
دَ دوین مه شه اے یاره

---

ی هم یو ګوره یو غواړه
اګاه وسه له دیداره

---

نوکه په دېو خبرو دَ اخون درویزه دَ "توحید" شعور نه دردېدو نو دا خبره منل به ډېر ګران شي چې دَ اخون درویزه او دَ بایزید انصاری ترمنځه دَ مخالفت لویه وجه دَ بایزید دَ "وحدت الوجود" نظریه ده۔

حافظ عبدالقدوس صاحب او سید تقویم الحق صاحب دَ خیرالبیان دَ دې حوالې "ګوره ورمندان په عارف موحد هغه دے چې خپسر له یګانګۍ پس ترو خلاص وینی له بندګۍ ور له ګناهان۔ په بندګۍ زما په نظر مشرک شی په پرېښولو ئې کافر شی په نظر دَ ادمیان[1] په بنیاد دا وائی چې ګنډې بایزید دَ وحدت په "مقام" کښې له عبادته، بندګۍ او ګناه نه خلاص ګڼی"[2] زما په ناقصه رائې کښې دَ خیرالبیان له دې وېنا نه دَ خپل مطلب نه زیاته نتیجه وکښلے شوې ده۔ دَ بایزید دَ تصوف په باره کښې په غلط فهمیو دَ بحث په موقع ما دا عرض کړے وه چې دَ معرفت له مقامه پس نور څلور مقامات په اصل کښې سپرونه دی او صرف دَ سکونت درجه یواځې دَ پیر کامل برخه وی۔ که دا نکته دَ توجه لاندې ساتلے شوے وے نو شاید چې دَ بایزید انصاری په سلسله کښې دا اشکال نه وے پیدا شوی۔

بایزید صرف دَ "وحدت" په سېر کښې چې یو عارضی کیفیت دے له نمانځه یا عبادت نه منع کوی او دا هغه دَ سکر حالت دے چې ځنې صوفیاؤ پرې دَ قرآن کریم دا ایت "لا تقربوا الصلوٰة وانتم سکاریٰ" (دَ سکر په حالت کښې نمونځ ته مه نژدې کېږئ) صوفیا نه انطباق کړے دے دا خبره مونږ داسې هم کولے شو لکه چې دَ بې هوشۍ یا مدهوشۍ په

---

[1] خیرالبیان پېښور چاپ ص۔ ۲۷۶۔ [2] دَ خیرالبیان مقدمه۔ ص ۸۶ او دَ مخزن مقدمه۔ ص۔ نه۔

حالت کښې انسان قانوني او شرعي مسئولیت نه لري دغسې په دې حالت کښې هم هغه مرفوع القلم شي. دَ پیران پیر رحمه الله علیه په بارهٔ کښې راغلي دي چې هغوی به فرمائیل:

*"چوں موحد بتوحید رسد (یا رسید) آنجانه موحد ماند نه توحید. نه واحد ماند نه بسیار نه خودی نه خدائی، نه بنده نه بندگی، نه هستی نه ذات نه جبرئیل نه قرآن نه ولی نه ولایت نه ذات نه صفات نه اسم نه رسم نه اول نه آخر نه ظاهر نه باطن نه بهشت نه دوزخ نه روشنی نه تاریکی نه نفی نه اثبات نه آسمان نه زمین نه مقام نه منزل نه طلب نه طالب نه مطلوب نه عاشق نه عشق نه معشوق نه آدم نه ابلیس نه کفر نه اسلام نه کافر نه مسلمان نه مومن نه ایمان نه حلال نه حرام نه وجود نه غیر"* [۱]

ترجمه:- "هر کله چې موحد دَ توحید مقام ته ورسي نو هغه ځائې نه موحد پاتې شي نه توحید نه واحد پاتې شي نه ډېر، نه خودی، نه خدائی نه بنده نه بندګی نه هستي نه ذات نه جبرئیل نه قرآن نه ولی نه ولایت نه ذات نه صفات نه اسم نه رسم نه اول نه آخر نه ظاهر نه باطن نه جنت نه دوزخ نه رڼا نه تیاره نه نفی نه اثبات نه اسمان نه زمکه نه مقام نه منزل نه طلب نه طالب نه مطلوب نه عاشق نه عشق نه معشوق نه آدم نه ابلیس نه کفر نه اسلام نه کافر نه مسلمان نه مومن نه ایمان نه حلال نه حرام نه وجود نه غیر."

حضرت عبدالقادر جیلانیؒ سره دا خبره هم منسوبه ده چې هغوی دَ قرآن کریم دَ آیت واعبد ربك حتی یاتیك الیقین (دَ خپل خدائې عبادت تر هغه کوه چې مرګ در ورسي) دا معنی هم کړې ده چې هر کله

---

[۱] مناقب غوثیه (قلمی) له محمد صادق شیبانی سعدی قادری-

پهٔ انسان دَ مرګ نه مخکښې دا مرګ وارد شی نو ټول عبادتونه ترې ساقط شی۔ دغسې مجدد الف ثانی حضرت سید احمد سرهندی فرمائیلی دی:۔

"ډېر ځل داسې کیږی چې نور خلق ځنې اوقاتو کښې عبادت کوی او هغه عبادت ناپسندیده وی او بزرګان پهٔ ځنو حالاتو کښې عبادت پرېږدی او دغه پرېښول پسندیده وی"۔ [1]

پهٔ صوفیانه لټریچر کښې دَ جذب او دَ سکر دَ دې حالت پهٔ باره کښې ډېر تفصیلات راغلی دی او پهٔ داسې حال کښې قول او عمل قابل مواخذه نهٔ شی ګڼلے او دا هغه حال دے چې دَ هغې پهٔ باره کښې نور څوک څهٔ چې پخپله دَ مخزن مرتب عبدالکریم صاحب داسې وئیلی دی:۔

بل دِ زیان هم درنه رسېږی لهٔ اغیاره
کهٔ ئې کښېنوے پهٔ اورکښې دا دَ اور لمبه کابله
یا به ستونې ئې راکاږې کل تېغونه
دَ فولادو بې اختیاره پهٔ یو ځله
پهٔ حالت دَ بې خودئ به هسې وینه
ولې نهٔ به هسې اوسی تل تر تله [2]

بلکې یو ځائې کښې خو تر دې حده تللے دے چې کهٔ دَ شعر ظاهری معنے واخلو نو دَ نعوذ بالله وېنا به ورسره ضروری شی۔

دا مقام دَ بې سرانو دے طالبه
محمد غندې مېږه راله حیران دے [3]

---

[1] مکتوبات امام ربانی حصه هفتم دفتردوم ص۔ ۳۷ (ترجمه)
[2] مخزن۔ ص۔ ۱۶۱۔ [3] ایضاً۔ ص۔ ۱۶۳۔

دَ عبدالکریم صاحب دَ الفنامې په شرح "مفتاح الدقائق" کښې دَ پښتونخوا مشهور ولی الله حضرت حاجی بهادر صاحبؒ دَ کوهاټ ځائې په ځائې هم دغسې خبرې کړې دی. یو څو نمونې ئې لاندې پېش کوم:-

"هر که با محبوب حقیقی اشنا شد واشنا گشت بایں صفت عرفت ربی بربی پس چرا شناخت را پیش گرفته من طلب البیان بعد العیان فهو فی الخسران". [1]

ترجمه: هر څوک چې محبوب حقیقی سره اشنا شه او دَ عرفت ربی بربی (خپل رب مې په خپل رب وپېژانده) په صفت پوه شه نو دا شناخت ئې ولې ځان ته مخامخ نیولے (یعنی بیا نور څه کوی) چا چې دَ عیان نه پس بیان وغښته نو هغه په زیان کښې دے"

یو ځائې کښې دَ ابن یمین دا شعر نقل کوی -

منکه در ذات او شدم فانی
کے بسوئے صفات می بینم [2]

(زه چې دَ هغه (خدائې پاک) په ذات کښې فانی شوم نو صفاتو ته کله ګورم-)

دَ واعبد ربّك حتّٰی یاتیك الیقین دَ آیت په معنٰی کښې وائی:-

علمائے ظاهری میگوئند که بندگی کن تا غایتے که ترا مرگ آید و علمائے باطنه میگوئند که بندگی کن تا غایتے که ترا یقین شود [3]

"علمائے ظواهر وائی چې عبادت کوه تر هغه حده چې تاله مرګ درورسی او باطنی علماء وائی چې بندګی تر هغه وخته کوه چې یقین حاصل کړې"

اوس نو که دَ دې ټولو جملو ظاهری معنی واخلو نو څرګندہ خبره ده

[1] ذکر شوے کتاب ص. ۹۲. [2] ایضًا ص - ۷۱ - [3] ایضًا ص ص. ۷۲، ۹۷، ۱۲۲،

چې دا به دغو مشرانو سره انصاف نه وی۔ هم دغسې دَ بایزید دَ خبرو هم هغه معنیٰ کول پکار دی چې هغه ئې کول غواړی۔

زه په دې لړ کښې نور څه لیکل نه غواړم ځکه چې دَ بایزید انصاری دَ تعلیماتو په باره کښې دَ نورو اعتراضونو دَ هغو ځوابونو نه پس چې مولینا عبدالقدوس صاحب کړی وو صرف دا دوه خبرې "وحدت الوجود" او "دَ نمانځه دَ ترک" خبرې داسې وې چې ما جواب طلبې گڼلې۔ او ما پرې دَ خپلو خیالاتو اظهار وکړه۔

په بایزید انصاری یو بل الزام دَ هغه دَ سیاست په باره کښې دے هر چا پرې دَ "فکر ہر کس بقدر ہمت اوست" مظاهره کړې ده۔ دَحافظ عبدالقدوس صاحب غندې معتدل مزاج عالم هم دا وائی چې "دې تحریک دَ بایزید په وختو کښې سیاسی رنګ اغښتے (اخستے) وه۔ کېدے شی چې سیاست دَ ده په مقصد کښې وروستو شامل شوے وی بهرحال دا یو سیاسی تحریک وه" له

که خیرالبیان، مقصودالمؤمنین، صراط التوحید، حالنامه او دَ روښنائی تحریک دَ شاعرانو دیوانونه قابلِ اعتماد سندونه وی نو په دېو کښې دَ روښنائی تحریک دَ سیاسی اړخ په باره کښې هیڅ نشته۔ دَ بایزید تحریک بالکل یو مذهبی تحریک وه۔ مغلو سره دَ توئې دَ قبېلې وړومبی ډغره هم دَ مذهب په نامه شوې وه او حالنامه کښې په دې ضمن کښې ځان له یو باب تړلے شوے دے چې عنوان ئې دے "بیان سبب افتادن عداوت و نقیض میان مردم مغل و پیر دستگیر" ۲ه (دَ مغلو اودَپیر دستګیر ترمنځه دَ دښمنۍ او ورانۍ دَ جوړېدو دَ سبب بیان)۔ او دغه ضمن کښې لیکلی

---

له دَ خیرالبیان مقدمه۔ ص ۳۷-۳۸۔ ۲ه حالنامه۔ ص ۲۸۴۔

شوی دی چې دَ بایزید انصاری هغه مریدان چې دَ توئ قبیلې سره ئې تعلق وو دَ خپل سردار عبدالکریم په مشرۍ کښې ئې دَ ژوند کار پرېښو او ځان ئې دین ته وقف کړه نو څه موده پس پرې یوه قافله راغله دَ هغوی دَ فانی دنیا سره دَ مینې په وجه دَ بایزید مریدان ډېر غصه شو او مال ئې ترې تالا کړه او اسونه ئې پرې وځغلول۔ دَقافلې خلقوحکومت ته شکایت وکړه۔ سرکاری لښکر پرې حمله وکړه څه ئې ووژل او څه ئې ځان سره کابل ته په بند بوتلل۔ بایزید انصاری دَ دېو قېد شوېو کسانو دَ خلاصی دَ پارهٔ مرزا حکیم ته ولیکل او مرزا حکیم دَ پېښور حاکم ته دَ بایزید برخلاف دَ اقدام کولو فرمان وکړو۔ دَ پېښور حاکم معصوم خان دَ دې حکم په نتیجه کښې بایزید سره هغه جنګ وکړه چې په روښنائی تحریک کښې دَ اغاز پور دَ جنګ په نامه مشهور دے۔[1]

دَ "خیرالبیان" فاضل مقدمه نګار حافظ عبدالقدوس صاحب "حالنامه" باندې تنقید کوی او وائی: "دَ حالنامې مؤلف او مرتب دَ مغلو زېرِسایه وخت تېرولو ځکه هغه دَ بایزید او دَ مغلو دَ اصولی دښمنۍ ذکر نه کوی"[2] ما چې دَ حالنامې دَ کومو صفحو خلاصه بره بیان کړه دَ هغو خلاصه محترم حافظ صاحب هم دَ خپلې مقدمې دَ ص ۲۸ نه ترص[3] پورې بیان کړې ده ځکه نو زه نه شم وئیلے چې دَ دغې خلاصې په موجودګۍ کښې حافظ صاحب څنګه دَ حالنامې بیان دَ اعتبار ور نه ګڼی او لُستونکیو ته دَ اخون درویزه او دَ دبستان دَ مصنف په بیان دَ اعتبارکولو ترغیب ورکوی حالانکې اخون درویزه دَ بایزید انصاری ښکاره دښمن دے ځکه دَ بایزید انصاری برخلاف به دَ هغه شهادت دَ تاریخی روایاتومطابق

---

[1] حالنامه ص ص- ۲۸۴- ۲۹۰ (خلاصه زما په الفاظو کښې) [2] مقدمه دَخیرالبیان ص- ۳۸-

هله دَ قبلولو وی چې بل څوک يې هم تائيد وکړی. تر څو چې دَ "دبستان"
دَ بيانونو تعلق دے نو دَ روښانيانو دَ براه راست روايت په مقابله کښې
يې بيان څکه دَ تمسک قابل نه دے چې يو دَ دبستان ليکونکے متنازعه
فيه کس دے او بل دا چې دَ براه راست روايت په ضد دَ بل چا
بيان هيڅکله دَ اعتبار وړ نه شي ګرځيدے.

دَ دبستان المذاهب کومه حواله چې حافظ عبدالقدوس صاحب
ورکړې ده هغه دا ده :-

"روزے کہ عبدالقادر داخل اوردوئے سعید خان می شد از آواز نقارہ وکرنا اسپ
او می ترسید و از میان مردم برکنار می رفت۔ افغانے با او گفت آنچہ حضرت میاں
روشن فرمودہ است اسپ بجا می آرد و شما نہ۔ خمار ایں مستی خواہید کشید۔
عبدالقادر پرسید میاں چہ فرمودہ است افغان گفت۔از مغولان دوری و اجتناب۔

ترجمه: کوم وخت چې عبدالقادر دَ سعيدخان دَ لښکر ځائې ته راننوتلو دَ
نغارې او دَ بګل دَ آواز نه دَ هغه اس ترهه کوله او دَ خلقو دَ ميانځه
به يو طرف ته تلو۔ يو پښتون عبدالقادر ته ووئيل چې مياں روشن
(بايزيد) چې څه وئيلی وو اس په هغې عمل کوی او ته پرې نه
کوې۔ دَ دې مستئ نتيجه به در رسی۔ عبدالقادر ترې تپوس وکړه چې
مياں (بايزيد) څه وئيلی وو هغه پښتون وئيل چې دا يې وئيلی وو چې
دَ مغلو نه لرې وسئ او ځان ترې ساتئ۔ (مقدمه دَ خيرالبيان ص ۳۹)[له]

په دې ضمن کښې څو خبرې ياد لرل پکار دی۔ اول دا چې دا خبره
دَ عبدالقادر په باره کښې شوې ده او له دې هيڅوک انکار نه شي
کولے چې دَ عبدالقادر تر دوره چې راتللو نو دَ روښانيانو تحريک بالکل

---

له دا ترجمه دَ حافظ عبدالقدوس صاحب ده۔

سیاسی شوے وه- او کیدے شی چې دغه پښتون خپلې خبرې لره دَاهمیت ورکولو دَ پاره دَ بایزید نوم اخستے وی-

دویمه دا چې دبستان لکه دَ نورو خبرو غندايې دَ دې خبرې هم څه حواله نه ورکوی چې له کومه ځایه ئې اخستې ده-

دریمه دا چې حافظ عبدالقدوس صاحب دَ حالنامې دا روایت بغیر له څه شک او اعتراضه قبول کړے دے چې "دَ بایزید ښځه بی بی شمسو دَ یوسف زو په قید کښې وه- دَ ځامنو سرونه ئې ورته پرېکړی ورمخکښې کړل- دَ سترګې نه ئې اوښکه توئې نه کړه- وئیل ئې چې زما ځامن په غلا په کاسیرئ کښې نه دی مړه شوی چې زه پرې خفه شم- افرین شه دربانډې ځامنو! چې دَ خدائې په لار کښې محکم پاتې شوئ" [۱]

نو چې دَ بی بی شمسو په خیال دَ هغې ځامن دَ خدائې په لار کښې مړه شوی دی نو دا تحریک سیاسی نه دینی وه- ځکه بی بی شمسو دا هم وئیلے شو چې دَ وطن دَ پاره، دَ قوم دَ پاره یا دَ حق دَ پاره مړه شوئ دَ حالنامې اصل الفاظ دا دی:- "جان شیرین را در راه حق تعالیٰ فدا کردید" (خپل خوږ ژوند مو دَ خدائې په لاره کښې قربان کړه) که بایزید انصاری یا دَ هغه ځامنو څه سیاسی اغراض لرلے نو دَ بی بی شمسو نه خو به ئې نه پټول او چې بی بی شمسو ته دَ خپل خاوند او ځامنو سیاسی اغراض نه وو معلومه نو بل چاته دا حق نه رسی چې دَ بایزید په باره کښې دا خیال انګیزی وکړی-

دَ روښنائی تحریک دَ غیر سیاسی کیدو یو قاطع ثبوت دا دے چې هرکله دا تحریک په دوه ډلو کښې تقسیم شه نو دَ دې تقسیم اواختلاف

---

[۱] دَ خیرالبیان مقدمه- ص- ۳۵- دَ دې واقعې تفصیل دَحالنامې په ص. ۳۱۷ راغلے دے-

بنیاد سیاسی نه وه لکه چې دَ یو سیاسی تحریک دَ پارهٔ ضروری وی بلکې یو ځل دا اختلاف دَ مال په بنیاد دَ الله داد (رشیدخان) او امداد ترمینځه راغلے وه ځکه چې بایزید انصاری خپلې لور کمال خاتون ته "خوېٔ" وئیلی وو او امداد به دَ هغې ځامنو له په غنیمت کښې دَ بایزید دَ نمسو (دَ ځامنو له طرفه) برابرهٔ حصه ورکوله۔نو په دې الله داد چې دَ جلال الدین ځوئې وو له امداده بېل شه[1]۔ له دې نه اګاهو دَ بایزید انصاری له خاندانه بهر چې دا اختلاف پیدا شه نو دَ شیخ عمر دَ "خلافت" وخت وه او قدم اپریدی او اسحٰق مومند یوهٔ ډله جوړهٔ کړهٔ چې شیخ عمر پرې نوم "ناحقی" کښېښو۔ دَ دې فرقې لویه عقیده داوه چې "وحدت" هر چا ستائیلے دے خو استقامت ئې پکښې نه دے کړے نو مونږ ځکه وحدت اختیاروو۔ دوئ دَ بایزید ځوئې "خیرالدین" له هم دعوت ورکړه چې دوئ سرهٔ یو ځائې شی خو ناکام شو او شیخ عمر خیرالدین ته ولیکل چې غم غرض پرې مه کوه پخپله به خپلې سزا ته ورسی"[2] نو دا هرکله چې دا دوارهٔ اختلافه غیرسیاسی وو نو ځکه دا دعوی غلط ده چې روښانی تحریک سیاسی وه ځکه چې دَ انشعاب او اختلاف په صورت کښې دَ یو تولی هم هغه حصې متاثرې کیږی چې اصل حېثیت لری۔ دَ فروعی اختلافاتو په نتیجه کښې داسې انشعاب نه کیږی چې لاره بېله شی یا قتل و غارت ته نوبت ورسی۔

اګرچې دَ بایزید انصاری دَ تحریک دَ غیرسیاسی ثابتېدو نه پس دَ دې خبرې ضرورت نشته چې زه دَ ځنو هغو خیال انګیزیو ځواب ورکړم چې دَ هغو له رویه دې تحریک ته "ملی" یا دَ "بزګرو" تحریک وئیلے

---

[1] حالنامه۔ص۔۳۹۱۔ [2] حالنامه ص۔۳۸۸۔

شي۔ خو دې سلسله کښې داسې غلط فهمي خورې کړے شوی دی چې ازاله ئې ډېره ضروری ده او لږه او بره پښتونخوا کښې داسې ډېر دانشوران شته چې دغو دوو کښې يوه يا بله نظريه لری او دا خدشه بې ځايه نه ده چې که دَ دې خيال انګرېزو مخه ونه نيوے شوه نو دا مفروضې به هم لکه دَ پټې خزانې الهامی وګڼلے شي۔

دَ روښنائی تحريک دَ ملی کېدو په حق کښې صرف دا دليل ورکېدے شي چې دَ بايزيد او دَ مغلو تر منځه جنګونه شوی دی۔ ما دَ دې مقالې په سر کښې دَ حالنامې په حواله دا عرض کړے وه چې دَ دغه کتاب له رويه دَ بايزيد او مرزا حکيم دَ حاکم ترمنځه صرف يو جنګ شوے دے۔ دَ روښنان په ژوند کښې دا لږه پښتونخوا دَ اکبر نه بلکې دَ کابل سره وه۔ او دَ مرزا حکيم دَ مرګ نه پس چې اکبرمان سنګه راستولو نو بايزيد انصاری مړ شوے وه۔ اکبرنامه کښې ابوالفضل دَ مرزا حکيم دَ مرګ (۱۲ رشعبان ۹۹۳ مطابق ۳۰ر جولائی ۱۵۸۵ء) دَ خبرنه پس دَ هغه په کردار چې څه ليکلی دی له هغې نه صفا پته لګی چې دَ مرزا حکيم او اکبر تر منځه تل ورانه وه او دَ مرزا دَ فساد او بغاوت باوجود اکبر هغه معاف کړے وه او افغانستان ئې ورېخښلے وه۔[1] اکبرنامه کښې په هندوستان دَ مرزا حکيم دَ حملو هم ذکر دے۔ دَ هغه له طرفه دَ خطبې او سکې ذکر هم شته او هغه ټول تفصيلات پکښې موندے شي چې دَ هغو له رويه دا يقين کېدے شي چې مرزا حکيم خپل ځان بادشاه ګڼلو لکه خطابونه ورکول، جاګيرونه وېشل وغيره۔[2] همايون چې له کابله

[1] اکبرنامه دريم جلد ص۔ ۷۰۳، ۷۰۴۔ (ترجمه دَ بيوريج) [2] اکبرنامه ۴۲۳، ۴۲۵، ۴۴۹، ۵۱، ۴۹۲، ۵۰۶ - ۵۰۹۔ طبقات اکبری ص۔ ۱۱۸ دَ دې تائيد کوی۔

په هند راتلو نو کابل ئې مرزا حکیم ته پرېښے وه - او منعم خان ئې ورلره اتالیق او منتظم مقرر کړے وه او دَ همایون دَ وفات نه پس اکبر دغه انتظام جاری ساتلے وو او چې مرزا حکیم به کله په هند حمله وکړه یا مرزا سلیمان او شاه ابوالمعالی به په کابل راوختل نو اکبر به افغانستان دوباره مرزا حکیم ته بخښلو[1] دَ دې ټولو تفصیلاتو په رڼا کښې دَ دې خبرې هیڅ وقعت نه پاتې کیږی چې هرکله دَ بایزید انصاری او دَ مرزا حکیم تر منځه جنګ شوے وه نو ځکه بایزید دَ مغلو دشمن وه -

دَ دې بر عکس حالنامه دا وائی چې اکبر بادشاه دَ بایزید انصاری مرید وه - دَ حالنامې روایت دا دے :-

"چوں اکبر بادشاه صراط التوحید را دید فرمود که من شیخ را به پیری قبول کردم و هر خدمتے که بفرماید بجا آرم - بعدهٔ چیزی هدیه برائے پیر دستگیر فرستاد - خلیفه را نیز خلعت بخشید[2] -

"اکبر بادشاه چې صراط التوحید ولیده - وئې فرمائیل چې ما شیخ (بایزید انصاری) په پیرۍ قبول کړه او هر خدمت چې (ماته) وفرمائی په ځائې به ئې راوړم - بیائې دَ پیر دستګیر (بایزید انصاری) دَ پاره څه هدیه راولېږله او خلیفه (دولت چې دَ چا په لاس صراط التوحید لېږلے شوے وه) ته ئې هم خلعت وبخښلو"

دَ شیخ عمر وغیره دَ قتل او دَ جلال الدین دَ ګرفتارۍ نه پس چې روښانیان ورته لویه غزا (غزائے کلان) وائی دَ حالنامې دَ روایت مطابق اکبربادشاه جلال الدّین او دَ پیر دستګیر ټول صحابه راخلاص کړه - دله زاک ئې جلا وطن کړه او یوسفزئی ئې څه قتل اوڅه قید کړه[3]

---

[1] دربار اکبری - دَ منعم خان خان خانان او دَ مرزا حکیم حالات - [2] حالنامه ص - ۲۸۲ -
[3] - هم دغه کتاب ص ۳۲۳ - دَ حالنامې لیکونکی دَ دیروا قعاتو اوږد تفصیل په یوځان له باب کښې لیکلے دے ما صرف دَ باب دَ عنوان مفهوم پیش کړو -

حالنامه جلال الدین سره دَ اکبر بادشاه دَ مهربانیو پهٔ ذکر کښې لیکي:-

"بعده اکبر بادشاه مراجعت فرموده بسوئی لاهور و جلال الدین را همراه خود گرفته به لاهور بُرد- هر روز مهربانی زیاده میفرمود- یک سال جلال الدین جیو در خدمت بادشاه بود- روزے بادشاه نصیحت فرمود اے جلال الدین! افغانان دشمن ما و شما اند- نباشد که بگفتهٔ ایشان کار کنی و از من جدا شوی- جلال الدین جیو گفت- انشاء الله باختیار خود از خدمت بادشاه جدا نخواهم شد- الحق که مهربانی بادشاه بر جلال الدین جیو از حد بیشتر بود و ایشان نیز ارادهٔ خدمت بادشاه بجان و دل داشت" [1]

ترجمه: لهٔ دغه پسه اکبر بادشاه لاهور ته مراجعت وفرمائیلو او جلال الدین ئې ځان سره لاهور ته بوتللو- هره ورځ به ئې پرې زیاته مهرباني فرمائیله یو کال جلال الدین جیو دَ بادشاه پهٔ خدمت کښې وهٔ- یو ورځ بادشاه (ورته) نصیحت وفرمائیلو چې اے جلال الدینه- پښتانهٔ زمونږ او ستاسو دښمنان دی- هسې نه چې دَ دوی پهٔ وینا عمل وکړې او لهٔ ما بېل شې- جلال الدین جیو ووئیل- انشاء الله پهٔ خپل اختیار به دَ بادشاه لهٔ خدمته نهٔ جدا کېږم- حقه دا ده چې پهٔ جلال الدین جیو دَ بادشاه مهرباني لهٔ حده زیاته وه- او هغوئ هم دَ زړهٔ لهٔ اخلاصه دَ بادشاه دَ خدمت کولو اراده لرله"

دَ بایزید انصاری او دَ هغهٔ دَ خاندان دَ پښتو ژبې دَ پاره خدمت هم دَ روښنائی تحریک دَ ملی شعور پهٔ ثبوت کښې پېش کېږی- دَ دې حقیقت نه هېڅوک انکار نهٔ شی کولے چې دَ پښتو ادب پهٔ وده او ترقۍ کښې دَ بایزید او دَ هغهٔ دَ تحریک ډېر لاس دے- خو دَ پښتو دا خدمت خو دَ روښنائی تحریک لوئې دښمن

[1] حالنامه - ص - ۳۲۶

اخون درویزه هم کړے دے نو کهـ صرف پهـ دې روښنائی تحریک ته ملّی تحریک ووایو نو بیا به دَ اخون درویزه "ضد بایزید" تحریک هم ملی تحریک ګڼو- هسې دَ دېو دواړو خپلو کښې دَ مخالفو قوتونو پښتو ته څخه کم ازکم دا خیره ثابتوی چې دَ هغه وخت پښتنو کښې یا کم ازکم خوانده پښتنو کښې دَ پښتو سره دَ مینې یوه جذبه خامخا پیدا شوې وه- او ځکه بایزید انصاری او اخون درویزه (لهـ عجیبه اتفاقه یو انصاری بل ترک وهـ) دواړه مجبور وو چې خپل پېغام پښتو کښې لوستونکیو ته ورسوی-ګڼی نو دواړو پهـ نورو ژبو کښې هم لیکونه کړی دی- مخزن کښې دَ پښتو سره سره فارسی هم شته تذکرة الابرار والاشرار اوارشادالطالبین پهـ فارسیـ دی- دغسې دَ بایزید انصاری صراط التوحید پهـ فارسیـ کښې دے- مقصود المؤمنین ئې پهـ عربیـ کښې دے خیرالبیان ئې پهـ عربیـ، فارسیـ، پښتو او هندیـ کښې دے او دَ روښنائی تحریک سرکاری تاریخ "حالنامه" پهـ فارسیـ لیکلے شوے دے-

دَ مخزن دَ لیکونکی پهـ باره کښې هیڅ معلومات نشته چې هغهـ خپل "ضد بایزید تبلیغات" لهـ اباسینډه پورې رسولی وو کهـ نه خو دَ بایزید انصاری پهـ باره کښې خو دَ حالنامې روایت دا دے چې دهـ خلیفه دولت له صراط التوحید دَ دې غرض دَ پاره ورکړے وهـ چې دَ هندوستان شهنشاه اکبر ته ئې ورسوی (لکه چې مختصراً ئې ذکر وشهـ) دغسې ئې خلیفه یوسف له فخرالطالبین دَ بدخشان دَ مرزا سُلیمان دَ پاره ورکړے وهـ لـه او سند او بلوچستان کښې دَ هغهـ خلیفه مودود پهـ کلونو دَ هغهـ پېغام سندیانو او بلوڅانوته رسولو

---

لـه حالنامه ۲۸۲-

اوَ دې په نتيجه کښې دېر خلق دَ ده په لاس دَ پير دستګير مريدان شو[1] نو ځکه دا خبره ثابتول به ډېر ګران شي چې "روښاني نهضت" په هند کښې دَ لوديانو دَ پاچاهۍ له سقوط وروسته دَ ملي خپلواکۍ او تاريخي برم دَ ساتنې دَ پاره دَ افغانانو دَ مبارزو کړی ده"[2]

دَ بايزيد دَ جانشينانو او دَ هند دَ مغلي باچايانو تر منځه دَ تعلقاتو نوعيت هم دا څرګندوی چې دَ بايزيد انصاري تحريک سياسي اوقومي تحريک نه وه که داسې نه وے نو دَ جلال الدين ځوئې الله داد (پيدائش ۱۰۰۰ھ) به دَ مغلو منصب او دَ رشيد خان خطاب هغه وخت نه قبولے چې دَ تره (شيخ عمر) ځوئې ئې مغلو سره په جنګ اخته وه دَ روښاني تحريک نظرياتي مبلّغ مرزا خان چې دَ جلال الدين زوم او دَ رشيد خان اوخښے وه دَ مغلو دَ پاره په هغه جنګ کښې مړ وه چې ۱۰۴۰ھ کښې دکن کښې دَ بيجاپور خلاف دَ نواب بهادرخان اوارادت خان په مشرۍ کښې شوے وه او دا مرزا خان په ټول روښاني لټريچر کښې دَ "شهيد" په نامه ياد دے حالانکې دَ مغلو دَ پاره دَ بيجاپور مُسلمانانو سره په جنګ کښې مړ وه۔

دَ حالنامې دَ مصنف پلار ابوبکر دَ رشيد خان سره يو ځائې په ۱۰۲۴ھ/۱۶۱۵ء کښې دَ شه بيګ خان (چې وروستو خان دوران شه) اطاعت قبول کړے وه او دَ حالنامې مصنف ليکي چې دے دَ جهانګير دومره خوښ وه چې ورسره به ئې تل پښتو وئيله[3] او په هغو سلو کسانو کښې وه چې دَ جهانګير باچا ذاتي محافظان وو۔ په دې ترقۍ ابابکر داشعرونه وئيلي وو۔

---

[1] حالنامه ص ۲۷۸۔ [2] "دَ روښانيانو ملي نهضت۔ دَ محمد صديق روهي سريزه ص۔ الف۔ [3] حالنامه ص۔ ۴۲۳۔

اباـبکر سرفراز شو پهٔ عالم کښې
چې پهٔ خپله حضرت شاه یاد کړهٔ لهٔ سلو
ظاهری بادشاه سایه دَ الٰهی ده
شکراته دَ لوئې بادشاه وی دَ وئیـلو[1]

اګرچې دَ مال غنیمت پهٔ تقسیم دَ الله داد (رشید خان) او امداد ورانه راغلې وه[2] خو دَ دې ورانې او مغلو سره دَ رشید خان دَ ملګرتیا باوجود هغهٔ دَ چرخئ[3] ښار مغلو ته دَ پرېښولو پهٔ سلسله کښې پهٔ امداد باعث شهٔ او امداد ئې خبره ومنله۔ او دَ رشید خان پهٔ وجه دَ امداد ژوند بچ شهٔ[4]

بیا هم دې "ملی تحریک" چې دَ مرزا خان انصاری پهٔ مشرئ کښې دَ مغلو دَ پاره دَ اسحٰق مومند او قدم اپریدی دَ "ناحقی" ډلې (چې تول پښتانهٔ وو) څنګه وینې و بهولې دَ هغې خونړے تفصیل پهٔ حالنامه کښې درج دے۔[5] نو ځکه دا مفروضه هم قطعًا غلطه ده چې دَ بایزید انصاری تحریک یو ملی نهضت وهٔ۔

دَ سوویت یونین مستشرق اتبار اسلانوف دَ بایزید روښان پهٔ باره کښې یوه مقاله لیکلې ده چې ښاغلی محمد اکبر معتمد ئې ترجمه کړې او پهٔ ۱۳۵۳ هش دَ پښتو ټولنې لهٔ خوا "دَ روښانیانو ملی نهضت" دَ عنوان لاندې دَ یوې وړې رسالې پهٔ صورت کښې چاپ شوې ده دې مقاله کښې بغیر لهٔ څهٔ ثبوته دَ بایزید انصاری برخلاف هغه

[1] حالنامه۔ص۔۴۲۳ [2] حالنامه ص۔۳۹۱ [3] جهانګیر دا ځائې "چرخ" بولی۔ دَ الیګزنډر راجرز ترجمه دَ توزک جهانګیری۔ص۔۳۱۲ [4] حالنامه ۳۹۴-۳۹۵
[5] حالنامه ص ص۔ ۳۸۹ - ۳۹۱ -

الزامونه دوباره شوي دي- چې دَ حقيقت نه لرې او محض دَ هغه مخالفينو په هغه لګولي دي مثلاً دَ هغه په باره کښې دا الزام چې دے دَ حلول او تناسخ قائل وه [1] يا دا چې بايزيد دَ وحدت الوجود نه دا نتيجه اخستې ده چې "په لمانځه کښې دَ مکې خوا ته مخ ګرځول ضروري نه دي" [2] او داسې نور ډېر مضحکه خيز الزامونه- خو تر ټولو لوئ "انکشاف" ښاغلي اسلانوف دا کړے دے چې دَ روښانيانو نهضت او حرکت يو دهقاني او دَ بزګرانو حرکت وه چې دَ ملايانو او فيوډالانو په مخالفت روان وه" [3]

دَ دې خپل "عظيم الشان" تحقيق په حق کښې چې استاذ اسلانوف کوم دلائل پېش کوي هغو کښې وړومبے دليل دا دے چې دَ ماثرالامرا "مهتمم" مولوي عبدالرحيم وائي چې جلال الدين ته څنې ليکونکيو "روشاني" ليکلے دے چې "په قوي احتمال دا به روستائي وي" [4] حالانکې دا "روستاني" دَ "روشاني" تصحيف دے او که چا ورته روستاني يا روستائي وئيلي هم وي نو غلطي به ئې کړې وي- دَ دې نه پس دَ اضافي دليل په طور ښاغلے استاذ اسلانوف دَ عبدالقادر بدايوني (چې دے ورته له غلطۍ عبدالقدير بدايوني وائي) دَ يوې قلمي نسخې نه دا عبارت نقلوي "برائے سرزنش طائفه روستائی من سنگ (چې په اصل کښې مان سنګ دے- ناقل) مقرر شد- [5] (دَ روشنائي روستائي طائفې دَ سرزنش دَ پاره من سنګ (چې په اصل کښې مان سنګ دے)-

---

[1] دَ روښانيانو ملي نهضت- دَ اسلانوف مقاله- ص-۵ [2] هم دغه مضمون ص-۲۱ مترجم دَ اسلانوف له دې خبرې سره اختلاف کړے دے او نوټ ئې پرې ليکلے دے- [3] هم دغه مضمون ص ۱۸ - [4][5] هم دغه مضمون ص-۱۷-

مقرر شه - استاذ اسلانوف وائي چې هر کله دا دواړه کلمې یعنې "روښانۍ" او "روستانۍ" څنګ په څنګ لیکلے شوی او ترې لاندې کرښې هم راښکلے شوی دی نو ځکه دَ غلطۍ احتمال له مېنځه........... تللے وه" (کذا) [1] استاذ اسلانوف په ملا عبدالقادر بدایونی (چې دے ورته عبدالقدیر وائي) دومره اعتماد لری چې دَ هغه دَ غلطې خبرې په بنیاد دَ یوې مفروضې عمارت جوړوی او شاید چې دا ورته یا معلومه نه ده یا ترې هېره شوې ده او یا ئې هېرول غواړی چې هم دې ملا عبدالقادر بدایونی هم دغه کتاب (منتخب التواریخ) کښې دَ ۹۹۴ھ په حالاتو کښې چې دَ پیر روښان ذکر کړے دے نو شروع ئې داسې کړې ده چې "له نن نه پینځویشت کاله اګاهو یو هندوستانی سپاهی پېښه سړی ځان له دَ پیر روښانۍ خطاب تجویز کړه" دیودوو کرښو کښې درې غلطې خبرې شوی دی او دَ ده په سند اسلانوف لګیا دے تاریخ سازی کوی -

دَ اسلانوف بل "دلیل" دا دے چې بایزید انصاری دَ وېش دَ نظام په پښتنو کښې دَ راڅرګولو مقصد لرلو [2] ځکه نو "فیوډالان" ئې مخالف وو او ده دَ بزګرانو په مرسته دَ حکومت او خانانو برخلاف جنګونه کول - حالانکې دَ بایزید له ټولو نه زیات مخالفت یوسف زیو کړے وه او هغه جنګ چې ورته "غزاې کلان" ویلے شی او پکښې دَ بایزید ځامن وژلی شوی وو دَ یوسف زیو سره شوے وه او اسلانوف پخپله منی چې په "یوسف زیو" کښې دَ وېش نظام تر ۱۹۲۹ء (یعنی له بایزید انصاری نه څلور سوه کاله پس هم) دَ "وېش" په سلسله کښې یوه بېله مضحکه خېزه خبره بناغلی اسلانوف داکړې ده چې خوشحال بابا

---

[1] هم دغه مضمون ص - ۱۷ - [2] هم دغه مضمون ص - ۱۶ - [3] ایضاً ص، ۱۵ -

ئې دَ دې مخالف ګڼلے دے او په دې ضمن کښې ئې تاريخ مرصع سره دا عبارت تړلے دے "زما دَ مور لَه خوا نيکه ملک تور اورکزی په اول کښې دَ روښانيانو په حرکت او نهضت کښې ګډون کړے وه او بيا ئې دغه حرکت پرېښود او دَ مغلو په خوا لاړ- دا دی (؟) ملک تور امداد ته دَ خبرو او مباحثې په وخت کښې څه وئيل" زه چمتويم چې ستا هر فرمائش ومنم مګر دَ خپل کور او پښتې اختيار نه درکوم" له

وړومبے خو ملک تور خټک نه وه بلکې اورکزے وه- او دَ تاريخ مرصع دَ مؤلف دَ مور لَه خوا نيکه وه- ځکه نو دَ "خټکو په تاريخ" کښې دَ وېش دَ مخالف په حېث ذکر دَ ښاغلی اسلانوف مقصد نه پوره کوی- بيا دوېمه او اهمه خبره دا ده چې هر څوکه دَ دې حوالې ډېرې خبرې صحيح دی خو په دېو الفاظو کښې چې ليکونکی يا مترجم په "واوينو" کښې بند کړی مونږ ته په تاريخ مرصع کښې نه ښکاری تاريخ مرصع کښې عبارت داسې دے:-

"پس لَه يوه مدته په تيراه کښې په زمکه دَ ستورې دعویٰ يو ځبله دَ ورک زی وشوه- امداد طرفداری دَ يوه لور وکړه- ملک تور عبدالعزيز خيل چې نيکه دَ مولف وه لَه موره لاسته، لَه امداده ازرده شه- ورته ئې وئيل چې پيره نور هر امر دې منم امّا يو دَ کاله بل دَ پښتې واک نه ورکوم، امداد هم ورسره دښمنی راواخسته- دے راغے مغلی شه- لښکر ئې دَ مغل په تيراه روان کړه دے دَ وړاندې شه امداد ئې لَه تيراه وويست" ۲ه

---

له هم دغه مضمون ص ۱۱۴- ۲ه تاريخ مرصع - ۲۵۱ -

زه دا منم چې بناغلی معتمد دَ اسلانوف عبارت له روسی ترجمه کړے دے ځکه نو که دا کتےمټ دَ تاریخ مرصع دَ عبادت په شان نه وی نو دَ کرمولو نه دے (هر څو که پکار دا وو چې دا خبره ئې څرګنده کړې وے چې حوالې دَ اصل ماخذونو نه نه بلکې دَ اسلانوف روسی مقالې څنې اخستے شوی دی) خو لکه چې محترمو لستونکیو به محسوس کړی وی دَ اسلانوف عبارت معنوی لحاظ سره دَ تاریخ مرصع عبارت سره لوئې تفاوت لری. اسلانوف دا نتیجه راوباسی چې "دا ښکاره ده چې دَ پښتنو دَ تاریخ په نومورې مرحله او دوره کښې دغه دَ وېش قانون پوره معمول او مشهور وه دَ ملک تور له وېنا نه دا معلومېږی چې ده غبنتل چې دَ قبیلوی لوړتیا په خاطر ځان دَ وېش دَ سیستم نه چې په هغه وخت کښې مروج وه مستثنٰی کړی مګر په مقابل کښې امداد دې استثناء ته قائل نه وهله

دَ دې په مقابله کښې دَ تاریخ مرصع روایت دا دے چې په ورکزیو کښې دَ مستورې په زمکه دَ دوه فریقو تر منځه جګړه پیښه شوه چې یو فریق پکښې ملک تور وه. امداد دَ ملک تور دَ مخالفینو ملګرتیا وکړه او دَ دې............... په نتیجه کښې ورته ملک توروویل چې " پیره نور هر امر دې منم اما یو دَ کاله بل دَ پټی واک نه درکوم" اوس که دا خبره اسلانوف په اراده پټه ساتلې وی نو دَ مؤرخانه بددیانتۍ ارتکاب ئې کړے دے او که دومره اهمه خبره ئې نظرانداز کړې وی نو دَ جهالت اظهار ئې کړے دے. دربېمه خبره پکښې نه شی کیدے.

---

له دَ اسلانوف مقاله. ص. ۱۵

دَ ملک تور لهٔ دي واُقعې البته یوه خبره دا هم ثابتېږي چې کم از کم دَ امداد تر زمانې پهٔ ورکزیو کښې دَ "وېش" وجود نهٔ وهٔ اوټول پښتون دَ یو "فیوډالی" نظام دَ لاندې وهٔ او ټولو روښانیانو چې امداد هم پکښې شامل وهٔ دا "فیوډالی نظام منلو

دَ ښاغلی اسلانوف پهٔ شان محترم عبدالحئ حبیبي مرحوم هم پهٔ خپله یوه مقاله کښې دا خیال انګیزي کړې ده چې بایزید دَ عوامي تحریک قیادت کړے وهٔ دے وائي: روښان پیر دَ افغانستان پهٔ تاریخ کښې دَ هند دَ مغولیه امپراتورانو مخې ته دَ دغسې اتل ځائې لري چې دَ خپلې روحاني ډلې څخه دَ وګړو دَ نجات لپاره دَ شاهنشاهانو دَ بریالیو لښکرو مخې ته درېدلے، جنګېدلے بریالے سوے، مات سوے او وژل سوے دے- دے پهٔ خیرالبیان کښې مکرراً ځان "عامي" بولي یعني وګړے"[1]

دَ یو عالم او خاص طور دَ داسې عالم چې پهٔ پښتو ئې ډېر احسانات دي او اوس دَ خواب ورکولو دَ پاره ژوندے هم نهٔ دے پهٔ باره کښې دا وېنا خهٔ ښهٔ خبره نهٔ ده چې ښاغلی حبیبي مرحوم دلته ډېر لوئې کتمان حق کړے دے- اول خو لکه چې مخکښې عرض وشهٔ دَ حبیبي مرحوم روښان پیر دَ هند دَ مغولیه امپراتورانو مخې ته..... دَ وګړو دَ نجات لپاره هېڅ درېدلے نهٔ دے بیا دا خبره ئې هم محض بې بنیاده غلطه او صریحاً دروغ ده چې "دے پهٔ خیرالبیان کښې مکرراً ځان "عامي" بولي یعني وګړے"

حقیقت دا دے چې کوم ځائې کښې خیرالبیان کښې بایزید روښان

---

[1] ایضاً ص ۱۵ [2] دَ خیرالبیان سریزه- ص ۷- او دَ روښان یاد ص - ۲۷۱-

ځان ته "عامي" وئيلې دے لـه هغه دَ کتابت غلطي ده چې دا فقره" زه عامي مېړه يم" دَ عربي دَ فقرې "انا رجل امي" سـه او دَ فارسي دَ فقرې "من مرد اميم" سـه ترجمه ده- او لکه څنګه چې بې شماره ځايه پهٔ خيرالبيان کښې "کعبه" دَ "قابه" پهٔ شکل ليکلې شوې ده دغسې "امي" هم دَ "عامي" پهٔ شکل پهٔ پښتو کښې ليکلے شوے دے او دَ حبيبي مرحوم شان سره دا نهٔ جوړيږي چې خپلو لوستونکيو له ئې پهٔ دانسته ډول داسې فريب ورکړے دے لکه چې اسلانوف دَ روښنائي پهٔ تصحيف دا تکے "روستائي" ګڼلے وو او دَ روستائي معنیٰ ئې بزګر کړې او پهٔ دې ئې دَ خپل "تحقيق" دَ عمارت بنياد جوړ کړے دے-

دَ نوې خبرې دا ده چې دَ خيرالبيان پهٔ کومه صفحه "زه عامي مېړه يم" راغلې دے هلته مولينا عبدالقدوس صاحب پهٔ "مېړه" دا حاشيه ليکلې ده چې پهٔ اصل نسخه کښې دَ "مېړه يم" پهٔ ځائې "ميريم" ليکلے شوے دے-ٰعـه دَ کابل دَ عکسي چاپ پهٔ ص-١٠٠ الف پهٔ وړومبي کرښه "زه عامي ميريم" راغلې دے اوکهٔ دَ استدلال دغه معيار جاري وساتلے شي چې بناغليو اسلانوف او حبيبي مرحوم ئې مثالونه پيش کړي دي نو دَ دې فقرې به داسې ترجمه کوؤ چې "زه دَ عوامو مير يعني بادشاه يم" بيا بله بده خبره دواړو ليکونکيو (اسلانوف او حبيبي مرحوم) دا کړې ده چې دَ بايزيد انصاري سره دَ خپل عقيدت دَ اظهار دَ پاره ئې پهٔ هغهٔ دا تهمت هم لګولے دے چې هغه دَ مذهب دَ پردې لاندې ځکه خپل تحريک چلولو چې دَ اينګلز دَ قول مطابق دا دَ هغه وخت

---

لـه خيرالبيان دَ پېښور چاپ ص ١٠- ٢ـه هم دغه کتاب ص.٥. ٣ـه هم دغه کتاب ص ٧
٤ـه خيرالبيان ص-١٠٠- حاشيه-

شرائط وو ځکه په کليسا ټولنې او فيوډاليزم باندې مستقيمه حمله ناممکنه وه.[1] مرحوم حبيبي صاحب ليکي.

"روښان پير د خپلې سياسي مبارزې لپاره د مظلومې ډلې راټولوله او جنګونه هم د روحاني لارې څخه کامیابه کړله نو ځکه ده خپله د طريقت او عرفان لار داسې وټاکله چې[2] "په زړو سرفروش او فداکار مريدان توره په لاس د سياسي مبارزې ميدان ته راوباسي روښان پخپله له خانقاهه راووت او د جګړې پر ډګر توره په لاس ودرېدے د ده مريدانو او زامنو او نورو اخلافو هم د عرفانه سره سياست درلود او د طريقت تر چوخې لاندې ئې تېره توره ملګرې وه".[3]

دا خبره به ښاغليو اسلانوف او مرحوم حبيبي ته ښه برېښېدې او د "مبارزې د ټېکټيکس" په نامه به ئې جائزه کړې خو د يو مسلمان او پښتون په نظر کښې دا صريحًا منافقت او د حسن بن صباح د مسلک پيروي ده چې مقصد دې ئې سياسي وي او چغه دې ورته مذهبي واغستولے شي او که داسې ټېکټيکس په پښتنو کښې کامیابېدے شي نو بيا د "روښاني نهضت" مخالفينو د پاره هم جائزه ده چې د اخون درويزه سرپرستي وکړي.

زما په خيال دا ټول مشکلات بلکې فريب ورکونکي خيالات د خيرالبيان او د حالنامې د نه لوستلو او يا پرې د غور نه کولو

---

[1] د روښانيانو ملي نهضت. د ښاغلي اسلانوف مقاله. ص-۱۳- [2] د خيرالبيان سريزه - ص ۱۷. د روښان ياد. ص- ۲۷۹ - [3] د بايزيد روښان د خيرالبيان سريزه ص - ۱۸ - د روښان ياد - ص - ۲۸۳ -

په نتیجه کښې پیدا شوی دی. زه اسلانوف دومره ګرم نه ګڼم ځکه چې هغه "حالنامه" نه وه لستې خو حبیبی صاحب مرحوم خو د حالنامې حوالې بار بار ورکوی نو اوس سوال دا پیدا کیږی چې که دوی حالنامه لُستې وے نو دوئ به "روښانی تحریک" نه عوامی تحریک ولې وئیلو ځکه چې په روښانی تحریک کښې تر ټولو لوئې قوم پرست یعنی "احداد" هم ډیر داسې کارونه کړی دی چې د "عوامیت" برخلاف دی. زه د لستونکیو نور صبر نه تماموم خوچې کومې حوالې دې مقاله کښې شته ده د هغو په بنا دا وئیلے شو چې :-

۱: د اغاز پور د جنګ ملګرېو سره به د بایزید انصاری د نورو ملګریو په مقابله کښې زیات ښه سلوک کیدهٔ.

۲: په مال غنیمت کښې به یوه حصه د بایزید انصاری د خاندان زیاته وه.

۳: د الله داد خان او امداد ورانه په پیسو راغلې وه.

نو که نور هیڅ هم نه ده د دیو درېو حوالو په موجودګۍ کښې د بایزید انصاری د تحریک په باره کښې د عوامیت او د "دولت د تعمیم" دعوی شنګه کیدے شی.

د ښاغلی اسلانوف او د هغه د ملګریو په ځواب کښې به زه صرف د خیرالبیان یوه حواله پیش کړم. د خیرالبیان وینا ده :-

"ترو به کمزوری وته وائی شیطان مه پریږده خپله مایه زورورو ته ونه غله وکاسیرو ته شرم ستا دے چې دوئ وته پریږدی عیان ترو میرڅی کا په دا بهنه په میان د ادمیان." [1]

---

[1] خیرالبیان پېښورچاپ ص-۱۹۹- کابل عکسی چاپ ۱۱۴ الف- ۱۱۴ ب

دَ خیرالبیان لـه دې عبارته دا نتیجې براه راست راووځی:

ا: کمزورے دَ طبقاتی نفرت دَ پاره شېطان لمسوی.

ب: دَ شېطان لسون داوی چې هېڅوک دې خپله مایه زورورو ته نهٔ پرېږدی او

ج: شېطان دَ کمزوری او زورور تر منځه دَ سرمائې پهٔ بنیاد نفـرت پیدا کوی.

لـه دې حوالې نه پس هم کهٔ دَ جدلی مادیاتو ځنې مبلّغین دَ بایزید انصاری "نهضت" ته دَ بزګرانو یو طـبقاتی نهضت وئیـلو باندې اصرار کوی دا دَ هغوی خوښه دهٔ خو بایزید روښان خو دا طبقاتی شعور او جدوجهد دَ شېطان لمسه ګڼی او دعویٰ کوی چې دهٔ ته خدائې وائی چې " او بایزید وَ سړی بویه چې وپېژنی شېطان مکر او مېرځی یُ یشعولی دې کا دَ دهٔ پهٔ نهٔ نغښته تل دَ تل مدام[له].

او بیا لـه دې نه پس ته دَ شېطانی تحریکاتو تفصیل بیانوی چې یو یکښې دَ کمزورو او زورورو تر منځه دَ تصادم لمسون هم دے (لکه چې یُ ذکر وشهٔ) نو دَ خیرالبیان چې بایزید انصاری او دَ هغهٔ ملګری یُ "الهامی" کتاب ګڼی، دَ دې واضحې او پرېکړې فېصلې نه پس بایزید ته دَ طبقاتی شعور پهٔ بنا مبارزه کونکے یا دَ هغهٔ تحریک ته دَ بزګرانو نهضت وئیل کهٔ نور هېڅ هم نهٔ وی نو یو ډېر لوئې جسارت خو خامخا دے.

دَ بایزید روښان دَ تحریک دَ سیاسی اَړخ دَ ابتداء ثابتولو دَ پاره زمونږ دَ افغانستان او سوویت یونین ګران او محـترم لیکونکی یوه

---

له خیرالبیان پېښور چاپ ـ ص ـ ۱۹۴ کابل عکسی چاپ ۱۱۲ ا ـ ۱۱۲ ب ـ

واقعه هم بیانوی چې دَ محترم حبیبي مرحوم په الفاظوکښې داسې ده:-

"وائي چې ده په قندهار کښې یوه پښتنه میرمن ولیده چې دَ مغلی استعمار سپاهیانو ئې دَ کوټیو وښتان دَ ژرندې په پله پورې تړلی وو او دا مظلومه ښځه دَ ژرندې دَ پله سره چورلېده نو روښان دونې متاثر سو چې دَ مغولو سره ئې په خپل عمری جهاد لاس پورې کی" [1]

دا "واقعه" دَ بایزید انصاری دَ خیرالبیان په مقدمه او "دروښان یاد" کښې دَ حبیبي مرحوم مقاله "دَ روښان پیر عصر او دَ هغه غورځنګ" کښې دَ اعظم ګړه دَ مجلي معارف دَ جلد ۱۹ ص ۲۳۵ دَ جون ۱۹۲۷ء په ګڼه کښې دَ یوې قلمی نسخې تذکرة الانصار په حواله راوړے شوې ده- دَ روښان یاد په ص ۲۶ بغیر له څه حوالې او دَ هم دغه کتاب په ص ۱۵۲ دَ معارف دَ نولسم ټوک دَ ص ۴۳۵ په حواله راغلې ده او دَ حبیبي مرحوم دَ پښتو ادبیاتو تاریخ نه یواځې دلته نه بلکې ډېرو ځایونو کښې اخستې شوی ده [2]. خو هېچرته دا خیال نه دے شوے چې ایا داسې ممکنه هم ده او که نه- ما دَ پښتونخوا او دَ نورو ځایونو له ډېرو خلقو دا پښتنه کړې ده چې (۱) ایا دَ ژرندې پله سره دَ انسان دَ وښتو تړل ممکن دی او (۲) ایا دَ ژرندې پله سره دَ انسان دَ تړلو په صورت کښې دَ ژرندې دَ پله ګرځېدل

---

[1] دَ خیرالبیان (کابل) سریزه- ص- ۷- دَ روښان یاد- ص- ۲۸۲- دَ خیرالبیان په مقدمه کښې استعمال شوے عبارت "دَ مغولو سره ئې په خپل الخ" دَ روښان یاد په مقاله کښې بدل شوے او دَ مغولو په ځای "ګورګانیانو" راوړے شوے دے-

[2] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک- دوهم چاپ په ص ص ۷۱ - ۲۷۰ دا "واقعه" دَ تذکرة الانصار په حواله رانقل شوې ده-

ممکن دی دَ دیو دوارو سوالونو ځوابونه ماته په نفی کښې راکړے شوی دی۔ که څوک مهربانی وکړی او داسې ژرندہ ماته راوښئ چې ورسره دَ انسان وېښته تړل ممکن وی یا هغې سره دَ انسان دَ تړلو په صورت کښې دَ ژرندې دَ پله ګرځېدل ممکن وی نو زه به ئې ډېره ډېره مننه وکړم۔ او چې تر څو داسې نه وی شوی نو زه مجبور یم چې دا خبره هم له هغو افسانو څنې یوه افسانه وګڼم چې دَ بایزید انصاری او دَ هغه دَ تحریک په سلسله کښې جوړې شوی دی۔

دې "افسانې" سره ښاغلی حبیبی مرحوم دا خبره هم زیاته کړې ده چې "دَ روحانیت په دنیا کښې دَ حضرت رسول الله (صلعم) په حضور عرض وکړه او دَ دغه ظلمونو دَ مخ نیوی او مدافعې اجازت ئې وُغښت چې دا روحانی اجازت ئې وموند نو راولاړ شو او له پښتنو څخه ئې دَ ظلم او ناروا دا تور څادر ونغښت او انصاف او عدل ئې جاری کړه۔ په دغو ورځو کښې دَ جالندر یوه مشهور بزرګ حضرت شیخ غوث الکرام ووئیل۔

" په کوهستان کښې بیا اور بل شه۔ خدائې دې خېر پېښ کړی" ښاغلی حبیبی مرحوم دَ "پېښ کړی" دَ توریو نه پس (۱) لیکلے او حاشیه کښې ئې دَ دې (۱) په ضمن کښې دَ "معارف ص۴۳۵ ج ۱۹" حواله ورکړې ده۔ اوس نو دا پته نه لګی چې دا حواله دَ کومې قصې په حقله ده ځکه چې دغه عبارت کښې درې قصې بیان شوی دی۔

(۱) دَ پښتنې جبین، دَ سر دَ وېښتو دَ ژرندې دَ پله سره دَ تړلو قیصه۔

ب: دَ بایزید انصاری له حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه دَ مدافعې اجازت غُښتل او دَ دې اجازت حاصلېدل۔

ج: دَ شیخ غوث الکرام قصه۔

خو که دا هم ومنو چې دَ "معارف" دغه حواله دَ دغو درېوارو قصو دَ پاره ده نو هم چې 'حالنامه' کښې دَ دې یوې قصې هم ذکر نشته نو منل به ئې گران شي۔ خاص طور سره دَ دوېمې او درېمې قصې په حالنامه کښې نه راتلل دَ دې خبرې ثبوت دے چې دا قصې فرضي دي ځکه چې "حالنامه" داسې قصې هېچرے هم نظرانداز کولو ته نه پرېږدي۔

دَ بایزید دَ ژوند په باره کښې چې شاغلی حبیبي مرحوم ته نورې کومې غلط فهمۍ شوې دي هغو کښې یوه دا ده چې مرحوم دَ حالنامې په حواله داسې وائي۔

"بایزید دَ عمر پر اوم کال دَ خپلې کورنۍ سره مخالف شه او پر شپاړسم کال دَ پلار سره تجارت ته ولاړ۔ او په هند کښې (ئې) دَ یوګیانو عقائد مطالعه کړه او دَ تناسخ او هندي او تارو (دَ تجسیم دَ عقیدې دَ خاوندانو پر افکارو ئې غور وکړ۔ څو چې پخپله ئې دَ خضر علیه السلام څخه ئې په خوب کښې اب حیات ومونډ او په ځلوېښتم کال ئې (دَ) اسم اعظم ورد هم وایه" [1]

په حالنامه کښې دَ خضر علیه السلام له خوا دَ اب حیات دَ مونډلو ذکر په ص ۲۹ او دَ اسم اعظم دَ ورد ذکر په ص ۴۸ شته

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک، دوهم چاپ ص ۲۶۹۔

نوم پېژندے

شی۔ له دې نه علاوه هم ډېرو ځايونو کښې جيبی مرحوم دَ حالنامې دَ صفحاتو غلطې حوالې ورکړی دی او داسې ښکاری چې هغوی داکتاب پخپله نه وه لُستے ځکه چې څنو ځايونو کښې دَ حالنامې حواله دَ "انسائيکلوپيډيا آف اسلام" په روايت او څنو ځايونو کښې دَ "اسلامی دائرة المعارف" په حواله ورکوی او چرته ئې چې په حالنامه نوټ ليکلے دے نو هلته دَ معارف اعظم ګړه او دَ اورينټل کالج دَمېګزين په حواله دَ اجزاو او صفحاتو شمېر ښئی خو ډېره دَ افسوس خبره ده چې دَ دېو ټولو حوالو باوجود مرحوم داسې ښکاره کوی لکه چې دوی دا کتاب لُستے وی۔ له دې وجهې دَ مرحوم له خوا دَ "حالنامې" په حواله ليکلی ټول روايتونه له اعتباره پرېوځی۔

له داسې رواياتو څخه يو روايت دَ حالنامې دَ ص۔ ۴۷۱ په حواله دادے:

"روښان يوائې خلق خپل روحانی مسلک ته نه رابلل بلکې له يوه معنوی تلقين سره چې دَ خلقو په زړونو کښې (ئې) اچاوه تېره توره اوکښلې چارهٔ ئې هم په لاس ورکوله چې له مغلو سره وجنګيږئ او دَ دوئ له اسارته ځانونه ازاد کړئ [1]

حالنامه کښې دَ بايزيد انصاری په ذکر کښې دَ داسې هيڅ قسم واقعې نخښه پته نه لګی نو خدائې خبر چې مرحوم حبيبی صاحب سرهٔ دَ حالنامې هغه کومه نسخه وه چې دَ هغې په بنياد هغوئ دا او داسې نور ډېر روايات راوړی او دَ تاريخ دَ چنيو دَ پاره ئې مشکلات پېدا کړی دی۔

---

[1] دَ پښتو ادبياتو تاريخ۔ دوهم ټوک۔ دوهم چاپ۔ص۔ ۲۸۳۔

دا کار مرحوم حبیبي صاحب یواځې دَحالنامې دَ قلمي نسخې سره نه دے کړے بلکې دَ چاپ شویو کتابونو په حوالو کښې هم ترې سهوې شوې دي. مثلاً دَ اکبر نامې په روایت وائی:

"بېرم خان دَ همایون له خوا په قندهار کښې حکمران وه او په ۹۶۱ھ دے همایون له قندهاره څخه کابل ته ورسره بوت[1] له دې حوالې داسې ښکاریږي لکه چې بېرم خان دَ بادشاه (همایون) سره یو ځائې کابل ته تللے وي حالانکې دا خبره په اکبرنامه کښې نشته دَ دې په مقابله کښې اکبرنامه کښې ئې ډېر په صراحت لیکلی دي:

هغه (همایون) دَ هندوستان دَ فتح کولو په نیت (له قندهاره) کابل ته ستون شه. هغه بېرم خان له په دې غرض رخصت ورکړه چې دَ دې مهم دَ پاره تیارے وکړي او چې څومره زر ممکن وي هغه (بادشاه) سره یو ځائې شي[2]

هم دغسې ښاغلی حبیبي مرحوم دَ توزک جهانګیری په حواله لیکلي دي چې:
"رشید خان چې...... نوم ئې الله داد دَ جلال الدین زوئې او دَ روښان نمسے وه چې تر ۱۰۲۸ھ وروسته دَ مغلو لښکر گرفتار کړه او دَ جهانګیر حضور ته ئې بوت[3]

اوس حقیقت دا دے چې دا خبره نه په توزک جهانګیری کښې شته او نه په حالنامه کښې بلکې دواړه کتابونه دَ الله داد دَ بادشاه دَ اطاعت دَ قبلولو او دَ بادشاه له خوا هغه سره دَ مهربانیو ذکر کوي. دَ مثال په طور توزک جهانګیری کښې بادشاه وائی:-

---

[1] هم دغه کتاب. ص. ۲۷۳. [2] اکبرنامه. جلد اوّل. ص. ۶۱۲. [3] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک. ص. ۳۹۹.

"هم دَ دغه میاشتې په نهمه ما خان دوران ته یوه مرصع توره ورکړه او دَ جلاله زوئې الله داد خان افغان دَ پاره مې چې وفادار شوے وه یو جړاؤ خنجر ولیږلو." [1] (دا دَ تیر دَ میاشتې نهمه ورځ یادوی چې ۱۷ / جولائی ۱۶۱۵ او دَ جمادی الثانی ۱۰۲۴ھ پنځلسمې سره سمون خوری)

دَ ۱۰۲۵ھ په واقعاتو کښې جهانګیر لیکی:-

"ما الله داد افغان ته چې زما نوکری ئې قبوله کړې وه او دَ شریر او بد اندیشی امداد نه بېل شوے وه او دربار ته راغلے وه لس زره روپۍ ورکړې۔" [2] (دا دَ ۱۱ / اپریل ۱۶۱۶ء مطابق ۲۴ / ربیع الاول ۱۰۲۵ھ واقعه ده) هم دَ دغه کال دَ اردی بهشت په دریمه (۲۳ / اپریل مطابق ۲ / ربیع الثانی یعنی دَ تیر انعام نه دولس ورځې پس جهانګیر الله داد خان افغان ته دَ یو مرصع خنجر دَ عطا کولو ذکر کوی۔ [3]

دَ الله داد خان افغان دَ خطاب او منصب په باره کښې دَ توزک جهانګیری روایت دے:"

"په یویشتم تاریخ الله دادخان افغان دَ خانۍ په خطاب معزز کړے شه او دَ هغه منصب چې هزاری ذات او شپږ سوه سواره وه دوهزاری ذات او هزار سواره ته (په ترقۍ) وچت کړے شه" [4]

دا واقعه له تیری واقعې نه اتلس ورځې پس شوې ده۔

توزک کښې جهانګیر لیکی:-

"په ۲۳ / ما الله داد خان افغان ته دَ رشید خان خطاب ورکړه او ورله مې پرم نرم (شال) ورکړه" [5] (دا دَ ۱۴ / ستمبر ۱۶۱۷ھ مطابق ۱۳ / رمضان ۱۰۲۶ھ واقعه ده)

---

[1] توزک جهانګیری۔ جلد اول۔ ص۔ ۲۹۵۔ [2] هم دغه کتاب ص۔ ۳۲۱۔ [3] هم دغه کتاب هم دغه مخ۔ [4] هم دغه کتاب ص۔ ۳۲۴۔ [5] هم دغه کتاب ص۔ ۳۹۔

دَ توزک جهانګیری له دیو حوالو ځنې دَ حبیبي مرحوم دَ هغو ټولو خبرو تردید وشی کوم چې دوی دَ توزک په حواله کړی دی یعنی:

ا- رشید خان (الله داد خان) تر ۱۰۲۸ه وروستو مغل دربار ته استولے شوے وه۔

ب- دے دَ مغلو لښکر ګرفتار کړے وه او

ج- له ګرفتارۍ ځنې پس دے دَ جهانګیر دربار ته بوتلے شوے وه۔

له دې نه علاوه دَ توزک جهانګیری دا اقتباسات دَ حبیبي مرحوم دَ هغه روایت هم تردید کوی چې دَ توزک دَ مزعومه عبارت نه پس ئې داسې راوړے دے "او وروسته نو دَ شاهجهان له خوا په دکن کښې دَ رشید خان په خطاب حاکم وه"[1] دا صحیح ده چې دَ وفات په وخت رشید خان دَ اورنګ اباد صوبه دار وه او دے دَ شاهجهان په عهد کښې وفات شوے دے خو دا خبره غلطه ده چې ده ته دَ رشید خان خطاب شاهجهان ورکړے وه۔

دا صحیح ده چې "الله داد خان افغان" (رشید خان اوّل) دَ جهانګیر په دور کښې دَ مُغلو دَ اطاعت منلو نه پس یو ځل بغاوت هم کړے وه خو دَ دې بغاوت په نتیجه کښې هم هغه "دَ مغلو لښکرو ګرفتار" کړے نه وه۔ دَ دې واقعې په باره کښې دَ توزک جهانګیری او دَ حالنامې ډېر تفصیلات سره مشترک دی۔ جهانګیر باچا په خپل توزک کښې دَ ۱۰۲۸ه په واقعاتو کښې لیکی: دَ دېو ورځو په واقعاتو کښې یوه واقعه دَ جلاله افغان دَ زوی، الله داد دَ بغاوت واقعه

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک۔ دوهم چاپ ص۲۹۹۰

ده"[1] بیا دَ دې واقعې تفصیل بیانوی دَ الله داد دَ "نمکحرامی" ذکر کوی او دَ مهابت خان دَ زوئې دَ قیادت لاندې دَ الله داد دَ یوې حملې دَ ناکامی په نتیجه کښې دَ الله داد په زړه کښې دَ مهابت خان په خلاف دَ دې شک اظهار کوی چې هسې نه مهابت خان ئې گرفتار کړی او لیکی:

"ماته چې دَ مهابت خان له خط دَ صحیح صورت حال پته ولگېده نو ما حکم وکړه چې دَ ده (الله داد) زوی او ورور دې گرفتار کړے شی او دَ گوالیار په قلعه کښې دې قید کړے شی"[2] حالنامه لیکی - چون بادشاه از رفتن خان صاحب خبر یافت هادی داد خان وصاحب داد را در قید آورده بگوالیر فرستادند"[3] ترجمه "هرکله چې بادشاه دَ خان صاحب (الله داد خان) له تللو خبر شه هادی داد خان (دَ الله داد خان ورور) او صاحب داد (دَ الله داد خان زوئې) ئې قید کړه او گوالیار ته ئې ولېږل" دا دواړه له څکښې نه جهانگیرخان سره دَ یرغمال په طور ساتلی وو لکه چې وائی "دَ احتیاط له رویه دا فیصله وشوه چې دَ هغه (الله دادخان) زوئې او ورور دې دربار ته دَ یرغمال په طور راولېږلے شی"[3] حالنامه البته لږ مختلف روایت بیانوی:

"اگرچه خان صاحب بدین معنی راضی بنود که از خدمت بادشاه جدا شود اما از حکم بادشاه ناچار گشته روانه آں صوبه گردید و هادی داد خان و صاحب داد را در خدمت بادشاه گذاشتند"[4] ترجمه - هر څو که خان صاحب (الله دادخان) په دې راضی نه وه چې دَ بادشاه له خدمته جُدا شی خو دَ بادشاه

---

[1] توزک جلد۲ ص-۸۵- [2] ایضاً- [3] حالنامه ص-۴۰۲-

[4] توزک-ص-۸۵ [5] حالنامه-ص-۳۹۷

لهٔ حکمه مجبور شهٔ او هغهٔ صوبې (دَ کابل صوبې) ته روان شهٔ او هادی دادخان او صاحب داد ئې دَ بادشاه پهٔ خدمت کښې پرېښوهٔ" مهابت خان سره دَ ورانې پهٔ دوران کښې امداد دَ الله داد او مرزا خان انصاری وغیره دَ امداد دَ پاره راغے خو چې پوه شهٔ چې الله داد مغلو سره جنګ کول نهٔ غواړی او "بېرته دَ بادشاه خدمت کښې دَ حاضرېدلو بالجزم اراده لری نو لهٔ الله داد خان رخصت شهٔ او تیراه ته ئې تشریف یوړهٔ" [1] ګویا دَ الله دادخان صرف او صرف مهابت خان سره اختلافات وو او دَ بادشاه پهٔ وفادارۍ بنهٔ کلک او ټینګ ولاړ وهٔ او ځکه ئې بادشاه ته "عرضداشت" لیکلے وهٔ چې "فقیر از بادشاه باغی نه شده اما مهابت خان ناحق قصد کشتن من کرد از ترس جان گوشه گرفتم. اگر بادشاه از سر تقصیر بنده در گزرد از سر قدم ساخته از راه ملتان بخدمت بادشاه بیایم و یک عریضه بدیں معنیٰ به اعتماد الدوله آصف خان نوشت.[2] فقیر لهٔ بادشاه ځنې باغی شوے نهٔ دے خو مهابت خان پهٔ ناحقه زما دَ قتل اراده وکړه او دَ ځان له وېرې مې ګوشه ونیوه. کهٔ بادشاه دَ بنده تقصیر معاف کړی نو لهٔ سره به پښې جوړې کړم او (پهٔ سر مه) دَ ملتان پهٔ لار دَ بادشاه خدمت کښې حاضر شم. او هم پهٔ دې مضمون ئې یوه عریضه اعتمادالدوله آصف خان ته هم ولیکله او چې اعتمادالدوله دا عریضه بادشاه ته پېش کړه نو بادشاه یو فرمان الله دادخان ته ولیکلو چې بې خطره دې راځی او بل فرمان ئې دَ ملتان صوبه‌دار باقرخان ته ولیکلو چې دَ رشید خان دَ پاره دې دَ باربردارۍ انتظام وکړی.[3] توزک کښې دَ دې تفصیلاتو تصدیق داسې شوے دے

---

[1] حالنامه ص ۴۰۲ [2] حالنامه ص ۴۰۳ [3] ایضاً

"باقرخان له ملتانه راغے او دَ باریابۍ شرف ئې حاصل کړه۔ تېرو پاڼو کښې بیان شوی دی چې دَ جلاله تاریکی ځوئې دَ فتح نصیب فوځ نه تښتېدلے وه او دَ تباهۍ لار ئې نیولې وه۔ هغه اوس پښېمانه وه او دَ باقرخان په واسطه ئې اعتمادالدوله ته دَ معافۍ درخواست کړے وه۔ دَ موخرالذکر (اعتمادالدوله) دَ عرض په نتیجه کښې دا حکم وکړه چې که هغه په خپلو کړو پښېمانه وی او مخ ئې دربار ته (دَ معافۍ) په امېد رااړولے وی نو دَ هغه جرمونه به معاف شی" په دغه ورځ (بهمن ۲۴م دَ زیارت ورځ) باقرخان دے (الله دادخان) دربار ته راوستلو او دَ اعتمادالدوله په سفارش دَ هغه له تندی دَ بدنامۍ داغ او دَ غم دوړه دَ معافۍ په پاکو ابو ووینځلے شوه"[1] دَ ۱۰۲۹ھ په واقعاتو کښې جهانګیر لیکی "الله داد افغان....... دَ اعتمادالدوله په سفارش معاف کړے شه او لکه چې ممکنبې فیصله شوې وه هغه ته ۲۵۰۰ (ذات) او دَ دوه سوه سورو منصب عطا شه۔[2]

له دې هر څه دا صفا څرګندیږی چې الله دادخان (رشیدخان) هیچرې ګرفتار شوے نه وه بلکې په ورومبی ځل چې دَ جهانګیر دربار ته تللے وه نو هم ډېر قدر مدار ئې شوے وه او لس زره روپۍ انعام ورکړے شوے وه[3] او بیا دَ خان خطاب او دوهزاری (ذات) هزارسوارمنصب ورکړے شوے وه۔[4] او لږې ورځې پس ئې دَ "رشیدخان" خطاب بیامونده وه[5]۔ او دَ بغاوت نه پس ئې چې اطاعت قبول کړه نو منصب ئې ورلره دَ دوهزاری نه (۲۵۰۰)(ذات) ته ورساوه۔[6] ځکه نو دا دَ ګرفتارۍ افسانه محض او محض یوه اختراع ده۔

---

[1] توزک ص۔۳۲۱ [2] ایضاً ص۔۳۲۴ [3] ایضاً ص۔۱۲۰ [4] ایضاً ص۔۱۵۳ [5] توزک۔ص۔۳۹۰
[6] توزک جلد ۲۔ ص۔۱۵۳۔

دلته دا خبره هم ډېر زیات اهمیت لري چې دَ ښاغلی حبیبی مرحوم په خیال "حالنامه دَ ۱۰۵۰ھ په حدود کښې لیکل شوې وه"[1] له دې صفا ښکاری چې مرحوم حبیبی دا اهم کتاب (حالنامه) هډو لُستلے نه وه۔ ځکه چې په کوم دلیل (یعنی دَ رشید خان په ۱۰۵۸ھ کښې وفات دَ ذکر) حبیبی صاحب مرحوم دَ حالنامې دَ لیک کال متعینوی هم هغه دَ دې دعوې ثبوت دے چې حالنامه دَ حبیبی مرحوم له نظره نه ده تېره شوې ځکه چې په حالنامه کښې دَ رشید خان دَ وفات او دَ هغه دَ اوصافو او دَ فرزندانو ذکر هم شته[2] نو ځکه لازمًا دا کتاب دَ ۱۰۵۸ھ نه وروستو لیکلے شوے دے او دَ حبیبی صاحب مرحوم دا ادعا غلطه ده چې حالنامه دَ ۱۰۵۰ھ په حدودو کښې لیکلے شوے کتاب دے۔ او عجیبه خبره ده ده چې یو خوا دا وائی چې حالنامه دَ ۱۰۵۰ھ په حدودو کښې لیکلے شوے کتاب دے او بل خوا دا هم وائی چې حالنامه کښې دَ اورنګ زیب تر عصره پورې وقائع" زیات کړے شوی دی[3] اوس که په دې ګزه ئې هم ښچ کوؤ نو اورنګ زیب په ۱۰۶۸ھ (مطابق ۱۶۵۸ھ) کښې شاهجهان معزول کړے وه او دَ خپلې بادشاهۍ اعلان ئې کړے وه۔ په دې لحاظ به هم پکار وه چې دا وئیلے شوے وے چې حالنامه کم از کم له ۱۰۶۸ نه وروستو لیکلے شوے کتاب دے۔

دَ دې معروضاتو په رڼا کښې زه دَ هغه مرحوم (عبدالحئی حبیبی) دَ پاره دَ مغفرت دَ دُعا سره عرض لرم چې هرکله مرحوم

---

[1] تو‌زک جلد ۲۔ ص ۱۲۰۔ [2] حالنامه۔ ص ص ۴۸۲۔ ۴۰۳

ته دَ حالنامې دَ لُستلو موقع نه وه حاصله نوکران لُستونکی دې هغه حوالې دَ مغالطې نتیجه وګڼی چې دَ حالنامې له نامې سره تړلې شوې دی -

حبیبی مرحوم داسې نور هم ډېرې تاریخی او جغرافیائی غلطۍ کړی دی چې ځنې خو ما دانسته نظرانداز کړی دی ځکه چې زمونږ دَ موضوع سره یې څه تعلق نشته او دَ ځنو په باره کښې به تاسو په راتلونکیو مخونو کښې زما تبصره ولولئ. دَ جغرافیائی غلطیو په ضمن کښې دَ مثال په طور دا یوه غلطی پېش کوی چې مرحوم دوه ځل کړې وه - دَ علی محمد مخلص په باره کښې دَ حالنامې او ماثرالامراء په حواله لیکی [1] او دَ رشیدخان سره چې دَ زوښان دَ کورنۍ څخه وه - په دکن کښې مستخدم وه او دَ شمس اباد کښې په رشیداباد کښې نامزیر ته نژدې وسیده [2] بیا دَ رشیدخان په باره کښې لیکی: په ۱۰۵۸ھ په دکن کښې مړ او دَ نامزیر په شمس اباد کښې په خپل باغ کښې ښخ کړ شه [2] دَ کتاب په سمونه کښې دَ "نامزیر" دا کلمه "نامذیر" شوې ده چې په اصل کښې "نامذیر" او جنوبی هند کښې واقع دے - شمس اباد دَ هندوستان دَ موجوده اترپردېش دَ فرخ اباد دَ ضلعې دَ قائم ګنج دَ تحصیل یوه قصبه ده چې دَ بړې ګنګا په جنوبی غاړه شمس الدین التمش اباده کړې وه - [3] هم دغسې رشیداباد هم دَ اترپردېش هغه قصبه ده چې رشیدخان

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک - دوهم چاپ - ص ۲۹۸ -

[2] هم دغه کتاب ص - ۲۹۹ - [3] تاریخ مرصع ص - ۹۳۵ - حاشیه ۴ -

اباده کړې ده او دَ بنګښو په حکومت کښې ورسره نژدې قائم ګنج نومې لويه قصبه اباده کړے شوه۔[1] دې ته به ئې مئورشيداباد يا مئو هم وئيل (او حبيبي مرحوم دا دواړه قصبې له شمالی هندوه وکښلی او جنوبی هند کښې بنئيلی دی۔ (دَ مئو په نوم دَ ګورداسپور ضلع کښې يوه بله قصبه هم ده چې اوس ورته پټان کوټ وائی خو دا هغه مئو نه دے)

(۳)

دَ بايزيد انصاری دَ ژوند په باره کښې دَ مختلفو ليکونکيو له خوا دَ پيدا کړيو شويو اهمو غلط فهميو دَ ازالې دَ کوشش نه پس زه اوس دَ هغه دَ تاليفاتو په ضمن کښې مختصراً هغه غلط فهمی لرې کول غواړم چې دَ تدبر يا دَ معلوماتو دَ قلت په نتيجه کښې خورې شوې دی۔ دَ دې مقالې په سرکښې دَ "خيرالبيان" په سلسله کښې ما څه نا څه معروضات پېش کړی دی ليکن هغه ځائې دَ دې موقع نه وه چې ما دَ مختلفو ليکونکيو دَ پيدا کړيو غلط فهميو ذکر کړے وے۔

خيرالبيان دَ روښانی تحريک له ټولو زيات اهم کتاب دے ځکه چې لکه ابتداء کښې وئيلی شوی دی دا دَ روښانيانو دَ عقيدې مطابق يو الهامی کتاب وه۔ او عجيبه خبره دا ده چې هم دَ دې کتاب په سلسله کښې ډيرې غلط فهمی خورې شوی دی له دې هم زياته عجيبه خبره دا ده چې دَ دې غلط فهميو دَ پاره څه قوی بنياد هم نه وه۔ دَ بايزيد انصاری او دَ هغه دَ دې کتاب ذکر له هر چا مخکښې دبستان مذاهب کړے دے۔ بيا هم

[1] عهد بنګښ ص۔ ۶۳۔

دَ دبستان مذاهب په بنیاد ائمه تلبیس یا غار تګران ایمان دَ
بایزید ذکر کوي او دَ دیو دواړو کتابونو لیکونکیو خیرالبیان لُستلے
څه چې لیدلے[1] هم نه وه زمونږ په زمانه کښې شاید چې
سرډینی سن راس وړومبے لیکونکے دے چې خیرالبیان ورلره په
لاس ورغلے دے او هغه دا نسخه په ۱۹۲۶ه کښې مارګن شترنه ته
ورکړې وه - دَ مارګن شترنه هغه مقاله چې په نیو انډین اینټی کوئری
(شماره ۵ دَ ۱۹۳۹ء) کښې چاپ شوې ده هم په دې نسخه مبنی ده-
بهرحال دَ دې کتاب په باره کښې وړومبۍ غلط فهمی دَاخون درویزه
له هغه بیانه پیدا کیږی چې پکښې ئې وئیلی دی:

و ارزانی چوں شاعر تیز فہم و فصیح زبان بود در انواع ضلالت و بدعت شعر
افغانی و فارسی و ہندی و عربی بیان کردہ و در اتمام کتاب ایں لعین موافقت
نمودہ "[2]

ترجمه - " او هر کله چې ارزانی تیز فهمه او فصیح زبانه شاعر وه او
په قسما قسم ګمراهیو او بدعتونو ئې په پښتو فارسۍ، هندۍ
او عربۍ کښې شعرونه وئیلی دی او دَ دې لعین (بایزید انصاری)
دَ کتاب په تکمیل کښې ئې مرسته کړې وه "

په دې بنیاد ډیرو لیکونکیو دَ دې اعتراض تکرار کړے دے
چې دَ خیرالبیان په لیکلو کښې ارزانی دَ بایزید روښان مدد کړے
دے- خو دا اعتراض پخپله دَ اخون درویزه دَ یو بل اعتراض په
رڼا کښې غلط ثابت شي - اخون درویزه له هغه عبارته څو کرښې

---

[1] راورټي چې په کومو الفاظو کښې دَ خیرالبیان ذکر کوی له هغو هم داسې څرګندیږی
چې ده هم دَ خیرالبیان نسخه نه ده لیدلې - ګرامر - دویم چاپ مقدمه - ص - ۳۲ - ۳۳ -
[2] تذکرة الابرار و الاشرار - ص - ۱۲۹ -

مخکښې چې بره رانقل شه وائي:

"این ملعون کتابے را تصنیف کرده بعضے کلمات او را بزبان عربی بلا ادراک ترکیب و ترتیب جمع آورده و بعضے را بزبان فارسی و بعضے را بزبان افغانی و بعضے را بزبان هندی امّا هر کدام ازین کلمات ناموزون و ناموافق افتاده بحدے که طبائع اہل علم ازان متنفر میگردد وآن را خیرالبیان نام برده" [له]

ترجمه: "دې ملعون (بایزید انصاری) یو کتاب تصنیف کړے دے چې د هغې څه جملې ئې په عربۍ ژبې څه په فارسۍ ژبې څه په پښتو ژبې او څه په هندی ژبې د ترکیب او ترتیب له پوهې بغیر راجمع کړی دی لیکن له دې جملو هره یوه تر دې حده ناموزونه او نامناسبه ده چې د علم د خاوندانو طبعیتونه ترې متنفر کیږی او دا کتاب ئې خیرالبیان نوملے دے."

نو که ارزانی "تیز فهمه او فصیح زبانه" شاعر وه او د "خیرالبیان" په لیکلو ژبې ئې بایزید انصاری سره مدد کړے وه نو بیا خو دا ناممکنه ده چې خیرالبیان دې د ترکیب او ترتیب هغه غلطۍ ولری چې اخون درویزه ئې کړی - او که د اخون درویزه دا اعتراض صحیح وی چې خیرالبیان د ترکیب او ترتیب غلطۍ لری نو بیا غلطه ده چې د ارزانی غندې تیز فهمه او فصیح زبانه شاعر دې د دې په تالیف کښې شریک وګنړلے شی.

د دې اعتراض د تردید د پاره نور ثبوتونه هم پیش کیدے شی "خیرالبیان" لکه چې مخکښې عرض شوے دے د روښانیانو د عقیدې مطابق یو الهامی کتاب دے. الهامی کتاب د الهام

---

[له] هم دغه کتاب ص - ۱۴۸

مدعی دَ چا پهٔ شراکت او ملکرتیا نهٔ لیکی او بیا خاص طور سره چې دا شریک دَ الهام دَ مدعی مریدا هم وی - اوکهٔ داسې وشی نو کم از کم داسې شریک مؤلف خو به دَ خپل پیر دَ صداقت هډو چرې قائل نهٔ شی - اوس چې مونږ کورو نو پخپله دَ اخون درویزهٔ دَ وینا مطابق یوائې ارزانی نه بلکې دَ هغه دوهٔ نور ورونړه یعنی ملا عمر او ملا علی هم دَ بایزید مریدان وو[1] او بیا چې ملا ارزانی دَ اخون درویزهٔ دَ الزام مطابق "بعدازانکه پیرتاریک راه زنی و مسلمان کشی را پیشه گرفته ارزانی از و جدا شده باز بهند رفته اما آن دو برادران او همراه مانده[2] (پس لهٔ هغې چې پیرتاریک ډاکې او مسلمانان وژل پیشه کړل نو ارزانی لهٔ هغهٔ بېل شهٔ او بېرته هند ته لاړ خو دغه دوهٔ ورونړه ئې هغهٔ سره پاتې شو) لهٔ بایزیده بېل شهٔ نو هم ئې پرې دَ دروغو وئیلو الزام ونهٔ لکولو او نهٔ ئې ورونړه پهٔ دې قائل کړے شو چې کنی بایزید دروغژن او جعلساز (او ډاکو او مسلمان کش) دے- پهٔ دې بنا دَ اخون درویزهٔ الزامونه غلط ثابتیږی -

دَ خیرالبیان پهٔ باره کښې دویمه غلط فهمی دَ دبستان مذاهب لهٔ یوه عبارته پیدا کیږی چې دَ خیرالبیان پهٔ ضمن کښې ئې دعوی کړې ده چې "آن خطابیست از حق تعالی مر حضرت بایزید را و آنرا صحیفهٔ الهی دانند"[3] یعنی "هغه (خیرالبیان) لهٔ خدایه حضرت بایزید ته خطاب دے او (روښانیان ئې) خدائی صحیفه کنی" دا عبارت تر دې حده خو صحیح دے چې روښانیان خیرالبیان یو الهامی کتاب

---

[1] هم دغه کتاب ص - ۱۴۹ - [2] ایضاً [3] دبستان مذاهب ص - ۳۰۹ -

ګڼي خو اسماني صحيفه يا اسماني كتاب ئې په هغو معنو كښې نه مني په كومو معنو كښې چې نور مُسلمانان توراة ، زبور، انجيل او قرآن كريم ګڼي۔ په دې سلسله كښې حالنامه او دَ روښانيانو ټول معلوم كتابونه دَ دې الزام په ډېرې سختۍ سره ترديد كوي۔

دريمه غلط فهمي چې تر اوسه ئې دَ پښتو په ليكونو او تبصرو كښې ذكر زما له نظره نه دے تېر شوے هغه ده چې دَ اردو دَ مشهور ليكونكي او مؤرخ شمس العلماء مولينا محمد حُسين آزادِ دَ كتاب "دربارِ اكبري" له عبارته پيدا ګېږي۔ مولينا آزاد دَ خپل قيمتي كتاب په سر كښې دَ مغل شهنشاه جلال الدين اكبر دَ ژوند واقعات ليكلي دي او په دې ضمن كښې ئې يو فهرست دَ دې عنوان دَ لاندې ليكلے دے۔ تفصيل دَ هغو كتابونو چې دَ اكبر په فرمائش يا دَ هغه په زمانه وليكلي شوله او دَ دې عنوان دَ لاندې وائي:- هغه كتابونه چې دَ ده (اكبر) په فرمائش تصنيف شو تر اوسه دَ نظر خاوندان ترې دَ مطالبو ګلونه او دَ فوائدو مېوې ټولوي او خپلې لمنې تر ډكوي"[1] له دې نه پس دَ دغو كتابونو يو لوئې فهرست او مختصر تعارف وركړے شوے دے چې وروستے كتاب ئې خيرالبيان دے۔ دربارِ اكبري دَ خيرالبيان تعارف داسې كوي:-

" خيرالبيان - يو كتاب پير تاريكي وليكلو - دا هم هغه پير دے چې خپل نوم ئې پير روشنائي ايښے وه - دَ پېښور په

---

[1] دربارِ اكبري - ص ۱۱۵ ترجمه - [2] هم دغه (ترجمه)

کوهستان کښې چې کوم وهابیان دی هغوی هم دَ ده لـه امته دی - نورو ځایونو کښې چې نور (وهابیان) پیدا کېږی هغوی هم دوی سره راګډیږی"[له]

له دې اقتباسه دا څرګندېږی چې ګنی خیرالبیان دَ اکبر په فرمائش لیکلے شوے کتاب وه خو لکه څنګه چې مخکښې عرض وشهـ دَ روښانیانو په عقیده خیرالبیان یو الهامی کتاب وه او او الهامی کتاب دَ چا یا دَ باچا په فرمائش نه شی لیکلے - دلته مولینا آزاد دَ خپل مخصوص مذهبی تعصب په وجه روښانیان او دَ سید احمد شهید مجاهدین هم (چې دے ورته په قابل فهم وجه وهابیان وائی) یو ګڼلی دی چې یوه بـله لویه غلطی ده او هیڅوک یُې نه شی منلے ځکه چې دَ سید صاحبؒ تحریک ځان له یو تاریخ لری او دَ هغوی یا دَ هغوی دَ تحریک دَ بایزید روښان له تحریک سره هیڅ شے شریک نه دے سیوا له دې نه چې دَ یوې طبقې خلقو دواړو ته یو شان بد وئیلی او دَ تکفیر او تفسیق تر حده یُې رسیدلی دی -

ښاغلیو قیام الدین خادم او عبدالاکبرخان اکبر چې په خپـلو کتابونو "بایزید روښان" او "روښانیان دَ مغلو تاریکیان" (په ترتیب) کښې دَ خیرالبیان (بـلکې دَ ټول روښنائی تحریک) په سلسله کښې دَ کومو خیالاتو اظهار کړے دے دَ هغوی اصلاح تر ډیره حده دَ حافظ عبدالقدوس صاحب دَ خیرالبیان دَ مقدمې دَ سیدتقویم الحق کاکاخیل دَ مخزن دَ مقدمې او دَ پروفیسر عبدالشکور رشاد دَ مختلفو

---

له ایضاً - ص - ۱۱۸ -

مقالو په ذريعه شوې ده او ځکه يُ زه دَ نور تفصيل ضرورت نه گڼم - خو زمونږ په زمانه کښې محترم عبدالحئ حبيبي (مرحوم) دَ بايزيد روښان په باره کښې چې کومې تبصرې وخت په وخت کړې دی هغو کښې ځائې په ځائې داسې خبرې شوی دی چې صحيح نه دی - دَ ځنو داسې خبرو په سلسله کښې خو چې ما کوم معروضات پېش کړل هغه دَ کړانو لوستونکيو له نظرِه تير شو ځنې نور به راتلونکيو پاڼو کښې عرض کړے شي خو اوس چې زه دَ خيرالبيان په باره کښې دَ غلط فهميو ذکر کوم نو دَ حبيبي مرحوم دَ مداحانو نه معذرت سره او دَ هغوی دَ پارهِ له خدايه دَ بخښنې دَ دعا سرهِ دَ هغو غلطيو تفصيلات پېش کول غواړم چې زما په خيال دَ خيرالبيان په ضمن کښې دَ بشری تقاضو په نتيجه کښې له هغه مرحوم نه صادرې شوی دی او مقصد مې محض او محض دا دے چې دَ تاريخي واقعاتو تصحيح ممکن شي - حبيبي مرحوم دَ خيرالبيان په سلسله کښې ليکي :-

"دا واحده خطي نسخه يو وخت دَ برلن په موزيم کښې په نمبر ۴۰۹۳ موجوده وه ټوله (۳۳۰) مخه ده - هر مخ (۱۱) ليکې لری او ښاغلی بېنوا دَ دغې نسخې يو عکس اخستے دے چې اوس يُ ماته دَ کتلو لپارهِ راکړے دے" [۲]

دَ پښتو ادبياتو تاريخ دوهم ټوک دوهم چاپ چې دا اقتباس ترې اخستے شوے دے په ۱۳۴۲ هش (۱۹٦۳ء) کښې چاپ شوے دے - له دې نه مخکښې دَ خيرالبيان نسخه ټيوبنگن يونيورسټۍ کښې

[۱] ايضاً - ص - ۱۱۸ -

[۲] دَ پښتو ادبياتو تاريخ - دوهم ټوک - دوهم چاپ ص - ۲۹۰ - حاشيه ۴ -

دَ مولینا عبدالقادر مرحوم په کوشش په ۱۹۵۹ کښې بیا موندے شوې وه او دَ دې دریافت خبر په دوه درې ورځو کښې دننه ټوله دُنیا کښې خور شوے وه له خو حبیبي مرحوم چې په کوم انداز کښې دا خبره لیکلې ده له هغې دا تاثر پیدا کیږی لکه چې دَ خیرالبیان "دا وحده خطی نسخه" دَ ښاغلی ښېنوا (مرحوم) په کوشش داپیدا شوې وه. وروستو بیا دَ بایزید روښان په باره کښې دَ یو بین الاقوامی سیمینار دَ مقالو مجموعه "دَ روښان یاد" مطبوعه ۱۳۵۵ کښې دَ روښانی لیکنې" تر عنوان لاندې یوه مقاله کښې هم دَ خیرالبیان دَ عکسی نسخې" له مخې په ۱۹۶۷ء کښې دَ پېښور پښتواکیډمي استنساخ او خپور کړ[۲] الفاظ خو شته خو دَ مولینا عبدالقادر ذکر پکښې داسې ښکاری چې دانسته نه دے شوے. شاید چې هم په دې وجه مولینا عبدالقادر مرحوم پخپله پېژندګلو کښې شکایت کړے وه چې:

" دَ افغانستان ځنې فاضلانو نویسندګانو دَ خیرالبیان دَ فوټو سټېټ په خپله کتب خانه کښې دَ وجود ذکر خو کړے دے ولې دومره قدرې لوئې زحتوب ئې هم نه دے کړے شوے چې دا ووائی چې دا کتاب څنګه بیا موندے شه او چا بیا موندو. دې به زمونږ دَ پاره هیڅ فرق نه دے کړے ولې دَ یو فاضل او عالم دَ دیانت نه دا توقع لرل چې هغه به رښتیا په هیڅ قیمت پټ نه کړی یوه فطری خبره ده"[۲]

دَ حبیبي مرحوم دویمه غلط فهمی دا ده چې دَ دوی په خیال دا "واحده خطی نسخه" دَ ۳۳۰ مخونو ده. حالانکې کومه عکسی نسخه چې په ۱۳۵۳ هش کښې پخپله دَ حبیبي مرحوم دَ مقدمې سره

---

[۱] په خیرالبیان دَ مولینا عبدالقادر مرحوم دَ پېژندګلو ص-۸
[۲] دَ روښان یاد-ص-۱۶۷ [۲] خیرالبیان - دَ مولینا مرحوم پېژندګلو ص-۱۰

چاپ شوې ده ۱۶۷ ب پاڼې لرې چې تول مخونه يې ۳۳۴ کېږي د پېښور د چاپي نسخې په ص ـ ۳۰۰ د قرآن کريم د آيت يا ايها الرسول الخ کښې "ربك وان لم الخ" نه ۱۶۷ ب مخ شروع کيږي. او "د روښان ياد" کښې هم دا منلی شوی دی چې د کتاب د قلمي نسخې ټولې پاڼې ۱۶۷ دی چې ۳۳۴ مخه کيږي"[1] د دې غلط حساب له کبله د حبيبي مرحوم کتاب "د پښتو ادبياتو تاريخ" کښې د خيرالبيان ټولې حوالې غلطې شوی دی. د مثال په طور د خيرالبيان ترقيمه يې په ۱۶۵ صفحه ښئيلې ده حالانکې دا د قلمي نسخې په ص ۱۶۷ ب ده[2] هم دغسې د خيرالبيان نمونې د عنوان د لاندې چې کوم اقتباسات راوړی شوی دی د هغو د صفحاتو نمبرونه ټول غلط دی. تفصيل يې دا دے.

| نمبرشمار | د خيرالبيان د قلمی نسخې اصل صفحه نمبر | د حبيبي صاحب ورکړے نمبر | د حبيبي صاحب د کتاب د صفحې نمبر |
|---|---|---|---|
| ۱ | ۹ ب | ورق ۱ | ۳۰۴ |
| ۲ | ۱۵ ب | ورق ٦ | ۳۰۸ |
| ۳ | ۴۸ ب | ورق ۳۹ | ۳۱۱ |
| ۴ | ۵۱ الف | ورق ۴۱ | ۳۱۱ |
| ۵ | ۵۴ الف | ورق ۴۵ | ۳۱۲ |
| ٦ | ٦٦ ب | ورق ۵۷ | ۳۱۲ |
| ۷ | ۸۸ الف | ورق ۷۹ | ۳۱۳ |
| ۸ | ۹۷ ب | ورق ۸۸ | ۳۱۴ |
| ۹ | ۱۰۹ ب | ورق ۱۰۰ | ۳۱۵ |

[1] د روښان ياد ـ ص ـ ۱۶۸ [2] د پښتو ادبياتو تاريخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص ـ ۳۰۳ ـ

۱۰ ۱٦۴ب ورق ۱۵۴ ۳۱٦ له

دغسې نورې ډېرې صفحې هم دَ نمبر له حسابه غلطې دی. او څرګند وی چې حبيبي مرحوم دَ هغې نسخې فوتوستېټ نه وه کتلے چې دَ ټيوبنګن يونيورسټۍ په لائبريرۍ کښې وه مولينا عبدالقادر مرحوم ئې فوتوستېټ حاصل کړے وه او بيا وروستو هم دَ دغې نسخې عکسی ايډيشن په ۱۳۵۳ هش (۱۹۷۴ء) کښې له کابله چاپ شو.

محترم حبيبي مرحوم ليکی: "دَ پير روښان مهم کتاب چې دَ پښتو ادب يوه غوره ذخيره ده "خيرالبيان" نوميږی چې راورټي ئې نوم "خورپان" هم ليکلے دے" ۲ه

دلته هم حبيبي مرحوم له تسامحه کار اخستے دے. دَ راورټي الفاظ دا دی:

"(دَ بايزيد روښان) دَ يو کتاب نوم "خيرالبيان" يا "دَ نيکۍ بيان" دے چې په څلورو ژبو پښتو يا افغانی، عربی، فارسی او هندۍ ليکلے شوے دے او اخون درويزه ورسره دَ "شرالبيان" يا "دَ شر بيان" نوم ورکړے دے يو بل خُرپان نوميږی چې فی الحال ئې معنیٰ نه رامعلوميږی دَ "فرقان" په لفظ پورې تړله ده چې دَ قرآن بل فهم دے او دَ ده دَ نورو کتابونو په شان دَ محمدیؐ دين (اسلام) په سپکاوی کښې ليکلے شوے دے لکه چې ئې نورې رسالې هم په دغه موضوع ليکلی دی." ۳ه

دَ راورټي دَ کوم بيان حواله چې حبيبي مرحوم ورکړې ده هغه

له حبيبي مرحوم دې ته "دَ کتاب خاتمه" عنوان ورکړے دے.
۲ه دَ پښتو ادبياتو تاريخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص. ۳۰۱.
۳ه اے ګرامر او دَ افغان لينګويج. دويم چاپ. مقدمه. ص ص ۳۲-۳۳.

کښې "خُرپان" ته دَ خیرالبیان نه بغیر بل یو کتاب وئیلے شوے دے او دا وضاحت پکښې شوے دے چې دَ خیرالبیان معنیٰ "دَ نیکۍ بیان" ده چې اخون درویزه ورته شرالبیان یعنی دَ شر بیان وائی او دَ "خرپان" معنیٰ لا لیکونکی ته نه ده معلومه - خو هسې اندازه دا لګوی چې دا دَ "فرقان" په لفظ پورې (نعوذ بالله) خندا ده - اوس زه نه پوهېږم چې حبیبی مرحوم دَ راورټی دا حواله نیمګړې ولې ورکړې ده او بیا خاص طور سره چې دَ بناغلی حبیبی ته په دې سلسله کښې پُښتنه شوې ده نو هغه دَ کتاب نوم دَ "خرپان" په ځائې "خورپان" ښئیلے او وجه ئې دا بیان کړې ده چې دا شاید "خورې پاڼې" وی او بیا په دې غلط بنیاد دا عمارت تعمیر شوے دے چې دا دَ بایزید هغه "مکتوبات" دی چې دَ اورنټیل کالج مېګزین کښې ئې ډاکټر جهانګیر په خپله مقاله کښې ذکر کړے دے - [1]

دَ دې ټولې افسانې اصل حقیقت دا دے چې راورټی دَ تذکرة الابرار والاشرار په کومه قلمی نسخه کښې دَ اخون درویزه عبادت "و اگر خربیان تامند هم مناسب است" غلط لُستے دے او دَ "واګر" نه ئې "ودګر" او دَ "خربیان" نه ئې "خرپان" جوړ کړے دے او دا غلطی ئې کړې ده چې دَ با یو ټکے او دَ یا دوه ټکی ئې یو ځائې داسې لُستی دی چې "بیان" ورته "پان" ښکاره شوے دے - او ورپسې راتلونکیو دَ "چون ندیدند حقیقت ره افسانه زدند" په مصداق دَ غلطۍ تکرار کړے دے تر دې حده چې کېږو هم دا غلطی کړې ده - او "خرپان" ئې دَ بایزید کتاب ګڼلے دے -

دَ "خیرالبیان" په باره کښې دَ حبیبی مرحوم یوه بله غلط فهمی دا ده چې دَ دوی په خیال کښې دا دَ پښتو عربۍ او فارسۍ نه

---

[1] دَ روښان یاد - ص - ۱۷۴ -

علاوه پنجابۍ کښې لیکلے شوے دے۔ یعنی دَ خیرالبیان هغه حصه چې نورو لیکونکیو هندۍ ګڼلې ده دَ حبیبي مرحوم په خیال کښې پنجابۍ ده [1] او یو بل ځائې دا زیاتوي چې "دَ کتاب په ابتدائی څو مخو کښې ځینې جُملې دَ پنجابۍ ژبې هم شته چې دا به ضرور دَ پنجابۍ هغه لهجه وي چې په جالندهر کښې ویله کېده"[2] شاید چې دَ حبیبي مرحوم دا غلط فهمی دَ مولینا عبدالقدوس صاحب له هغه حاشیې نه پیدا شوې وي چې دَ خیرالبیان دَ مقدمې په ص ۶۰ ئې داسې لیکلې ده:

"دَ خیرالبیان هندۍ په حقیقت کښې هغه ژبه ده چې نن ورځ دَ پنجابۍ په نوم موسومه ده۔ که دا نسخه مکمله موجوده وے نو دا به دَ پنجابۍ (یا دَ زړې هندۍ) هم یوه نادره نمونه وه۔"

زه نه یم خبر چې مولینا عبدالقدوس صاحب او بیا دَ دوی په تتبع کښې حبیبي مرحوم په کوم سند دَ خیرالبیان دې هندۍ ته "پنجابۍ" وائی۔ مولینا عبدالقدوس صاحب خو دَ یوې غلطۍ دَ پاسه بله غلطی دا کوی چې دَ "خیرالبیان پنجابۍ" او "زړه هندۍ" یوه ژبه ګڼی حالانکې زړه هندۍ هغه ژبه ده چې دَ اکبر (او دَ بایزید هم) په زمانه کښې عبدالرحیم خان خانخانان او نورو ډېرو لیکونکیو استعمال کړې ده۔ او دَ خیرالبیان هندۍ هم بالکل هم دغه زړه هندۍ ده۔ زه لاندې یو څو توری په دې غرض لیکم چې ګرانو لستونکیو ته دَ پنجابۍ او هندۍ دَ توریو تر منځه

---

[1] دَ خیرالبیان دَ عکسی چاپ مقدمه ص-۲۶- دَ روښان یاد- ص-۲۹۰-

[2] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک- دوهم چاپ ص-۳۰۳-

واضح فرق ښکاره شي۔

| هندی | پنجابی | کیفیت |
|---|---|---|
| کے | دے | په خیرالبیان کښې دا تول |
| نه گنوانو نگا | نه گواساں ، نه کماساں | توری په هغه صورت کښې |
| انہن کی | اُناں دی | راغلی دی لکه چې دَ هندی |
| سُبحان | داتا ، سیانا | دَ عنوان دَلاندې ولیکلے شو |
| جیب | جیبھ (پراکرت) | اوبوځائې هم دَ پنجابۍ په |
| وغیره وغیره | | صورت کښې نه دی راغلی۔ |

دا صحیح دَه چې پنجابی هم په اصل کښې لکه دَ هندۍ دَ سنسکرت یوه څانگه دَه[1] خو په افعالو او صفتونو کښې پنجابی او هندی دومره بېلتون لری چې ډیر په اسانه ترې دا فرق څرگندېدے شي چې یو ورکړے عبارت په پنجابۍ کښې لیکلے شوے دے که په هندۍ کښې او هم له دې اعتباره زه دَ تردید له ویرې بغیر دا دعویٰ کولے شم چې دَ خیرالبیان کوم عبارت ته مولینا عبدالقدوس صاحب پنجابی (زړه هندی) او حبیبي مرحوم دَ پنجابۍ جالندری لهجه وئیلې وه هغه صفا سوتره هندی دَه۔

حبیبي مرحوم لیکی :- ارزانی په خپلو اشعارو کښې دا کتاب (خیرالبیان) دَ دیوان په نامه یادوی چې په خلورو ژبو وه۔

دَ فقیر پښتون دیوان دے  دا دیوان حقانی خوان دے
دے ریخته په خلور ژبې  دے بیان په څو الوان دے
دا کلام دَ هغه دل دے  چې دَ عشق پر اور بریان دے[2]

---

[1] نقشه -ص-۱۲۰- دَ لنگوسټک سروے او انډیا - دَ گریرسن

[2] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک - دوهم چاپ -ص-۳۰۲-

دا شعرونه دَ هغه "فقیر" دی چې هم دَ دې نظم په اخر کښې ئې
داسې تعارف شوے دے۔

دے په خوېشکی کښې عزیز
دَ والد نوم ئې برهان دے
په پښتو ژبه دے کښلے
فقیر ارزانی افغان دے

ارزانی دېرو ځایونو کښې ځان ته فقیر وائی:

دا وېنا وایم په ځله
فقیر ووې په څو ځله

---

دَ فقیر پښتو کلام
کل صفت لـه الف لام

---

یو الف دے بیان شوے
په څو ژبې په څو نام

---

دَ فقیر دیوان پښتو دے
دَ سعدی دے لـه شیرازه

---

دې فقیر وکړې خبرې
دا خبرې دی نادرې

---

دَ ارزانی پهٔ باره کښې دا هم یاد ساتل پکار دی چې دهٔ پهٔ خپل ټول دیوان کښې یو ځائې هم دَ خیرالبیان یا دَ بایزید روښان نوم نهٔ دے اخستے۔ دَ کامل پیر ذکر کوی خو نوم ئې نهٔ اخلی دَ دوئ پهٔ مقابله کښې نور روښانی شاعران دَ بایزید، مسکین او روښان پهٔ نومونو دَ بایزید انصاری ذکر کوی۔

دې ضمن کښې دا خبره هم اهمیت لری چې روښانی شاعرانو ځان ته همېشه "فقیر" ویلی دی خو بایزید روښان ته ئې هېچرې دا لقب نهٔ دے ورکړے۔ دَ مثال پهٔ طور:۔

مرزا انصاری

دا نژدې لرې مې څوک پرې اینبی نهٔ دی
دَ فقیر مرزا به نقش پر جبین کرم

---

مدام یو وهٔ هر یوهٔ ته رسېدلے
دا فقیر مرزا ماهی مینې ئې یم کرم

---

پهٔ مسکین دَ مستحق حکم نهٔ وینی
دا فقیر مرزا ئې خلاص کړهٔ لهٔ زکاته

کریم داد

فقیر دېر سبل دے کړے محبوبان ئې دېر لیدلی
بارې تا غندې یو نهٔ وهٔ گلعذارې لهٔ جبینې!

دولت خو یوائې پخپله ځان ته فقیر نهٔ دی ویلی بلکې داسې ښکاری چې نورو هم پهٔ دغه نامه یادوهٔ۔

بل دولت فقیر دري پاوه
زه تري څو شېرشاهي تېر
(خوشحال خان)

دَ دولت دیوان نه دَ "فقیر" مثالونه -

دا فقیر دولت منصف دے
نور به څه وائي تر دا ښه

---

که اشنا دَ خپل وصال عهد محکم کا
دا فقیر دولت به نه کا ارمان درېغه

---

که مدام يُ له خپل يار سره وصال شي
دا فقیر دولت به نه ژاړي زار درېغه

---

زه هیله لرم چې گرانو لُستونکیو ته به اوس یقین شوے وی چې محض دَ "فقیر دَ دیوان" په څلورو ژبو کښې دَ ذکر په وجه دا خبره صحیح نه ده چې ارزاني دَ بایزید انصاری "خیرالبیان" دَ "دیوان" په نامه پېژاندهٔ ځکه دَ ارزاني په باره کښې دَ اخون درویزه وینا دا ده چې " و ارزاني چون شاعر تیز فهم و فصیح زبان بود در انواع ضلالت و بدعت شعر افغانی و فارسی و هندی و عربی بیان کرده" [1] ترجمه :- او ارزاني چې تېزفهمه او فصیح زبانه شاعر وه په تماقسم گمراهیو او بدعتونو يُ په افغانۍ، فارسی، هندی او عربۍ کښې شعرونه لیکلی دیُ یعنی

[1] تذکرة الابرار والاشرار- ص - ۱۴۹ -

دَ اخون درویزه دَ بیان مطابق ارزانی پخپله هم دَ دیو څلورو ژبو (پښتو ، فارسۍ، هندۍ او عربۍ) شاعر وه ځکه نو چې هغه وائي :

دَ فقیر پښتو دیوان دے — دا دیوان حقاني خوان دے

دے ریخته په څلور ژبې — دے بیان په څوالوان دے

دا کلام دَ هغه دل دے — چې دَ عشق په اور بریان دے

نو دا خیرالبیان نه بلکې خپل دیوان یادوی۔

دَ تازه معلوماتو مطابق په حیدرآباد (هندوستان) کښې دَ خیرالبیان دَ یوې بلې نسخې درک لګیدلے۔[1] دا نوې نسخه په ۱۰۷۹ھ کښې لیکلې بیانیږی او په دې حساب دَ ټیوبنګن یونیورسټۍ دَ قلمی نسخې (۱۰۶۱ھ) نه اتلس کاله وروستو لیکلې شوې ده۔ په نوې او زړه نسخه کښې فرق دا دے چې نوې (دَ حیدرآباد) نسخه دَ عربۍ ، فارسۍ هندۍ او پښتو څلورو واړو ژبو مکمل متن لری دَ دې په مقابله کښې زړه (چاپې او عکسی) نسخه کښې وړومبۍ څو پاڼې په څلورو ژبو او نور ټول متن په پښتو (سره دَ عربۍ او فارسۍ تشریحاتو او حاشیو) لری۔ دَ حیدرآباد نسخه دَ ضخامت له لحاظه هم دَ ټیوبنګن دَ نسخې نه زیاته ده او هر څه کښې ئې دَ ټیوبنګن دَ نسخې دَ یولسو کرښو په ځائې اوولس کرښې دی۔ ښاغلی هوادمل چې دَ حیدرآباد دَ نسخې دَ ابتدا کوم عربی عبارت رانقل کړے دے هغه خو کټ مټ دَ ټیوبنګن یونیورسټۍ دَ نسخې دَ عبارت په شان دے او عربۍ ئې هم هغسې غلطه ده ۔ دَ چاپی نسخې دَ "بدایة الکتاب" په ځائې "هدایت الکتاب" طباعتی غلطی ده خو دَ چاپې نسخې دَ عکسی پاڼې او دَ عکسی نسخې

---

[1] دَ هند دَ کتابخانو پښتو خطی نسخې۔ دَ زلمی هوادمل۔ کابل۔ ۱۹۸۴ع۔

مطابق هم دا تورے "ہدایت" داسې لیکلے شوے دے چې "هدایت" ښکاری دَ ټیوبنګن یونیورسټۍ قلمی نسخې کښې دَ "تعظیم الحروف" "تمام" او "صحیح البیان" نه پس دَ "ط" تخنبه نشته۔

خو ښاغلی هوادمل چې دَ حیدرآباد دَ نسخې کومه ترقیمه رانقل کړې ده هغه دَ چاپي او عکسی نسخو سره اختلاف لری۔ ځکه چې دَ حیدرآباد نسخه کښې دَ پښتو دَ عبارت" او ژوندون به ئې وې لهٔ ګناهان، ترو به بیا مومی عذاب دَ ځنکدن، دَ ګور دَ قیامت، دَ اور او عذاب رنګارنګ۔ عیان"۔ کومه هندی ترجمه شوې ده لهٔ هغې نه مخکښې "حسن بصری وئیلی دی رحمته علیه والغفران" الفاظ زیات دی۔ نو هر څو کهٔ دَ عربۍ دَ غلطیو دَ یو شان والی په بنا دا وئیلے شو چې دَ حیدرآباد او دَ ټیوبنګن نسخې له یوې نسخې نه رانقل شوی دی خو دَ ټیوبنګن دَ یونیورسټۍ نسخه کښې دَ نسخه نویس "لاس وهنه" هم لهٔ امکانه لرې نهٔ ده۔ سره دَ دې هم دَ خیرالبیان دَ یوې بلې نسخې را پیدا کیدل یوه ډیره اهمه خبره ده او لهٔ دې نه به تر ډیره حده دَ ځنو هغو نکتو په حل کښې مدد ومونده شي چې چې دې مقاله کښې ئې ذکر شوے دے۔

دَ خیرالبیان په باره کښې دَ "مقصودالمؤمنین" دَ مرتب ښاغلی الدکتور میر ولی خان المسعودی رائې ده " و نکنه یظهر للقارئ بعد مطالعة کتبه انه الف اولاً کتاب" صراط التوحید" ثم قام بتالیف کتابه خیرالبیان"[1] ترجمه۔ خو لوستونکی ته دَ هغهٔ دَ کتابونو دَ لوستلو نه پس څرګندیږی چې هغهٔ (بایزید) اګاهو دَ "صراط التوحید" تالیف وکړو او لهٔ هغه پسه

---

[1] مقصودالمؤمنین۔ تصدیر۔ ص-۷۲ [2] ایضاً ص-۴۶-

يُ دَ خيرالبيان په تاليف لاس پورې کړه" ښاغلى المسعودي دې اهمې خبرې ته فکر نه دے کړے چې دَ "صراط التوحيد" تاليف په ۹۷۸ھ کښې ختم شوے دے (لکه چې دَ صراط التوحيد دَ چاپي نسخې په اخر کښې يُ ليکلى دى) او پخپله دَ ښاغلى المسعودى دَ تحقيق مطابق بايزيد په ۹۸۰ھ کښې مړ شوے دے (وَ لما توفىٰ بايزيد الانصارى سنته (۹۸۰ھ / ۱۵۷۲م) بائع اولادُهٗ و اتباعه الشيخ عمر بن بايزيد الانصارى لهٗ او هرکله چې بايزيد انصارى په ۹۸۰ھ ۱۵۷۲ء کښې وفات شو نو اولاد او پيروکارانو يُ دَ شيخ عمر بن بايزيد انصارى بيعت وکړه) نو په دوه کاله کښې دَ"خيرالبيان" ليکل او دَ هغه کتاب مشهورېدل قطعًا ناممکن دى. ښاغلے المسعودى دَ کابل نه دَ بايزيد انصارى دَ راخلاصېدو نه پس دوباره کابل ته دَ تګ ذکر نه کوى (او دا صحيح هم ده چې دَ مرزا حکيم دَ قيد نه دَ رهائى موندلو نه پس بايزيد بيا کابل ته نه وو تللے) او کابل کښې قاضى خان سره دَ بايزيد دَ مناظرې دَ تفصيلاتو په ضمن کښې دَ قاضى خان له بايزيده دَ دې پُښتنې ذکر کوى.

"انّ النّاسَ يقولون فى حقِّكَ اِنّكَ تدعى انّه قد نُزّل عليك عن طريق الوحى کتاب مشتمل علىٰ اربعين موضوعًا" (خلق ستا په باره کښې وائى چې ته دا دعوىٰ کوې چې تا باندې يو کتاب په وحى نازل شوے دے چې په څلوېښتو موضوعاتو مشتمل دے") دَ دې پُښتنې په ځواب کښې ښاغلى المسعودى دَ بايزيد روښان دا وينا رانقلوى :- "هٰذا قول الحساد و هو غير صحيح اذانى اقول" ان الله تعالىٰ

---

لهٗ ايضًا. ص - ۴۶

صج

اُلقی فی قلبی عن طریق الالهام کتاباً یسمیٰ "خیرالبیان" یشتمل علی اربعین موضوعاً" [1] دا دَ حاسدانو خبره ده چې صحیح نه ده ځکه چې زه وایم "په تحقیق سره خدایْ پاک زما په زړه دَ الهام په طریقه یو کتاب القاء کړے دے چې نامه ئې خیرالبیان ده او په څلوېښتو موضوعاتو مشتمل دے) نو چې دَ قاضی خان سره په مناظره کښې بایزید دَ خیرالبیان دفاع کوی نو لازمه خبره ده چې دا کتاب هغه وخت وه. بله اهمه خبره دا ده چې دَ بایزید انصاری تر ټولو لوئې مخالف اخون درویزه دَ ده په کتابونو کښې صرف دَ "خیرالبیان" ذکر کوی [2] او دَ ده نور تصنیفات دَ رسالو په نامه یادوی نو ځکه دَ بنا غلی المسعودی دا استنباط غلط دے چې "خیرالبیان" دَ صراط التوحید نه پس لیکلے شوے کتاب دے.

دَ روښانیانو په نزدَ دَ بایزید روښان دویم اهم کتاب "مقصودالمؤمنین" دے. بلکې له یوه لحاظه خو دَ بایزید له ټولو اهم کتاب هم دا دے ځکه چې خیرالبیان خو دَ ده کتاب نه دے بلکې "الهامی" کتاب دے دا کتاب دَ بایزید په روحانی سفر کښې ډېر وروستو لیکلے ښکاری ځکه چې دا دَ ده دَزوی "شیخ عمر" په فرمائش لیکلے شوے دے. شیخ عمر دَ حالنامې مطابق هغه ورځو کښې پیدا شوے وه چې بایزید روښان دَ پینځو کالو دَ پاره ځان په کور کښې بند کړے وه [3] او هرکله چې حالنامه کښې دَ کالونو او سنونو په باره کښې مفصل ذکر نه موندلے کیږی نو دَ ذکر تقدیم او تاخیر دَ ډېرو پېښو دَ پاره دَ دغو پېښو

---

[1] (دوارۀ حوالې) مقصودالمؤمنین تصدیر ص. ۳۸۰ [2] مخزن ص-۱۲۴ او تذکرۃ الابرار والاشرار ص-۱۴۸- [3] حالنامه ص-۸۸-

دَ وقوع تقديم او تاخير کېنلو نه بغير مونږ سره بله لاړ نشته - په دې حساب هرکله چې دَ شيخ عمر دَ تولد ذکر دَ بايزيد دَ پيدائش کلنی گوشه نشينی نه دَ راوتلو[1] نه مخکښې شوے دے نو دا نتيجه راوښکل به منطقی طور سره غلطه نه وی چې شيخ عمر دَ بايزيد دَ گوشه نشينی په زمانه کښې پيدا شوے دے نو چې شيخ عمر دَ دې وېنا قابل شوے وی چې " ان کان رضاك اکتب لاجل ابنائك اهلك و عيالك من آيات القرآن و احاديث الانبياء و اقوال الاولياء نصيحته"[2] (ترجمه) "چې که ستا رضا وی چې دَ خپلو ځامنو او اهل و عيال دَ پاره يو داسې ليکل وکړې چې دَ قرآن په ايتونو دَ نبيانو په حديثونو او دَ اولياؤ په اقوالو مبنی نصيحت وی" نو دا فرمائش به يقيناً داسې وخت کښې شوے وی چې شيخ عمر دَ ښه لوئ عُمر وه - (او دا خبره يو ځل بيا دا ثابتوی چې دا کتاب دَ خيرالبيان نه پس ته ليکلے شوے کتاب دے)

دَ "مقصودالمؤمنين" ذکر دبستان مذاهب کښې په وړومبی ځل راغلے دے -[3] او دَ دبستان په بنياد بيا نورو ليکونکيو دَ دې کتاب ذکر کړے دے - تر اوسه دَ دې کتاب دَ دوه نسخو پته لګېدلې وه چې يو دَ اورينټل کالج مرحوم پروفيسر محمد شفيع صاحب سره وه او له هغوی الدکتور ميرولی خان المسعودی حاصله کړې او هغه نسخه ئې دَ خپلې چاپې نسخې بنياد گرځولے دے[4] دويمه نسخه دَ حيدرآباد دکن په اصفيه لائبريری کښې وه او ښاغلی المسعودی دَ مقصودالمومنين په ترتيب کښې له هغه نسخې نه هم کار اخستے دے او دَ پروفيسر

---

[1] حالنامه - ص - ۱۵۷ - بيان بيرون آمدن پير دستگير از خانه بعد از پنج سال [2] مقصودالمؤمنين ص ۱۲۸ - ۱۲۹ - [3] دبستان مذاهب ص ۳۰۸ - [4] مقصودالمؤمنين - تصدير - ص - ۷۴ -

محمد شفیع صاحب مرحوم او دَ حیدرآباد دَ نسخې دَ قرأتونو تر مېنځه فرق ئې دَ خپل متن په حاشیو ښکاره کړے دے۔ دَ دې دوو نسخو ذکر ښاغلی حبیبی مرحوم او پروفیسر محمد شفیع او نورو ډېرو لیکونکیو هم کړے دے لـه

ولې اوس اوس دَ دې کتاب دَ یوې درېمې نسخې پته هم لګېدلے ده دا نسخه دَ هندوستان دَ سالار جنګ میوزیم کښې ښاغلی هوادمل لیدلې وه او خپل کتاب "دَ هند دَ کتابخانو خطی نسخې" کښې ئې په ص ۱۵ دَ دې ذکر کړے دے۔ دَ خپل کتاب په تعلیقاتو کښې ښاغلی هوادمل یوه نادره خبره دا هم کړې ده چې دَمقصودالمؤمنین خطی نسخې ډېرې دی" او دا ئې زیاته کړې ده چې دَ پښتو ټولنې په لائبریرۍ کښې هم دَ مقصودالمؤمنین خطی نسخه شته لـه حالانکې له دې نه مخکښې مونږ ته دَ حبیبی مرحوم یا بل کوم لیکونکی له خوا دا نه وه معلومه شوې او تر ۱۹۶۳ء (دَ پښتو ادبیاتو دَ تاریخ دَ دوېم ټوک دَ چاپ کال) پورې ترې هېڅوک هم نه وو خبر۔

بهرکیف دَ سالارجنګ میوزیم دا قلمی نسخه په دې لحاظ ځان ته یو لوئې خصوصیت لری چې دَ دې دَ متن په بین السطور کښې دَ کتاب پښتو ترجمه هم شوې ده۔ دا نسخه همدان بن شیخ نعمت لیکلې ده چې هم دَ دې سرې نوم په هغه نوم ورکې رسالې هم شته چې حبیبی مرحوم ئې ذکر کړے دے لـه او دَ دې رسالې په ترقیمه کښې

---

لـه دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ۔ ص ۲۶۶ (دَ برد دَ کلمات په حواله (په ترتیب) اسلامی دائرة المعارف (بایزید) ص۔ ۱۸۔ لـه دَ بیان شوی کتاب تعلیقات ص۔ ۲۲۹۔ لـه خیرالبیان عکسی چاپ۔ دَ حبیبی مرحوم مقدمه ص ص ۳۰۔ ۳۴ او دَروښان یاد ص ص۔ ۲۹۳۔ ۲۹۸۔

ئ دَ رسالې دَ ليکلو (يا ملکيت کېنې دَ راتللو) کال ۱۰۴۳ه ليکلے دے ځکه نو دا استنباط بې بنيادِه نه دے چې دَ مقصود المومنين دَ سالار جنګ ميوزيم دَ نسخې ليکونکے په ۱۰۴۳ کښې ژوندے وه. په دې لحاظ دا نسخه دَ ټيوبنګن يونيورسټۍ دَ خيرالبيان دَ نسخې نه (ليکلې ۱۰۶۱ ه) وړاندينۍ ده. دَ مقصود المؤمنين دَ لاهور (پروفيسر محمد شفيع مرحوم) نسخه په ۱۲۲۴ ه او دَ اصفيه لائبريرى حيدراباد نسخه په ۱۲۲۵ه کښې ليکلې شوې ده. لهٰ دې اعتباره هم دَ سالار جنګ ميوزيم قلمى نسخه تر اوسه ښکاره شويو دواړو نسخو نه زړه ده.

دَ لاهور دَ نسخې ترقيمه شاغلى المسعودى داسې بيانوى "تمت هٰذه الرسالة مسمٰى بمقصود المومنين من تصنيف بايزيد انصارى رحمة الله عليه بدست خط عبدالضعيف راجى الى شفاعة النبى صلى الله عليه وسلم فى يوم الدين، فى يوم اربع و عشر من شهر ربيع الثانى تحرير يافت بقلم خود سنه (۱۲۲۴ه/ ۱۸۰۹م) اللهم اغفر لکاتبه و لمن نظر فيه امين يا رب العالمين

يلوح الخط فى قرطاس دهر وکاتبها رميم فى التراب"[1]

دَ کتاب دَ وروستنۍ څ کوم تصوير چې دَ تصدير دَ ص-۱۲۶ نه پس چاپ شوے دے هغه دَ "فى يوم الدين" الفاظ نه ښئ بلکه په تصوير کښې دَ صلى الله عليه وسلم او فى يوم اربع الخ ترمنځه صرف دَ "ولد" او "شيخ نور محمد" تکى په مشکله ښکارى. او دې حقيقت ته ښاغلے المسعودى داسې اشاره کوى چې "وَ شطب الناسخ اسمهٗ"[2] (او نسخه ليکونکى خپل نوم وران کړے دے) حالانکې په نسخه ليکونکى دا اعتراض څه

---

[1] تصدير- مقصود المؤمنين ص ص ۷۴-۷۵ [2] هم دغه او دَ ص- ۳۵۸ حاشيه (۸)

بنیاد نه لري۔ کېدے شي چې بل چا دا کړے وي خو دَ حېرانتیا خبره دا ده چې بناغلی حبیبي مرحوم چې دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دَ دوهم ټوک په دوهم چاپ کښې دَ پروفېسر محمد شفیع مرحوم دَ مقصودالمومنین دَ نسخې کومه تر قیمه درج کړې ده هغې کښې دا وران شوی توری تر یوه حده شته یعنې دَ(؟)نه پس ولد اخون شیخ نورمحمد سکنه سرسنګه ولرګهر(؟) لیکلی شوی دی ؂ دلته خو حبیبي مرحوم دا حواله نه ده ورکړې خو یو بل ځائې کښې ئې دا صراحت کړے دے چې دَ پروفېسر محمد شفیع مرحوم دغه قلمی نسخه دوی پخپله لیدلې وه ؂ اوس نو سوال دا پېښېږی چې دا کومه نسخه وه چې دَ حبیبي مرحوم له نظره تېره شوې وه۔پروفېسر محمد شفیع صرف دَ یوې نسخې اقرار کوی او دَ دغه نسخې په بنا بناغلی المسعودی خپل ”مقصودالمؤمنین“ اېډټ کړے دے او دغه نسخه کښې لکه چې له عکسه ئې ښکاره ده دا الفاظ نشته نو بیا دا معمّا ده

دا معمّا یو څو نورو ځایونو کښې هم راپېښېږی۔ مثلاً ښاغلے حبیبي مرحوم وائی چې دَ مقصودالمؤمنین ابتدا داسې کېږی۔ الحمد لله الذی بعد (دا 'بعدد' دے) معلوم له فهو کثیر الاکثر قوله تعالیٰ قل لو کان البحر الخ“ دَ قرآن کریم دَ دې آیت نه پس په اصل نسخه کښې دا الفاظ دی”کما قال رسول الله علیه وسلم لا احصی ثنا علیك انت کما اثنیت علیٰ نفسك والصلوٰة علیٰ خیر خلقه محمدٍ و کان وصفه اکرم (و) افضل من جمیع الآنبیاء و المرسل (رسل) وعلیٰ آله و اتباعه جمیع المجمل (اتباعه الجمل)؂ اوس نه پوهېږم چې دا هر څه حبیبي مرحوم دَ ”الخ“ په الفاظو کښې رانغښتی دی او که

؂ دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص۔۳۰۰ ؂ دَ خیرالبیان عکسی چاپ۔ص ۲۷ او دَ روښان یاد ص۔۲۹۰۔۲۹۱ ؂ دَ مقصودالمؤمنین دَ وړومبی مخ عکسی۔

صح

دَ هغه کتلي نسخه کښې دا عبارت نه وه. دَ "الخ" اطلاق صرف دَ قرآن کریم دَ هغه ایت په باقي حصه کېږي چې څه حصه ئې راخستې شوې ده. او دَ عامې قاعدې مطابق دَ دې اطلاق دَ ایت کریمه دَ باقي حصې نه بغیر په بل کوم عبارت نه شي کېدے. دَ حدیث نه پس په اصل نسخه کښې درود شریف هم دے او هغه هم حبیبي مرحوم نه دے راخستے دَ حبیبي مرحوم نور نقل کړے عبارت تر ډېره حده صحیح دے خو لکه چې لهٔ لاندني نقشې نه به ښکاره شي دَ هغوی دَ نقل کړی عبارت او دَ مقصود المؤمنین دَ وړومبي مخ دَ عکس تر منځه بیا هم څنې فرقو نه شته.

| دَ حبیبي مرحوم نقل کړی الفاظ | دَ وړومبي مخ دَ عکس عبارت | |
|---|---|---|
| اعضف | اضعف | |
| بایزید انصاري | بایزید انصاري رحمة الله علیه | [دَ نورو غلطیو سمون دَ "سمونه" په ص. ز شوے دے] |
| قال لی ابن شیخ عمر | قال لی ابنی شیخ عمر | |
| بدلیک نصیحه | بدلیک نصیحته | |

دَ وړومبي مخ په عکس کښې دَ "سمیتها" نه پس "مقصود المؤمنین" ښکاري او بیا دا مخ ختم شي خو دَ حبیبي مرحوم نقل دلته نه ختمېږي او لهٔ دې نه پس ئې هم څه یوه نیمه کرښه لیک کړے دے [1] چې دَ مقصود المؤمنین په متن کښې خو شته خو په وړومبي مخ کښې نشته. او لهٔ دې دا قیاس قائمېدے شي چې حبیبي مرحوم چې کومه نسخه لیدلې وه هغه دَ پروفیسر محمّد شفیع مرحوم هغه نسخه نه وه چې وروستو بیا دَ ښاغلی المسعودي په ترتیب په ۱۹۷۲ء/ ۱۳۹۲ کښې چاپ شو.

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک. دوهم چاپ. ص. ۳۰۰

دَ دې قياس دَ پاره نور دلائل دا دی:-

ا) حبیبی مرحوم لیکی" که څه هم دَ کتاب په لوړه مقدمه کښې لیکلی دی چې ټول ۲۱ فصلونه لری مګر په دغه نسخه کښې دغه شل فصلونه راغلی دی" [1] حالانکې لکه چې مخکښې به واضحه کړے شی دَ بنا غلی المسعودی ترتیب کړے مقصود المومنین هم یویشت فصلونه لری۔

ب) حبیبی مرحوم دَ مقصود المومنین دَ شلو فصلونو عنوانات ورکړی دی لاندې زه دغه عنوانات دَ مقصود المومنین دَ چاپي نسخي سره مقابله کوم چې بناغلیو لُستونکیو ته څرګندہ شی چې دَ حبیبی مرحوم او دَ مقصود المومنین په عنواناتو کښې دَ الفاظو لوئي فرق دے:-

| دَ حبیبی مرحوم عنوانات | دَچاپي نسخي عنوانات اودَ صفحي نمبر |
| --- | --- |
| ا- بيان العلم ومعرفته ومنفعته والنصيحه | بيان العلم و معرفة الوعظ والنصيحه و منعفهما [2] - ۱۳۲ |
| ۲- معرفت عقل و نور و درجات | بيان العلم و معرفة العقل والنور والدرجات [3] —— ۱۴۹ |
| ۳- معرفة ايمان واصل وفروعه | بيان العلم ومعرفة الايمان وماكان فيه اصل و فرع - [4] ۱۵۳ |
| ۴- معرفة الخوف وعقوبته | بيان العلم ومعرفة الخوف والعقوبة |

---

[1] هم دغه [2] بنا غلے المسعودی په حاشیه کښې لیکی چې دَ پروفیسر محمّد شفیع صاحب په نسخه کښې چې حبیبی مرحوم ئې حواله ورکوی دا عنوان داسې دے" بيان العلم ومعرفة الوعظ والنصيحة ومنفعته۔ مقصود المومنین ص-۱۳۲ (حاشیه ۲) [3] دَ پروفیسر شفیع نسخه کښې ۱۱ نورو درمات دے۔

[4] دَ پروفیسر محمد شفیع په نسخه کښې اصل وفرع او دَ حیدرآباد نسخه کښې اصله وفرع دے - مقصود المؤمنین حاشیه ۷-ص-۱۰۳-

| | |
|---|---|
| ۵- علم ومعرفة رجاء وعطائیه | بیان العلم ومعرفة الرجاء والرحمة [1] ۱۸۱ |
| ٦- معرفة النفس وعداوته | بیان العلم ومعرفة النفس وعداوتها[2] ۱۹۸ |
| ۷- معرفة الشیطان کیدهٔ وضلالته | بیان العلم ومعرفة الشیطان وکیدهٔ وضلاله وعداوته وحربه [3] ۲۰۳ |
| ۸- معرفة القلب وخصاله | بیان العلم ومعرفة القلب وخصاله[4] ۲۰٦ |
| ۹- معرفة الروح وراحته | بیان العلم ومعرفة الروح وراحته ۲۱۳ |
| ۱۰- معرفة الدنیا وصول وغربته | بیان العلم ومعرفة الدنیا ومتاعها و اصولها وفروعها [5] ۲۱٦ |
| ۱۱- معرفة الأخرة نعمائه ونقمته | بیان العلم ومعرفة الاخرة بقاءً و نعمة -[6] ۲۲۰ |
| ۱۲- معرفة التوکل وقناعت | بیان العلم ومعرفة التوکل والقناعة ۲۲۲ |
| ۱۳- معرفة التوبة | بیان العلم ومعرفة التوبة والاجتناب عن النواهی- ۲۳۷ |
| ۱۴- معرقة الشریعة واوامر والنواهی | بیان العلم ومعرفة الشریعة والامر والنهی والینا الخمس وثبت العسات[7] ۲۵۰ |

---

[1] پهٔ دویمه صفحه دَ الرحمة پهٔ ځایُ العطا دے- حاشیه ۱۰- مقصود المؤمنین ۱۸۱-

[2] دَ پروفیسر محمد شفیع نسخه کښې دَ "عداوتها" پهٔ ځایُ "عداوته" دے- مقصود المؤمنین حاشیه ۹- ص- ۱۹۸

[3] دَ پروفیسر محمد شفیع پهٔ نسخه کښې "کیده وضلالة وعداوت" دے. مقصود المومنین ص ۲۰۳- حاشیه ۹-

[4] دَ پروفیسر محمد شفیع نسخه کښې دَ "وخصاله" پهٔ ځایُ "وخصالته" دے- مقصود المومنین ص ۲۰٦- حاشیه ۷-

[5] چاپی نسخه کښې دَ فروعها پهٔ ځایُ "فروها" دَ چاپ غلطی ده- دَ پروفیسر محمد شفیع پهٔ نسخه کښې "متاع و اصول وفروع" دے- مقصود المومنین ص- ۲۱٦- حاشیه ٦-

[6] دَ پروفیسر محمد شفیع نسخه کښې "وبقاونعمة" دے- مقصود المومنین- ص- ۲۲۰- حاشیه- ۵-

[7] دَ پروفیسر محمد شفیع نسخه کښې "ماکان فیه اوامر والنواهی" دے- مقصود المؤمنین ص ۲۵۰- حاشیه ۱٦-

[۱] دَ پروفيسر محمد شفيع نسخه کښې "استقامة وامتحانه" دے۔ مقصود المومنين ص۔۲۸۸۔ حاشيه۔۲

[۲] دَ پروفيسر محمد شفيع په نسخه کښې "ذکرو يقين" دے۔ مقصود المومنين ص۔۲۹۸۔ حاشيه۔۵

[۳] حبيبي مرحوم صراحت کړے دے چې "بنهٔ نه وبُيل کيږی" دَ پښتو ادبياتو تاريخ دوهم ټوک دوهم چاپ۔ص۔۳۰۱

[۴] دَ پروفيسر محمد شفيع په نسخه کښې "وَمعرفة وَعمل معرفة الله" دے۔ مقصود المومنين ص۔۳۲۰ حاشيه۔۸۔

[۵] دَ پروفيسر محمد شفيع په نسخه کښې "وکشف سماع وفرحة" دے۔ مقصود المومنين ص۔۳۲۸۔ حاشيه۔۶

[۶] دَ پروفيسر محمد شفيع په نسخه کښې "ومعرفة الوصلة ذکر قرين ووصاله" دے۔ مقصود المؤمنين ص۔۳۳۳۔ حاشيه ۱۰۔

[۷] دَ پښتو ادبياتو تاريخ دوهم ټوک۔ دوهم چاپ۔ص۔۳۰۰۔

[۸] دَ پروفيسر محمد شفيع په نسخه کښې "فضيلة وراحة" دے۔

دا خبرهٔ هم اهمه ده، چې پخپله المسعودی هم په خپل تصدیر کښې دا عنوانات مختصر کړی دی خو دا مختصر کړی عنوانات هم دَ حبیبي مرحوم له عنواناتو مختلف دی۔

ج  ښاغلی حبیبی مرحوم چې دَ مقصود المؤمنین کومه نسخه لیدلې ده دَ هغې په باره کښې هغوی دا هم وئیلی دی چې دا "۹۵ پاڼې لری" [1] حالانکې دَ پروفیسر مولوی محمد شفیع مرحوم دغه نسخه (چې حبیبي صاحب ئې دَ لیدو دعوی کوی) دَ ښاغلی المسعودی دَ بیان په مطابق "تحتوی هٰذهٖ المخطوطه علیٰ مائة واحدیٰ وتسعین صفحة (۱۹۱) [2] " دا مخلوطه په ۱۹۱ مخه مشتمله ده۔" اوس که مونږ دَ ۹۵ پاڼو نه مخونه جوړ کړو نو دا به یوسل اونوی (۱۹۰) راشی او په دې لحاظ به دَ حبیبي مرحوم شمېر کښې یو مخ کم شی۔ ښاغلے مولٰینا عبدالقدوس دا شمېر (۹۰) "څلورنیمې شلې" پاڼې کړی [3]

د  حبیبي مرحوم دَ مقصود المؤمنین په باره کښې وائی چې دا کتاب "روښان دَ خپل زوی شیخ عمر په غښتنه لیکلے دے او هر ځائې هغه ته ولدی العزیز خطاب کوی [4] ښاغلی حافظ عبدالقدوس صاحب هم دَ خیرالبیان په مقدمه کښې دا غلطی کړې ده او فرمائی" دا کتاب ده دَ خپل ځوی شیخ عمر په درخواست لیکلے

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ ص۔ ۳۰۰۔ دَ خیرالبیان (عکسی) مقدمه۔ ص۔ ۲۷۔ دَ روښان یاد۔ ص ۲۹۰

[2] تصدیر دَ مقصود المؤمنین ص۔ ۷۴ عنوان مخطوطة محمد شفیع۔

[3] دَ خیرالبیان مقدمه۔ ص۔ ۴۹۔ دَ مقصود المؤمنین دَ یویشت فصلونو په باره کښې حافظ صاحب دَ مولوی محمد شفیع دَ دائرة المعارف دَ تفصیل سروې کړې ده۔ دائرة المعارف دَ مولوی محمد شفیع مقاله۔ عنوان بایزید انصاری ص ۱۸ [4] دَ خیرالبیان عکسی چاپ مقدمه ص۔ ۲۷، کابل ۱۹۷۴ء دَ روښان یاد، کابل۔ ۱۹۷۶۔ ص۔ ۲۹۰۔

وه او هغه ته پکښې ځاې په ځاې دَ ولدی العزیز خطاب شوے دے حالانکې دا بالکل غلطه خبره ده. داسې ښکاری چې دَ دې غلطی ابتداء ښاغلی حافظ عبدالقدوس صاحب کړې ده او حبیبی مرحوم ئې تقلید کړے دے او له دې دواړو نه پس چې هرڅوک راپاڅیدلے دے نو دَ دې افسانې تکرار ئې کړے دے او هیچا دَ مقصودالمومنین دَ لُستلو تکلیف نه دے کړے. مولینا حافظ عبدالقدوس صاحب او حبیبی مرحوم خو دَ مقصودالمومنین دَ قلمی نسخې دَ لُستلو دعویٰ کوی چې دا موقع هر چاته میسر نه وه خو دَ مقصودالمؤمنین دَ چاپ کیدو (۱۹۷٦ء) نه پس دا خبره تکرارول یوه لویه عِلمی مغالطه پیدا کول وو او پکار ده چې تر اوسه ئې وضاحت شوے وے. اصل خبره دا ده چې په ټول مقصودالمؤمنین کښې یو ځل هم دَ "ولدی العزیز" دا لفظ نه دے استعمال شوے. دَ دې په مقابله کښې دَ دې هم معنیٰ لفظ "یابُنَیَّ" (یه زما زویه) اوه دیرش (۳۷) ځله استعمال شوے دے. دَ اسلامی انسائیکلو پیډیا انګریزی او اردو ایډیشنونو کښې دَ پروفیسر مولوی محمد شفیع صاحب په مضمونونو کښې چې دَ بایزید انصاری دَ عنوان لاندې لیکلی شوی دی دَ عربۍ دَ دې لفظ انګریزی ترجمه دَ "او مائی ډیر سن" او اردو ترجمه دَ "اے میرے پیارے بیٹے" په الفاظو کښې شوې ده [1] او کیدے شی چې حافظ عبدالقدوس صاحب دَ بشری تقاضو ماتحت دا خطابیه جمله پخپله په عربۍ کښې منتقله کړې وی او بیا نورو لیکونکیو دَ دوی تقلید کړے وی. خو بهرکیف

[1] انګریزی انسائیکلو پیډیا آف اسلام ص-۱۱۲۳ او اردو ص-۱۸-

دَ مقصودالمؤمنین په باره کښې دې یو ځائې کښې هر چا تیندک خوړلے دے او عن تر دې چې په ۱۹۷۶ء کښې ښاغلی المسعودی خپل ایډیټ کړے کتاب چاپولو نو هم ئې دَ دې غلطۍ دَ اصلاح ضرورت و نه ګڼلو۔ دا خبره نه دی هېرول پکار چې ښاغلی المسعودی دَ مقصودالمومنین دَ ترتیب او تصدیر لیکلو له کاره په ۱۹۶۷ء (۱۳۸۷ھ) کښې فارغ شوے وه۔ حافظ عبدالقدوس صاحب دَ خیرالبیان په سر کښې په خپله مقدمه چې دوئ ورته "دیباچه" وئیلی دی دَ "اپریل ۱۹۶۷" الفاظ لیکلی دی۔ (دَ ۱۹۶۷ دَ اپریل میاشت په ۱۳۸۶ھ او ۱۳۸۷ دواړو کښې وه ځکه چې دَ ۱۳۸۷ دَ محرم ورومبۍ ورځ دَ ۱۹۶۷ دَ اپریل په یولسمه ورځ وه) خو هرکله چې المسعودی ۱۹۶۷ء او ۱۳۸۷ھ مطابق ګڼی نو دا ګمان کېدے شی چې ښاغلی المسعودی دَ "خیرالبیان" له چاپ کېدو نه پس خپله مقاله لیکلی وی دا ګمان له دې حقیقته په یقین کښې بدل شی چې ښاغلی المسعودی دَ خپل لیک دَ ماخذو په فهرست کښې دَ "المراجع الثبتویة" دَ عنوان لاندی دَ "خیرالبیان" دَ هغه چاپی نسخې ذکر کړے دے چې "دائرة المعارف البشتویة، بجامعة پشاور" (پښتو اکېډیمی۔ پېښور یونیورسټی) چاپ کړې ده۔ نو ځکه ښاغلی المسعودی چې دَ ښاغلی حافظ عبدالقدوس صاحب دَ خیرالبیان مقدمه لُستې وه نو پکار وو چې دَ دې غلطۍ درستی ئې کړې وے۔

بهرحال له دې ټوله بحثه دا ثابتیږی چې یا خوجیبی مرحوم (او ورسره حافظ عبدالقدوس صاحب هم) دَ مقصود المؤمنین قلمی نسخه هډو لُستې نه وه او یا بیا که لُستې ئې وه نو دا دَ پروفیسر مولوی

محمد شفیع لاهوری نسخه نه وه. زما خپله رائې دَ دې وړومبی امکان دَ صحیح کېدو په حق کښې ده.

دَ بایزید وړومبے کتاب چې دَ چاپ میدان ته راوتے دے "صراط التوحید" نومیږی. دَ دې کتاب تعارف حافظ محمد ادریس او "دیباچه" ئې دَ پېښور دَ عجائب گهر پخوانی مهتمم ښاغلی عبدالشکور لیکلې وه. دغو دواړو محترمو لیکونکیو ته دَ دې اهم حقیقت علم نه وه چې دا دَ بایزید انصاری هغه کتاب دے چې هغه اکبر بادشاه ته دَ خپل مرید او خلیفه دولت په لاس لېږلے وه.

دَ صراط التوحید په باره کښې مختلفو لیکونکیو دَ داسې خیالاتو اظهار کړے دے چې دَ کتاب دَ ژورې مطالعې په نتیجه کښې صحیح نه ښکارې. مثلاً حافظ محمد ادریس صاحب لیکی. "صراط التوحید" په عربۍ او فارسۍ دواړو ژبو کښې لیکلے شوے دے. هم یو مضمون اول په عربۍ کښې بیان شوے دے بیا هم هغه خبره په تفصیل سره فارسۍ کښې پېش کړے شوې ده. [1] ترجمه. مولینا عبدالقدوس صاحب لیکی." (دَ صراط التوحید) اول دېرش مخه ئې خپل سرگزشت په فارسۍ لیکلے دے. بیا باقی کتاب ئې په عربۍ فارسۍ دوو ژبو کښې یو مضمون مکرّر بیان شوے دے. [2] ښاغلے حبیبی مرحوم لیکی:" په دې رساله کښې نیم مقاصد په فارسۍ او نیم په عربۍ دی. امراؤ او شاهانوته اول په عربۍ خطاب کوی بیا نو هغه په فارسی ترجمه کوی [3]. ښاغلے الدکتور میرولی خان المسعودی لیکی:"کتب

---

[1] صراط التوحید. تعارف. ص. د. [2] دَ خیرالبیان مقدمه. س ص ۴۸-۴۹-
[3] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص. ۲۹۶-

بایزید الانصاری هذه الرسالة باللغة الفارسیه الی غایة الصفحه الثلاثین و کتب الباقی بالعربیة والفارسیة و عبر عن موضوع واحد اولًا بالعربیة ثم بالفارسیة و اتبع هٰذه الطریقه الی اخر الکتاب"[1] ترجمه۔ بایزید انصاری دا رساله دَ ص۔۳۰ تر اخره پورې (دا هم صحیح خبره نه ده۔ناقل) په فارسۍ کښې او باقي په عربۍ او فارسۍ) کښې ولیکله۔ هغه هم یو موضوع اول په عربۍ او بیا په فارسۍ بیان کړه او دا طریقه ئې دَ کتاب تر اخره جاری وساتله"۔ دَ روښان یاد کښې دَ دې کتاب په باره کښې لیکلی شوی دی" دَ کتاب په لومړیو پینځه دېرشو (۳۵) مخونو کښې ئې خپلې ژوند پېښې په دری لیکلی او په پاتې کتاب کښې یوه موضوع هم په عربۍ او هم په دری راوړې ده"[2]

حالانکې حقیقت داسې ښکاری چې دَ دې کتاب ورومبۍ پاڼې (دَ چاپي نسخې دَ ص۔۳۰ تر څلورمې کرښې) دَ صراط التوحید حصه نه بلکې دَ یوې بلې رسالې حصه ده (وروستو به ئې تفصیل راشی) چې دَ صراط التوحید دَ دیباچې په ډول صراط التوحید سره ګنډلې شوې ده۔

۲۔ صراط التوحید دَ چاپي نسخې دَ ص ۳۰ دَ څلورمې کرښې له وروستۍ نیمې نه۔"آغاز رساله که همیں است" نه پس دَ "بسم الله الرحمٰن الرحیم و به نستعین الخ نه شروع کیږی۔

۳۔ دا خبره بالکل صحیح نه ده چې بایزید هم یو مضمون اول په عربۍ او بیا په فارسۍ بیانوی۔ دَ مثال په طور هم په دغه صفحه

---

[1] تصدیر۔ مقصود المومنین ص۔۶۶۔ [2] روښاني لیکني۔ دَ روښان یاد۔ ص۔۱۶۴۔

دَ "تعاونوا علی البر و التقویٰ و لا تعاونوا علی الاثم و العدوان" نه پس دَ فارسۍ دا عبارت لیکلے شوے دے " و بهترین کار کار مجدد انست و یاری جستن از خدائے سنت و دستور ایشان است" ترجمه- او له ټولو غوره کار دَ مجددانو کار دے او له خدایه مرسته غُښتل دَ دوی سنت او دستور دے" یو څو نور مثالونه هم وځیرئ-

ا- دَ "وعلی الملوك والامراء والعلماء............و یرون المشاهدة قدرة الرب" له نه پس چې کومه فارسی ترجمه ده هغه په دې الفاظو ختمیږی -" تا مشاهدهٔ قدرت ربانی به بینند" ۲ه دَ دې نه پس دَ صراط التوحید الفاظ دا دی " ز فضیلت عقل بشنو که رسول مقبول فرموده است...... پس معلوم شد که مبیں عقل است که ادمیان بطاعت بمعبودی رسند و مطلوب می یابند و بمخالفت آن گمراه می شوند" دا عبارت دَ قرآن کریم په دې ایت ختمیږی قد فصلنا الایات لقوم یعقلون ۳ه

ب- دَ دې نه پس عربی عبارت دَ "لا ینبغی للعقلاء نه شروع شی او "کان کمال قدرته" ۴ه باندې ختم شی. دَ دې عبارت فارسۍ کښې ترجمه په دې جمله ختمه شی " که قادر بر کمال است" ۵ه خو له دې نه پس یو وړه عبارت دے چې منځه ترمنځه ئې دَ قرآن کریم ایتونه دی او له دې الفاظو شروع کیږی " بفهمید که در قرآن مذکور است" ۶ه او خاتمه ئې دَ قرآن کریم په دې ایت ده " لقد خلقنا الاحسان فی احسن تقویم ۷ه

ج- له دې عبارته پس دَ عربۍ دا عبارت شروع کیږی "واعلموا

---

له صراط التوحید ص.۳۳- ۲ه ایضاً ص ۳۴- ۳ه ایضاً ص ۳۴-۳۵- ۴ه ایضاً ص-۳۵
۵ه ایضاً ۶ه ایضاً ۷ه ایضاً-ص-۳۶-

خلق الله تعالیٰ (خلقا)........... ان کان بغیر العلم و معرفة التوحید[1]
او دَ دې ترجمه دَ "و بدانید که حق تعالیٰ مخلوقات را بیافرید" نه شروع
کیږی او په "که باشد بے علم و بے شناختن توحید" او له دې نه
معًا پس دَ فارسۍ دا عبارت شروع کیږی "بشنوید که حق تعالیٰ بخودی
خود خبر می دہد" او دا عبارت دَ قرآن کریم له ایتونو او احادیثو
سره سره دَ بل مخ (۳۷) تر "نصیحت ثانی" پورې روان دی
حالانکې عربۍ کښې دا مضمون نه دے بیان شوے۔ دَ صراط
التوحید دَ چاپي نسخې دَ ۵۷ ، ۵۸ ، ۶۰ ، ۶۱ ، ۶۲ ، ۶۳۔ مخ دَ
فارسۍ عبارت دَ ص ۵۲ دَ "از برائے آنکه صفت ایشان در قرآن
یاد کرده است" نه شروع کیږی او په "و چه نوع در اشراک می روند"
باندې ختمیږی او له دې شپږو مخونو کښې صرف دَ قرآن کریم
ایتونه یا احادیث په عربۍ کښې دی۔

دا مضمون زه دَ صراط التوحید دَ اخری مخونو نه په یو اقتباس
ختموم۔ بایزید وائی "و ادا کردن طریقت که با عبادت شریعت دیگر عبادت
ضم کند با نماز نماز نفل ضم کند یا روزه روزهٔ نفل ضم کند با زکوٰة سخاوت ضم کند
و با حج کردن (طلب) پیرِ کامل ضم کند تا عبادت زیادت شود"[2] دَ دې تول
فارسی عبارت "اصل عربی" مضمون نشته۔ له دې مثالونو به واضحه شوې
وی چې دا خبره صحیح نه ده چې صراط التوحید کښې یو مضمون اول
په عربۍ بیان شوے دے بیا ئې فارسی ترجمه پېش کړے شوے ده۔
دَ دې په مقابله کښې زما حقیره رائې دا ده چې صراط التوحید هم

---

[1] ایضًا ص۔ ۳۶۔ [2] صراط التوحید ص ص ۹۹۔ ۱۰۰۔

لکه دَ مقصود المومنین دَ بایزید روښان دَ عربۍ لیک دے۔ او هر چرته چې دَ فارسۍ عبارت دَ عربۍ دَ عبارت نه پس راغلے دے نو دا دَ هغه عربۍ عبارت "تفسیر" دے ځکه چې چرته دَ وضاحت ضرورت پیښ شوے دے نو په تائید کښې ئې دَ قرآن کریم ایتونه احادیث اقوال او شعرونه راوړے شوی دی او دا هر څه دَ فارسۍ حصه کښې دی ځکه نو زه دا رائې لرم چې دَ صراط التوحید دَ فارسۍ حصه دَ عربۍ حصې تفسیر دے او ډیره اغلبه ده چې دا کار بل چا کړے وی۔

دَ دې رائې په حق کښې یو اضافی دلیل دا هم دے چې صراط التوحید (لکه چې ځائې په ځائې ئې صراحت کیږی دَ باچایانو او امیرانو په نامه لیکلے شوے وه) کښې دَ یو مضمون په دوو ژبو له بیانولو نه دَ مکتوب الیهم پوهې پورې دَ خندا پهلو وتے شی چې دَ وعظ ونصیحت له اصولو سره سمون نه خوری نو ځکه زما ذاتی میلان دې خوا ته دے چې دَ صراط التوحید اصل متن عربی دے او فارسی عبارت ئې دَ عربی عبارت توضیح او تفسیر دے۔ او اصل عربی متن دَ چاپی نسخې دَ ۱۱۱ مخ په دې عبارت ختمیږی حتی یظهر (؟) علامة الجنته۔ او له دې نه پس تر څه حده دَ فارسۍ ترجمه او تر ډیره حده ئې تفسیر دے چې په دې عبارت ختمیږی "تا در روئے زمین بر عالم علامت و نشانٔ بهشت ظاهر و آشکارا گردد" [له] له دې عبارته پس په ص ۱۱۳، ص ۱۱۴ او ص ۱۱۵ داسې هیڅ عبارت نشته چې مونږ ورته دَ عربی متن ترجمه ووایو او دا دریواړه مخه فارسی کښې دَ مقامات او سیرونو دَ مجاهدو ذکر دے۔

---

[له] صراط التوحید ص-۱۱۲-

ښاغلي حبيبي مرحوم دَ صراط التوحيد په باره کښې دا خيال ظاهر کړے دے چې دَ چاپي نسخې په اخر کښې ليکلے شوے عبارت "تصنيف اين رساله بايزيد مسکين انصاری قدس سره العزيز" هم دَ بايزيد انصاری دے له۔ حالانکې ډېر قرائن په دې دلالت کوی چې دا عبارت دَ هغه نسخه نويس دے چې له دې عبارته پس ئې دَ "يکم شعبان المعظم ۱۱۱۲ (۱۲۱۲؟) تاريخ ليکلے دے۔ دا څه دومره لويه غلطي نه ده خو هرکله چې حبيبي مرحوم دَ دې عبارت په بنياد دَ بايزيد انصاری دَ عربۍ او فارسۍ دَ ضعف دعویٰ کړې ده (چې مفصل بحث پرې راروان دے) نو ځکه ئې ما ذکر ضروری وګڼلو۔

دَ صراط التوحيد په باره کښې بله غلط فهمی دا هم ده چې دې کښې بايزيد دَ ځان له پېژندګلوۍ نه وروسته پاچايانو ته درې لار ښوونې ليکی۔ ورپسې په لومړی باب کښې دَ شريعت په دوهم باب کښې ئې دَ طريقت په دريم باب کښې دَ حقيقت په څلورم باب کښې دَ معرفت او په پينځم باب کښې دَ سکونت خبرې کوی" له دا غلط فهمی په اصل کښې دَ حبيبي مرحوم له هغو تصريحاتو پېدا شوې ده چې دوی يو ځل دَ پښتو ادبياتو تاريخ دَ دوهم ټوک دَ دوهم چاپ په ص ۲٦۴ او بيا په ص ۲٦۷ کړی دی۔ او دَ"روښان ياد" دَ ص۔ ۱٦۴ الفاظ تقريبًا دَ حبيبي مرحوم دَ الفاظو اعاده ده۔

حقيقت دا دے چې کومه رساله دَ صراط التوحيد په نامه چاپ شوې ده دَ هغې ورومبۍ ډېرش صفحې دَ بايزيد په سوانحو مشتملې دی

---

له دَ پښتو ادبياتو تاريخ۔ دوهم ټوک۔ دوهم چاپ ص ۲۹۴ او ۲۹٦ (ملخصًا)

له دَ روښان ياد۔ ص۔ ۱٦۴۔

دَ چاپي رسالې پهٔ اوویشتم مخ (دَ خپلو سوانحو پهٔ عربي کښې) بایزید وائي " دریں بیست و یکم سال مرا در خواب یا بالهام اشارت شد که یک رساله یا خلیفه سوئے پادشاہان بفرست "[1]- یعنی پهٔ دې یویشتم کال ماته پهٔ خواب کښې یا پهٔ الهام اشاره وشوه چې یوه رساله یا خلیفه بادشاهانو ته ولېږه " دَ دې رسالې پهٔ ص ۳۳ "نصیحت اول" لیکی (او ورسره پهٔ عربي اوفارسي کښې دا عنوان ورکوی) بیا پهٔ ۳۷ مخ دَ عربي عبارت پهٔ ابتداء کښې دَ نصیحت ثانی" عنوان شته خو دَ دې عربي عبارت دَ فارسي پهٔ ترجمه کښې دا عنوان نشته - دریم نصیحت پهٔ عربي کښې دَ "نصیحت الثالث" دَ عنوان لاندې پهٔ ۴۲ صفحه او دَ "نصیحت سیُم" دَ عنوان لاندې پهٔ ۴۳ صفحه راغلے دے او لهٔ دې نه پس دَ عنوانانو سلسله ختمه ده البته نصائح جاری دی ځکه چې دَ دوېم او دریم نصیحت ابتدا دَ "واعلمو" "بدانید" (یوه شئ) لهٔ الفاظو کېږی اودا الفاظ بار بار دَ دریم نصیحت نه پس ته هم راځی[2] ځکه نو دا وئیل څهٔ دلیل نهٔ لری چې پهٔ صراط التوحید کښې بایزید صرف درې نصیحته کړی دی -

دغسې دا خبره هم صحیح نهٔ ده چې صراط التوحید کښې امیرانو او باچهانو ته دَ درې نصیحتونو نه وروستو بایزید لومړے دَ شریعت بیان شروع کوی، دوهم باب طریقت، دریم باب حقیقت، څلورم باب معرفت او پینځم باب سکونت بیانوی - دَ صراط التوحید لُستونکے دَ کتاب دَ لُستلو نه پس پهٔ ډېره اسانه دې نتیجې ته رسېدے شی چې صراط التوحید

---

[1] مقابله کړئ - دَ حبیبي مرحوم الفاظ " ماته پهٔ زړهٔ کښې راوګرځېده چې خلقوته دَ توحید دعوت وکړم نو مې دا رساله وکښله - دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ - ص ۲۹۷ -
[2] صراط التوحید ص ص - ۵۰، ۵۱، ۶۸، ۶۹، ۷۰، ۷۱ وغیره وغیره -

کښې دَ شريعت، طريقت، حقيقت او معرفت سره خو باب ليکلے شوے دے ولې دَ سکونت سره دا لفظ نه دے ليکلے شوے له بلکې دا لفظ يعنی باب دَ "سکوته"؟ سره ليکلے شوے دے او له دې نه پس "بدانيد اے گروه پادشاهان و اميران که مقام سکونت سکونت پيغمبران است" دې ضمن کښې يوه بله اهمه خبره دا ده چې دَ اول، دوېم، درېم او څلورم باب عنوانات په صراط التوحيد کښې په عربۍ او فارسۍ دواړو کښې داسې قائم شوی دی۔

۱- "باب الاول- کان فی مقام الشريعه- باب اول در بيان مقام شريعت است ٢ه

۲- باب الثانی- کان فی بيان مقام الطريقه- باب دوم در بيان مقام طريقت است ٣ه

۳- باب الثالث- کان فی بيان مقام الحقيقه- باب سيم در بيان مقام حقيقت است ٤ه

۴- باب الرابع- فی بيان مقام المعرفت- باب چهارم در بيان مقام معرفت ٥ه

دَ "سکوته" يا "سکونت" دَ باب هيڅ ذکر په عربۍ کښې نشته اوله دې دا اندازه کول غلط نه دی چې يا خو دَ صراط التوحيد متعلقه ځائې ناقص دے او يا (لکه چې ما ئې دَ دې مقالې په سر کښې ذکر کړے دے) سکونت دَ معرفت له هغو اقسامو څخه دے چې بايزيد ئې دَ خپل تصوّف اخری سېر گڼی۔

دَ صراط التوحيد په باب دا حقيقت هم تل ياد ساتل پکار دی چې دَ دې کتاب اصل قلمی نسخه اوس چرته نشته۔ او موجوده چاپی نسخه ئې ډېره په بې احتياطۍ چاپ شوې ده حتیٰ چې دَ قرآن کريم آيتونه هم پکښې غلط چاپ شوی دی۔ دَ ژبې غلطۍ پکښې دَ کتابت او دَ

---

له هم دغه کتاب ص- ٢ه صراط التوحيد ص-۸۵- ٣ه ايضاً ص ۸۸، ۸۹-

٤ه ايضاً ص ۹۳- ٥ه ايضاً ص- ۱۰۳-

پروف ریډنګ دَ غلطیو په وجه دومره دی چې حافظ ادریس مرحوم حبیبي مرحوم او حافظ عبدالقدوس صاحب ئې په دې غلطه نتیجه رسولی دی چې ګنی بایزید انصاری نه په فارسۍ پوهېده او نه په عربۍ ځکه نو که اصل نسخه اوس موجوده وے نو دا مشکل به لُستونکیو ته نه وه پېښ. په موجوده صورت کښې خو زه دا هم وئیلے شم چې دَ صراط التوحید چاپي نسخه بالکل نامکمله ده چې یو بیان پکښې لا ختم نه وی او بل بیان شروع شی. عنوانات ئې دَ لُستونکی دَ رهبرۍ په ځائې دَ هغه دَ ګمراهۍ په کار راځی. چرته چې عربي عبارت شته نو فارسی ترجمه ئې نشته او چې فارسی عبارت ئې وی نو عربي اصل ئې له چاپه پاتې دے وغیره وغیره. زه دَ صراط التوحید دَ قلمی نسخې په تلاش کښې یم او که دا نسخه راپیدا شوه او خدائې پاک ته منظوره وه نو دَ چاپي نسخې سره دَ مقابلې نه پس به ئې ګرانو لُستونکیو ته په قابلِ فهم صورت کښې پېش کړم.

حبیبي مرحوم دَ "شپږ اربعینه" موده هم هم دغو پینځو بابونو سره متعلقه ګڼی [۱] حالانکې دَ "اربعینونو" په باره کښې بایزید انصاری صفا وضاحت کړے دے چې "و بدانید که طالب صادق را در اربعین اول علم الیقین حاصل می شود و در اربعین دویم عین الیقین حاصل می شود و در اربعین سیم قربت الیقین حاصل می شود و در اربعین چهارم وصلت الیقین حاصل می شود و در اربعین پنجم توحید العین حاصل می شود و در اربعین ششم کشف الاسرار حاصل می شود [۲] ترجمه - او پوه شئ

---

[۱] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص - ۲۹۴

[۲] صراط التوحید ص ص ۱۱۲ - ۱۱۳ -

چې رښتنی طالب ته په اول اربعین کښې علم الیقین حاصل شي په دویم
اربعین کښې عین الیقین، په دریم اربعین کښې قربت الیقین په څلورم
اربعین کښې وصلت الیقین په پینځم اربعین کښې توحید العین او په
شپږم اربعین کښې کشف الاسرار حاصل شي" دَ بایزید په تصوّف باندې
چې څوک پوه دي هغوی ته دا خبره پټه نه ده چې دا شپږ چېلې
دَ دریو مقاماتو او څلورو سېرونو دَ پاره کېږي۔ دَ وړومبي مقام
یعنی شریعت دَ پاره دَ هیڅ چیلې ضرورت نه وي۔ یو طالب چې دَ
شریعت ټولې تقاضې پوره کړي او دَ پیر کامل په امر وړومبۍ چېله
کښې کامیاب شي نو علم الیقین (حقیقت) ورته حاصل شي بیا چې له دې
مقام نه دَ پیر کامل په امر شوې دوېمه چېله کښې کامیاب شي نو
عین الیقین (معرفت) بیا مومي۔ دَ بایزید روښان دَ طریقې په اصطلاح
کښې دَ دې مقام حاصلونکي ته "عارف واجد" وائي۔ عارف واجد چې نوره
ترقي وکړي او دَ پیر کامل په امر دریمه کامیابه چېله وکړي نو دَ
قربت الیقین (قربت) سېر ورته حاصل شي او دَ عارف توب نوم بیا
مومي دَ څلورمې کامیابې چېلې نه پس دَ وصلت الیقین (وصلت) له سېره
تېر شي او عارف واصل وبللے شي۔ دَ پینځمې چېلې نه پس دَ مرشد په
اتباع دَ توحید العین (وحدت) سېر ته ورشي او عارف موحد وبللے شي
او دَ شپږمې کامیابې چېلې نه پس دَ "کشف الاسرار" له سېره همکنار
شي او عارف مسکین وبللے شي او تر دې بله لویه درجه نشته (خو
دا یاد ساتل پکار دي چې روښاني تصوف کښې په یوه زمانه کښې
صرف یو مرشد کامل وي) دَ حبیبي مرحوم له تصریحاتو دا سې
معلومیږي لکه چې بایزید په صراط التوحید کښې صرف دَ شریعت

طریعت، حقیقت، معرفت، سکونت تفصیلات بیان کړی وی[1] حالانکې دَ صراط التوحید دَ مختلفو ځایونو نه دَ دې تصریحاتو تردید کیږی[2] او لکه چې مخکښې په تفصیل سره عرض شوے دے دَ معرفت نه پس ته سېرونه هم دَ معرفت مختلفې کړی دی حتّیٰ چې طالب دَ سکونت مقام ته ورسی۔

دَ بایزید انصاری په تصنیفاتو کښې دَ لیکدود په باره کښې دَ هغه دَ رسالې ذکر هم کیږی۔ او دَ دې دَ پاره له یوه شعره استناد کیږی چې دولت لواڼی ته ئې منسوبوی[3]

افغانی لفظ مُشکل وه لُست کوښښ نه شه
ورته وشوه کنده دیارلس حرفونه

خو متاسفانه دا شعر په هغه چاپی دیوان کښې نشته چې پښتو ټولنې په ۱۳۵۳ هش (۱۹۷۵ء) کښې چاپ کړے دے او نه دا غلطی په "سمون لیک" کښې سمه کړے شوې ده۔ ښاغلی حبیبی دوه ځل بلکې درې ځل دَ دې شعر په ضمن کښې دَ دولت دَ قلمی دیوان دَ ص۔ ۳ حواله ورکوی او خادم مرحوم هم دَ بایزید روښان په ص ۷۳ دَ دې شعر په باره کښې دا صراحت کړے دے چې دا شعر" دولت لواڼی دَ خپل دیوان په سر کښې دَ روښان په مدح کښې وئیلے دے"

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک۔ دوهم چاپ ص۔ ۲۹۷ [2] صراط التوحید ص ص ۴۷، ۱۰۵، ۱۱۳۔ [3] بایزید روښان دَ خادم مرحوم۔ ص۔ ۷۳، دَ پښتو ادبیاتو تاریخ دوهم ټوک دوهم چاپ ص۔ ۲۹۰، دَ خیرالبیان مقدمه دَ حبیبی مرحوم ص ۲۹ او دَ روښان یاد ص ص۔ ۱۶۲ او ۲۹۲ دَ خیرالبیان مقدمه دَ پروفیسر رشاد ص ۹۳ وغیره

دَ دولت لواڼي په چاپي دیوان کښې دَ ۹۴ شعرونو یوه قصیده ده چې له دې شعره شروع کیږی۔

(زه) اول صفت به کښـم له بېچگونه
چې پیدا ئې کړل هـژده هزار قـامونه [1]

او په ټول دیوان کښې صرف دغه یوه قصیده ده چې هغه شعر سره ئې وزن او قافیه سمیږی چې دَ لیک دود په باره کښې دولت ته منسوب شوے دے او دا گومان کېدے شی چې دَ خادم مرحوم دَ "دیوان په سر کښې" او دَ حبیبی مرحوم دَ "ص-۳" اطلاق هم دَ دې قصیدې په کوم شعر کښې چې اوس ئې مونږ په دیوان کښې نه مومو۔

دَ خادم مرحوم دَ بره راوړې وینا مطابق دا شعر دَ روښان په مدح کښې وئیلے شوے دے حالانکې په ټوله قصیده کښې دَ روښان په مدح کښې یو شعر هم نشته البته دَ هغه دَ تصوف دَ "څلور مقامه او څلور سېره" تفصیل بیان شوے دے او دا دوه شعرونه هم پکښې شته۔

چار مقام څلور سېرونه مې بیان کړه
دَ هر هر یوه صفت دوه دوه بېتونه

---

دا دَ محنت دَ عارف زړه هسې روښان کا
لکه نمری صافی مومی له صابونه

---

[1] دیوان ص-۱- وړومبی مصرع کښې "کښم" دَ حاشیې له فراته اخستے شوے دے۔

دې شعر کښې "روښـان" دَ بایزید روښان په معنٰی کښې نه دے راغلے او دا قصیده یو اهم خصوصیت دا هم لري چې دولت پکښې خپل نوم نه دے راوړے حالانکې دَ قصیدو دَ روایت مطابق نوم راوړل ضروري وو ځکه کیدے شي چې قصیده کښې یا دَ مقطع شعر نه وه او یا ترتیب کښې پاتې شوے دے۔

یوه خبره دې ضمن کښې بغېر دَ تردید له ویرې کیدےشي چې دې قصیده کښې دَ دې شعر

افغاني لفظ مشکل وه لُست کوېښ نه شه

ورته وشوه کـنـنده دیارلس حرفونه

دَ سیاق و سباق هېڅ گنجائش نشته۔ ځکه نو تر څو چې دَ دې شعر دَ سیاق و سباق پته ونه لگي نو محض په دې دَ څه قسمه قیاس دَ بنیاد اېښولو دَ پاره هېڅ جواز نشتـه۔

او که دا فرض کړو چې دَ دولت دا شعر واقعي شته نو بیا سوال دا پیدا کیږي چې حالنامه دَ رسم الخط په باره کښې دَ پیرروښان یا دَ روښاني تحریک ذکر ولې نه کوي۔ دا سوال ځکه ضروري دے چې حالنامه دَ پیر روښان په باره کښې مونږ ته دا انکشاف کوي چې دَ هغه له برکته یواځې دَ "توحیدگنج" پښتو ته ونهٔ رسېدو بلکې دَ موسیقۍ خزانه هم پُښتنو بیا موندله او هم دغسې حالنامه دَ پښتو شاعرۍ ته هم دَ بایزید دَ بخښنو تفصیلات بیانوي له خو دَ پښتو دَ رسم الخط په باره کښې مونږ ته دا کتاب هېڅ معلومات نه رابخښي۔

---

حالنامه۔ ص۔ ۲۵۸ او ص ۲۷۳ (مُلخصًا)۔

دَ دې مفروضې په صورت کښې دا سوال هم پېدا کېږی چې هغه کوم دیارلس لفظونه دی چې دَ پښتو دَ پاره روښانیانو وضع کړی وو۔ محترم پروفیسر رشاد دَ کابل دَ عکسی چاپ خېرالبیان سره دَ "خېرالبیان لیک دود" دَ عنوان لاندې خپله مقاله (ص - ۵۵ - ۸۰) کښې په دې باره کښې ډېر مفصل بحث کړے دے او دا نتیجه ئې راوکښې ده چې دَ پښتو په حروف تهجی کښې پ چ ژ او ګ (دَ فارسی نه) ټ ، ړ ، ډ ، ڼ ( دَ هندی نه) ځ ، څ ، ږ ، ښ (دَ پښتو مخصوص توری) دَ عربی دَ اتهه ویشتو توریو نه زیات دی۔ ( دَ ځ دَ پاره پیر روښان ۔ډ۔ او دَ ږ دَ پاره 'ڈ' لیکی۔) خو دا دولس توری جوړېږی نو دَ دې نتیجې په رڼا کښې بیا هغه دیارلسم توړے کوم یو دے ؟ زما په خیال دَ دولت په مزعومه شعر کښې کېدے شی چې "دیارلس" دَ "دولس" په ځائې راغلے وی۔ ځکه چې دَ کتابت داسې غلطې یواځې په روښانی ادب کښې نه بلکې په هر ادب کښې ممکنې دی۔ دَ 'ګ' دَ توری په خېرالبیان کښې دوه واره دَ مستقل حرف په حېثیت راتلل هم دَ دغسې غلطی یو مثال دے۔ او یو بل غټ مثال ئې دَ "بمثل حروف القرآن" مانند حروف هائے قرآن" او په مانند دَ حرفونو دَ قرآن" ^[1] دَ خېرالبیان دَ نسخ په ځائې په نستعلیق کښې لیکل هم دی او دا خبره هم هېرول نه دی پکار چې که یو خوا په ټول خېرالبیان کښې 'ه' په زورکی څرګنده کړے شوے ده لکه "نشته" دَ "نشت" په شکل

---

[1] خېرالبیان ص - ۲ و ۳ (عکسی نسخه ۳ ب او ۴ ا) -

زره دَ "زر" پهٔ شکل او حرفونه دَ "حرفون" پهٔ شکل راوړے شوی دی نو بل خوا دَ کومو حروفو چې څلور شکله لیکلے شوی دی نو څلورم شکل سره "ٔ" لیکلے شوې دهٔ - دا هم دَ کتابتی عدم استقامت یو غوره ثبوت دے۔

دَ حبیبی مرحوم دا وینا چې دَ عکسی نسخې ورومبی څوارلس مخه دَ بایزید انصاری دَ پښتو رسم الخط پهٔ باره کښې لیکلې شوې رساله دهٔ (دَ مرحوم دې وینا سره تر اوسه هېچا هم لیکلے اختلاف نهٔ دے څرګند کړے) دَ لاندینیو وجوهاتو لهٔ کبله هغه دَ پروفیسر رشاد خبره دَ "تامل ور" ښکاری۔

و۔ دَ خیرالبیان ابتدا ته پهٔ څلورو ژبو کښې "بدایة الکتاب" "اغاز کتاب" اغاز دَ کتاب او "کتاب کے اغاز" وئیلی شوی دی چې دا نتیجه ترې راوځی چې دَ خیرالبیان ابتدا لهٔ دغه ځایه کیږی۔

ب۔ دَ خدائې پاک لهٔ خوا بایزید ته دَ حروفو تعلیم دَ چاپی خیرالبیان پهٔ څلورم مخ او دَ عکسی خیرالبیان پهٔ ۵ب مخ ختم شوے دے نو دَ حبیبی صاحب او دَ هغوی دَ مقلدینو دَ څوارلسو مخو خبره څهٔ سمون نهٔ خوری۔

ج۔ دَ حروفو دَ تعلیم نه پس خیرالبیان کښې د بسم الله الرحمٰن الرحیم "تفسیر" الفاظ راغلی دی او لهٔ دغه ځایه څلور کرښې پس یو ځل بیا دَ "بسم الله الرحمٰن الرحیم" الفاظ دوباره کړے شوی دی او مخکښې ئې ترې دَ "بدایة الکتاب" الفاظ دی چې دَ چاپی کتاب پهٔ ص ۷ او دَ عکسی نسخې پهٔ ۷ب ئې فارسی کښې دَ چاپی کتاب پهٔ ص ۱۰ او دَ عکسی نسخې پهٔ ۹ب او ۱۰ الف

يې پښتو کښې ترجمه شوې ده.

د  دَ خوارلسم مخ نه اکاهو دَ عکسی چاپ پهٔ ص ۷ الف او دَ چاپي کتاب پهٔ ص-۸ دَ "اکتب فی هذا الکتاب" الفاظ راځي چې دَ عکسی نسخې پهٔ ۸ ب او ۹ الف او دَ چاپي نسخې پهٔ ص ۹ يې فارسي کښې او دَ چاپي نسخې پهٔ ص ۱۲ او دَ عکسی نسخې پهٔ ۱۰ ب يې پهٔ پښتو کښې ترجمه شوې ده. پهٔ دې لحاظ وړومبی خوارلس مخونه (؟) دَ خیرالبیان نه بیل څهٔ شے نهٔ دے بلکې دَ خیرالبیان دَ وړومبی خوارلسو مخونو فارسی او پښتو ترجمه چې نورو مخونو ته اوړیدلې ده نو لهٔ دې داحتمًا ثابتیږی چې دَ کتاب "خوارلس مخونه" ځان ته بیل حیثیت نهٔ لری ځکه نو دا خبره صحیح نهٔ ده چې دَ خیرالبیان وړومبی خوارلس مخونه دَ بایزید انصاری دَ رسم الخط پهٔ باره کښې ځان له یوه جُدا رساله تشکیلوی.

دَ بایزید انصاری یو ورک کتاب "حالنامه" نومیږی- چې ښاغلی خادم مرحوم يې دَ دبستان مذاهب پهٔ حواله مولٰینا عبدالقدوس يې دَ پښتو اکیډیمۍ دَ ټائپ شوې نسخې پهٔ حواله (چې ما هم دې مقاله کښې هم دَ دغې نسخې حوالې ورکړی دی) او حبیبی مرحوم يې پهٔ نورو ډیرو حوالو ذکر کوی- خو داسې ښکاری چې مرحوم حبیبی صرف دَ دې کتاب نوم اوریدلے وهٔ او دَ کتاب کومه نسخه يې نهٔ وه لیدلې (دَ دې دلائل به زهٔ وروستو بیانوم)

کومه حالنامه چې اوس دَ علی ګړه یونیورسټۍ پهٔ لائبریرۍ کښې موجوده ده او نقلونه يې لاهور او پېښور کښې موندلے شی دَ

علی محمد بن ابابکر قندهاری لیکلې شوې نسخه ده. د دې په ابتدا کښې علی محمد وائی :- بعضی از محبان...... ازین فقیر التماس داشتند. که حالنامه پیر دستگیر که از تدابیر دوران و تسامح ناسخان تغیر و تبدیل بعبارتش روی راه یافته آنچه از کتاب و ناقلان معتبر استماع گشته به نمط تحریر و در نظم وتقریر آورده شد[1]

ترجمه. ځنې دوستانو...... له دې فقیره غښتنه وکړه چې د پیر دستګیر حالنامه کښې د زمانې له تېرېدو او د نسخه نویسانو د بې احتیاطۍ په نتیجه کښې عبارت تبدیل شوے دے..... ځکه نو له (هغه) کتابه او د معتبرو ناقلانو ځنې چې څه واورېدے شو هغه راوړے شو" ګویا دا موجوده حالنامه په زړه حالنامه (چې بایزید انصاری لیکلې وه) او د نورو روایاتو په روایت او پخپله د لیکونکې په علم مبنی ده.

ولې هغه حالنامه چې بایزید پخپله لیکلې وه اوس زمونږ د عالمانو د تحقیق مطابق نشته. دا موجوده حالنامه د ښاغلی حبیبی مرحوم د اندازې مطابق په ۱۰۵۰ھ کښې لیکلے شوې وه[2] د ښاغلی ببنوا مرحوم د بیان مطابق دا کتاب د "اورنګزیب په وختو کښې" لیکلے شوے وه[3] اورنګزیب د ۱۰۶۸ھ نه تر ۱۱۱۸ھ پورې باچائی کړې ده. ځکه نو د حبیبی مرحوم د بیان کړی تاریخ تردید پخپله هم د ببنوا مرحوم له بیانه کېږی. او د علی محمد حالنامه کښې د الله داد (رشید خان اول) د مرګ ذکر بیان شوے دے چې بې له څه اختلافه په ۱۰۵۸ھ کښې واقع شوے دے[4] بله دا چې

---

[1] حالنامه ص ۱ [2] د خیرالبیان عکسی چاپ مقدمه ص ۲۸ او د روښان یاد ص ۲۹۳۰
[3] د خیرالبیان عکسی چاپ. ص. ۴۱ [4] حالنامه ئې د وفات تاریخ ۱۱ ر شوال ۱۰۵۸ھ ( د پنځوسو کالو په عمر) لیکی. ص. ۴۸۳ او ۴۸۶

حالنامه یو ځائې کښې "دَ اورنګ بادشاه" ذکر کوی له نو ځکه دَ حبیبی مرحوم اندازه صحیح نه ده او علی محمد خپله حالنامه دَ اورنګزیب دَ بادشاهۍ په زمانه کښې دَ ۱۰۶۸ه نه پس لیکلې وه او په دې لړ کښې دَ ښېنوا مرحوم اندازه صحیح ده۔

خو اوس سوال دا پیدا کیږی چې هغه دَ بایزید روښان خپله لیکلې "حالنامه" څه شوه۔ له بده مرغه په روښانی تحریک بحث کونکے یو لیکونکے هم دَ دغه ورک کتاب دَ موجودګۍ په باره کښې مونږ ته څه معلومات نه راکوی۔ حالانکې دې ضمن کښې لکه دَ نورو ډېرو بحثونو اندازې خو کېدے شوې۔ مثلاً دا اندازه خو کېدے شوه چې دَ دبستان مذاهب لیکونکی دَ کومې حالنامې ذکر کړے دے هغه دَ بایزید انصاری لیکلې شوې حالنامه ده ځکه چې دبستان مذاهب په ۱۰۵۵ه کښې لیکلے شوے دےله او لکه چې بره ثابته شوه دَ علی محمد حالنامه دَ ۱۰۶۸ه نه پس ته لیکلې شوې ده۔ دَ دبستان مذاهب دَ نهم تعلیم "نظر اول" داسې شروع کیږی "در حالنامه که نگاشته قلم تحقیق اوست مسطور است"له (حالنامه کښې چې هم دَ ده لیکلے کتاب دے داسې لیکلی شوی دی او په دېو الفاظو ختمیږی "تا اینجا از حالنامه میاں بایزید هست" له

ترڅو چې زما دَ ذاتی رائې تعلق دے۔ دَ صراط التوحید وړومبی ۲۹ مخونه دَ بایزید دَ خپل لاس دَ لیکلې حالنامې بقیه ده۔ ځکه چې دَ دېو واړو مخونو اسلوب دَ سرګزشت دے۔ داسې سرګزشت بایزید انصاری

---

له حالنامه ص۔۶۔۵۰۔ له دَ عکسی چاپ خیرالبیان ص۔۳۔۴۳۔ (دَ ښېنوا مرحوم مقاله)

له دبستان مذاهب ص۔۶۔۳۰۔ له ایضاً۔ ص۔۳۰۸۔

دَ خپل بل کتاب سره نه دے لیکلے۔ او لکه چې دَ صراط التوحید
په ضمن کښې عرض شوے دے۔ دغه رساله دَ موجوده صراط التوحید
دَ ص ۳۰ نه په دې الفاظو شروع کېږی "آغاز رساله که همین است بسم الله
الرحمٰن الرحیم" دَ صراط التوحید قلمی نسخه اوس دَ بالاماڼی دَ مدرسه
رفیع الاسلام دَ بانی مرحوم په کتب خانه کښې نشته۔ ځکه نو دا خبره
په یقین سره نه شو وئیلے چې دَ موجوده صراط التوحید څومره
ابتدائی پاڼې تلف شوی دی۔ دَ کتاب تعارف کونکی حافظ محمد ادریس
مرحوم وئیلی دی چې دَ قلمی نسخې اته صفحې لوئېدلی دی[1] او دَ
کتاب پېش کونکے بناغلے محمد عبدالشکور په دې کفایت کوی چې دَ
کتاب ابتدائی څو اوراق تلف شوی دی[2] خو هرکله چې په زړو
کتابونو دَ صفحو نمبر دَ لیکلو رواج نه وه نو په تیقن سره دا نه
شو وئیلے چې بناغلی حافظ ادریس دَ بلې نسخې په عدم موجودګی
کښې دا څنګه ووئیلے شو چې په موجوده نسخه کښې اته صفحې کمې
دی۔ دویمه پرېشانونکې خبره دا ده چې حافظ صاحب "اته صفحې"
یادوی او محمد عبدالشکور صاحب "څو اوراق" یادوی نو هر څو که
"اته صفحې" هم "څو اوراقه" کېدے شی خو که چرې دا اعداد هم
دومره یقینی وے لکه چې حافظ صاحب ئې ذکر کوی نو دَ پېښور دَ
میوزیم دَ مهتمم په حېثیت ئې محمد عبدالشکور صاحب قطعی شمېر
ولې نه ښئیلو۔ په دې بنا زما په خیال دَ "اتو صفحو" دا خبره
تشفی بخښه نه ده۔ او عین ممکن ده چې دا شمېر ډېر زیات وی

---

[1] صراط التوحید۔ تعارف۔ ص۔ ا۔ [2] ایضاً۔ ص۔ ح۔

او دَ موجوده صراط التوحید ورومبنی ۲۹ صفحې دَ بایزید انصاری دَ حالنامې صرف بقیه وی.

دَ بایزید روښان یو بل کتاب چې تر اوسه ئې هېڅ پته نه لګی فخرالطالبین دے. دَ حالنامې دَ بیان مطابق دا رساله دَ خلیفه یُوسف په لاس دَ بدخشان مرزا سُلیمان ته لېږلے شوې وه.[1] خو هرکله چې په صراط التوحید کښې خطاب هرځائې "بادشاهانو" ته شوے دے نو دَ بدخشان امیر ته دَ ځان له کتاب دَ لېږلو دَ ضرورت څه جواز نه ښکاری او دا قیاس به ډېر بې ځایه نه وی چې "فخرالطالبین" دَ صراط التوحید دَ هغې نسخې نوم دے چې مرزاسلیمان ته لېږلې شوې وه.

برسبیل تذکره دا هم یاد ساتل پکار دی چې حالنامه دَ ډېرو داسې کتابونو نومونه یادوی چې اوس هغوکښې دَ یو هم څه پته نه لګی. په دېو کتابونو کښې اهم کتابونه دا دی:-

۱. مقصود الطالبین. دَ خلیفه مودود.
۲. مراۃ المحقیقین. دَ ملا ارزانی. (دَ دواړو ذکر دَ حالنامې په ص ۲۰۰ راغلے دے.)
۳. مراۃ العارفین (دَ ابابکر قندهاری دیوان چې ذکر ئې دَ حالنامې په ص. ۳۶۹ شوے دے)

بناغلے حبیبی مرحوم دَ روښان یو نوم ورکے تالیف په خپله یوه مقاله کښې را معرفی کوی[2] خو دَ دغې تالیف دَ "روښانی" کېدو

---

[1] حالنامه. ص. ۲۸۲. [2] دَ خیرالبیان عکسی چاپ دَ مقدمې ص ۳۰ او دَ روښان یاد. ص ۲۹۳.

دَ پاره چې دوی کوم دلائل پېښ کوی په هغو تسلی نه کیږی دَ حبیبی مرحوم وېنا دا ده چې دې رساله کښې دَ خیرالبیان صراط التوحید او مقصودالمومنین غندې دَ "بایزید مسکین" نوم اخستے شوے دے او دَ عربی او فارسی نوشتې بڼه او جوله" ئې دَ بایزید دَ نورو تالیفاتو سره برابریږی ځکه نو دوی دغه رساله هم دَ پیر روښان گڼی۔

حبیبی مرحوم بل دلیل دا پېښ کوی چې دَ رسالې په خاتمه کښې دَ "بایزید مسکین" کومه مقوله لیکلې شوې ده هغه دَ خیرالبیان له یوې جملې سره معنوی او ظاهری شباهت لری"[1]

متاسفانه دا دواړه دلیلونه تسلی بخښونکی نه دی ځکه چې محض دَ "بایزید مسکین" په نامه اخستلو دَ یو لیک په باره کښې په قطعیت دا دعویٰ نه شی کېدے چې دا دَ پیر روښان لیک دے۔ "دَ عربی، فارسی دَ نوشتې بڼه او جوله" کښې برابرے محض دَ دې خبرې ثبوت دے چې لیکونکے دَ روښانی تحریک او روښانی لیکونکیو ځنې متاثره دے او دَ خیرالبیان محض یوې جملې سره مشابهت (او هغه هم دَ کتاب دَ اخرې جملې) څه دومره وزن نه لری چې دَ هغې په بنیاد څوک دا دعویٰ کولے شی چې دا کتاب هغه سړی لیکلے دے چا چې خیرالبیان لیکلے دے۔ دا درې واړه خبرې دَ هر داسې کتاب په باره کښې ثابتیدے شی چې دَ روښان مریدانو لیکلے وی۔

---

[1] عکسی خیرالبیان ص-ص ۳۲، ۳۳ او دَ روښان یاد ص ص-۲۹۶- ۲۹۷-

دَ دې نسخې کاتب هم هغه همه دان ابن شیخ نعمت دے چې هغه مقصود المؤمنین ئې (دَ پښتو لهٔ ترجمې سره) لیکلے دے. چې ښاغلی ځلمی هوادمل ئې قلمی نسخه دَ سالار جنګ میوزیم (دَ عربی کلکشن) کښې لیدلې ده [1] هرکله چې ښاغلی هوادمل ته دَ مقصود المؤمنین دَ نسخې دَ قدامت په باره کښې څهٔ معلومات نهٔ دی حاصل شوی نو دَ حبیبی صاحب پهٔ کته کړې نسخې نه کم از کم دا خو معلومه شوه چې دغه همه دان ابن شیخ نعمت پهٔ ۱۰۴۳ھ کښې ژوندے وهٔ [2] او دا شیخ نعمت غالبًا چې دَ هغه شیخ بایزید دوړ ورور وه چې دَ بایزید انصاری دوهم خلیفه وهٔ او چې دَ چا پهٔ باره کښې بایزید روښان وئیلی وو "این بایزید و آن بایزید یک بایزید" (دا بایزید او هغه بایزید یو بایزید) [3] بایزید دوړ دَ روښانیانو پهٔ سلسله کښې ډېر لوئې مقام لری خو هرکله چې حالنامه دَ ده پهٔ تعارف کښې دا وائی چې دے دَ نعمت دوړ ورور وه نو داسې ښکاری چې نعمت دوړ هم دَ روښانیانو پهٔ سلسله کښې ډېره لویه درجه لرله.

هم دغسې دَ پیر روښان یوه بل "رساله" هم متنازعه فیه حیثیت لری. دا رساله پښتو ټولنې پهٔ ۱۳۵۵ کښې دَ روښانی رسالې پهٔ نامه چاپ کړې ده او دَ ښاغلی دوست شنواری نه بغیر نورو ټولو افغان لیکونکیو دې ته دَ شک پهٔ نظر کتلی دی او را رائې ئې څرګنده کړې ده چې دا رساله دَ بایزید روښان نهٔ بلکې شاید دَ بل کوم روښانی لیکونکی اثر وی. یواځې ښاغلی دوست شنواری پهٔ دې اصرار کړے دے او لهٔ خپله خوا ئې ښهٔ زیار کړے دے

[1] دَ هند دَ کتابخانو پښتو خطی نسخې. ص ص ۵۲-۵۱ [2] خېر البیان عکسی چاپ، ص ۳۳ او دَ روښان یاد ص ۲۹۷ [3] حالنامه ص-۲۱۴-

چې دا رساله دَ بایزید انصاری لیکلې ثابته کړی. دَ ښاغلی زلمی هوادمل گرانقدر ریسرچ "دَ هند دَ کتابخانو پښتو خطی نسخې" (مطبوعه ۱۹۸۴) کښې نه صرف دا خبره فیصله کښلې شوې ده چې دا رساله بایزید انصاری لیکلې ده بلکې ښاغلی هوادمل پرې دَ خپل تحقیق په رڼا کښې دا اضافه هم کړې ده چې دَ دې رسالې نوم "فرحت المجتبیٰ" دے له

دې ضمن کښې ښاغلی هوادمل څومره کړاک کړے دے هغه ډېر قابل داد دے خو سره دَ دې هم دَ هغوی پېش کړی دلیلونه قاطع نه برېښی. دَ ښاغلی هوادمل وړومبے دلیل دا دے چې دَ "روښانی رسالې" کومه دوېمه ناقص الاول نسخه چې هغوی په ۱۳۵۶ کښې موندلې ده په خاتمه کښې دا شعر لری:-

دا تصنیف دَ میا روښان دَے سری دې ونغوږینه

زما په خیال صرف په دې شعر دومره لویه دعویٰ نه شی ثابتیدے ځکه چې دَ دې شعر هم معنیٰ شعرونه په دې رساله کښې ډېر ځلې راغلی دی او دا دَ رسالې ابتدا هم له دې شعره کیږی:-

میاں روښان وئیلی دینه دا سری دې ونغوزینه

دَ دې نه پس هر نوے باب له دې شعره شروع کیږی-

مسکین وئیلی دیته دا سری دې ئې نغوزینه

نو که دَ دې ټولو شعرونو په رڼا کښې دا خبره شک منه کېدے شوه چې دَ رسالې لیکونکے بایزید انصاری دے نو محض دَ دې یو

له دَ بره ذکر شوی کتاب ص ص ۲۲ - ۲۴ او دَ دغه کتاب تعلیقات ص ص ۲۱۷ - ۲۲۰-

شعر په وجه دغه شک لرې کېدے نه شی ځکه چې دا گمان کېدے شی چې همدان ابن شیخ نعمت یا بل کوم لیکونکی دلته دَ تصنیف معنیٰ هم هغه کړې وی کومه چې دَ "مسکین وئیلی دینه" مصرع څرګندوی۔

دَ ښاغلی هوادمل دوېم دلیل دا دے چې دَ ډیلی په ملی میوزیم کښې چې هغوی دَ دې رسالې کومه بله نسخه لیدلې ده هغې کښې لیکونکی دَ رسالې په آخر کښې دا هم لیکلی دی۔

میا روښان وئیلی دی په عنایت دَ الٰهی

زه به دا بیان کړم یو څو رُباعی

هر څوک چې ئې کړده کا شناخت به ئې پیدا شی

کړده په اخلاص وکا څوک چې پټیږی[1]

دَ دې شعرونو دَ انتهائی ټیټ معیار سره سره بیا هم دلته هغه "سخن ګسترانه" خبره بیا پیدا کیږی چې دَ "میا روښان وئیلی دی" له الفاظو نه چې په ۱۳۵۵ هش کښې دا مطلب صحیح نه وه ګڼلے شوے چې دَ رسالې لیکونکے میاں روښان دے نو په ۱۳۶۳ هش کښې ترې دا مطلب وکښل شنګه او ولې صحیح شو؟ دَ "ډیلی دَ ملی میوزیم" دَ نسخې دا خبرې هم ډېرې اهمه ده چې دَ نقل شویو شعرونو لیکونکے دَ "میا روښان وئیلی" په "یو څو رُباعی" کښې دَ بیانولو دعویٰ کوی اوس چې تر څو دغه "رباعی" نه وی پیدا شوی تر هغه وخته خو به دا ثابتول ګران وی چې دَ شعرونو ویونکے

---

[1] هم دغه کتاب ص- ۲۱۹ (ملخصًا)

څه وئیل غواړي۔ آیا دَ پیر روښان څه خبرې دي چې هغه رباعیانو ته منتقلې کړې دي او که دغه رباعیات دَ پیر روښان خپل رباعیات دي چې دَ روښاني رسالې یا "فرحت المجتبیٰ" نه بغیر څه شے دے۔ ښاغلی هوادمل دا هم نه دی وئیلی چې دَ دوئیمې نسخې (چې دوی په ۱۳۵۶ هش کښې موندلې وه) دا شعر

دا تصنیف دَ میا روښان دے سرې دې ونغوږ ېینه

دَ ډیلی دَ ملی میوزیم په نسخه کښې شته او که نه۔

ښاغلی هوادمل دَ خپل کتاب په ص۔ ۲۲ دَ رسالې نوم "فرحت المجتبیٰ" او په میاشتو کښې "تذکرۀ میا روشان" لیکلے دے او دغه نوم ئې دَ هم دغه کتاب په ص ۲۱۷ داسې لیکلے دے۔ فرحت المجتبیٰ" یا (دَ روښان تذکره)" هر څو که دا معنوی لحاظ سره څه فرق نه کوی خو په اسمائې معرفه کښې دا فرق مناسب نه دے او لُستونکے په مشکل کښې اچوی۔

دَ "ډیلی دَ نسخې دَ لومړي پاڼې" په الف مخ دَ رسالې نوم "الجز تذکیرهِ میا روښان" لیکلے شوے دے خو دَ هم دغه نسخې په آخر کښې چې دَ گل محمد روښاني کوم نظمونه راغلی دی هغو کښې دا شعر هم شته

میاں روښان وئیلی دا رساله مې فرحت المجتبٰی [1]

اوس نه شو وئیلے چې دَ کتاب نوم "تذکرۀ میا روښان" دے "تذکیر دَ میا روښان" دے او که "فرحت المجتبیٰ" دَ دیو دومره کړکېچونو په

---

[1] دَ هند دَ کتابخانو هندی نسخې ـ ص۔۔۲۲۰ (ملخصًا)۔

موجودګی کښې دا دعوی کول چې دَ رسالې نوم "فرحت المجتبیٰ" دے څه بنیاد نه لری۔ ځکه چې دا هم قیاس کېدے شی چې فرحت المجتبیٰ دَ یو وروستی ِسړی نوم وی چې دَ کل محمد روښانی په لیکلې رساله ئې خپل نوم لیکلے وی۔

هر کله چې دا رساله دَ نمانځه اوداسه دَ عامو مسئلو اودَ ځنی هغو مقاماتو ذکر کوی چې په روښانی تصوّف کښې څه ځائې نه لری ځکه نو دَ عامو مسئلو دَ یو والی او دَ تصوفی مقاماتو دَ اختلاف په وجه دا رساله دَ بایزید روښان تحریر یا تقریر نه شی ثابتېدے او دَ ښاغلی صدیق الله رښتین هغه تول دلائل په خپل ځائې ثابت پاتې کېږی چې دَ روښانی رسالې په مقدمه کښې ئې راوړی دی[له] او چې ښاغلی دوست شنواری ئې نه هغه وخت ځواب کړے وه او نه دَ رسالې دَ چاپ کېدو نه پس ئې کوم ځواب زما تر نظره تېر شوے دے۔ ښاغلی دوست شنواری په خپله هغه مقاله کښې چې دَ "روښانی رساله" په سر کښې چاپ شوې ده، دَ حبیبی مرحوم هغه وینا هم لیکلې ده چې دَ هغې مطابق ښاغلی حبیبی مرحوم هم دَ دې قائل نه وه چې دَا رساله بایزید انصاری لیکلې وه دَ حبیبی مرحوم وینا ده:۔

"غالباً دا رساله باید دَ پیرروښان وی مګر دا خبره نوره څېړنه او مطالعه غواړی اوسرسری په سل کښې حکم نه شی کولے ترڅو چې دَ دغه رسالې نسبت پیرروښان ته په یوه بل دلیل ثابت نه شی ځکه چې دَ رسالې داخلی دلائل او اشارات دَ کامل یقین

---

له روښانی رساله۔ص ا ب ج۔

مؤیں نه شی کېدے" له

متاسفانه دَ ښاغلیو دوست او هوادمل څرګند کړی دلائل هم دَ هغو داخلی دلائلو او اشاراتو دَ تعریف لاندې راځی چې حبیبی مرحوم پرې دغه دعویٰ یقینی نه ګڼله- خو زما په خیال دَ دې رسالې دَ بایزید روښان سره .دَ نسبت نه لرلو له ټولو لوی دلیل دا دے چې په حالنامه کښې ئې هیڅ ذکر نشته او هر ځوک چې حالنامه دَ بایزید روښان او دَ هغه دَ تحریک په باب له تر ټولو لوی سند ګڼی هغوی دَ یوې لحې دَ پاره دا رساله دَ بایزید لیک نه شی منلے-

ښاغلی دوست شنواری دَ اخون درویزه دَ مخزن په حواله لیکلی دی چې "کومې نخښې اخون درویزه دَ روښان دَ رسالې (یا رسالو)په باب وئیلی په دغه رساله صدق کوی" له اخون درویزه دَ بایزید دَ رسالو دا خصوصیات بیانوی-

"رسائل بسیار در باب الحاد تالیف نموده- اما یکے از خاصیت و تلبیس آں شیطان سیرت آں بوده که در هر رساله خود سخنان با رمز و ایما می نوشته تاآنکه بعض از اهل بینش و کمال دانند که دریں میل الحاد هست و الّا هر کسے بر سر سخن او مطلع نمی شد" سه

ترجمه:- دَ الحاد په باب ئې ډېرې رسالې تالیف کړی دی خو دَ دغه شیطان سیرت له تلبیسه او خاصیتونو یو دا وه چې په هره رساله کښې دَ رمز او ایما خبرې لیکی تر دې حده چې (صرف) دَ بصیرت او کمال دَ خاوندانو ځنې بعض په دې پوه شی چې دېو کښې

---

له روښانی رساله- دَ رسالې دَ تالیف په باب نظر- ښاغلے دوست شنواری-ص-د

له هم دغه مضمون-ص-ه- سه مخزن-ص-۱۲۶-

الحاد ته مېلان دے کښې نو هر سړے دَ ده په خبرو نه پوهېږي"

په دې ضمن کښې بناغلے دوست شنوارے دَ اخون درويزه دَ خبرې تصديق داسې کوي چې دَ رسالې درې "پښتونه" رانقلوي۔

چې منکر دينه له فرضو پښتنه کانې چې له کومه قامه دينه

زه څرګند وئيلے نه شم ما په اشارت وئيلې دينه

هر چې عاقلان دي په اشارت به پوهيږينه[1]

بيا پخپله خپل ترديد کوي او وائي چې مګر دلته هغه اشاري نشته چې دَ الحاد بوئ ترې لاړ شي"[2] او له دې نه پس بيا بناغلي دوست شنواري نور دلائل راوړل شروع کړي دي۔ دَ اخون درويزه دَ خصوصياتو دَ تصديق په سلسله کښې له دې نه څکښې بناغلي شنواري دوه نور دلائل هم راوړي دي يو دا چې "ان ملعون به زبان افغاني شعر مي گفت" (هغه ملعون په پښتو شعرونه وئيل) چې اخون درويزه وئيلي دي نو "البته دغه رساله شعر دے"[3] ګويا دَ دې "دليل" په رڼا کښې هره هغه رساله چې په شعر کښې وي نو هغه به دَ بايزيد روښان وي۔

بيا دَ اخون درويزه حواله ورکوي او وائي:

*و آنچه وے در رساله خود آورده است که جز حلال نه بايد خوردن غرض او ايں بود که..... (مخزن-۱۲۳خ)* په رساله کښې دَ حلالو او حرامو مسئلې ډېرې تکرار شوي دي لکه چې وائي۔

اوّل دَ ايمان شرطونه دا دي چې وخدائې وته په غيب ايمان ورينه

---

[1] روښاني رساله-ص-ه-[2] هم دغه [3] هم دغه۔

دوہم زده کړه چې علم غیب وارہ لہ خدائ دے

درېم چې بهشت دوزخ نالیدلی وینه

څلورم چې حلال په حلال شمېرې

پینځم چې حرام حرام کښینه

دَ اخون درویزه مفصل اعتراض دا دے:-

"د چوں از ہشتم ذکر خود مرید اگاه میکرد و آں زمان میگفت اکنوں تو از امر شریعت و نواہی فارغ آمدی زیراکہ کار خود را تمام کردی- این ہنگام ہر چہ یابی بخور از حلال و حرام- و رنجه وے در رسالۂ خود آورده است کہ جز حلال بناید خوردن غرض وے این بوده کہ ہر چہ از دیگرے بہ غضب و زور و زخم شمشیر بگرفتی آں حلال است زیراکہ بہائے سرتو است و ہر چہ بہ سوال بگرفتی آں حرام است" له

ترجمه: او هر کله چې لهٔ خپل اتم ذکر ځنې مرید به ئې خبر کړه نو هغه وخت به ئې وئیل چې اوس ته دَ شریعت دَ امر او نهی ځنې فارغ شوې ځکه چې خپل کار دې مکمل کړه- دا وخت چې حرام حلال هر څهٔ بیا مومې خوره ئې- او هغه چې هغهٔ په خپله رساله کښې راوړی دی چې لهٔحلالو بغېر بل څهٔ نهٔ دی خوړل پکار نو غرض ئې دا وه چې هر څهٔ چې دې لهٔ بله پهٔ غضب، زور او پهٔ توره ونیوهٔ هغه حلال دی ځکه چې ستا دَ سر قیمت دے او هر څهٔ چې تا پهٔ سوال ومونډل هغه حرام دی"

اوس به لُستونکی پوهٔ شوی وی چې بایزید روښان څهٔ وائی، اخون درویزه ترې څهٔ مطلب اخلی او بیا بناغلے دوست شنوارے ترې څهٔ نتیجه وباسی-

---

له مخزن- ص-۱۲۳-

دَ ښاغلی دوست شنواری بل دلیل دا دے چې "رساله دَ خیرالبیان پهٔ شان دَ روښان ځنګله نامه پېل شوې - دَ خیرالبیان دَ هرې مسئلې پهٔ سر کښې (او بایزیده) پهٔ رساله کښې (مسکین وئیلی دینه) راځی - دا دَ مولفینو یو ځوانے دود دے چې دَ کتاب پهٔ سر کښې به ئې خپل نوم ښکاره کولو" له

دَ محترم دوست دَ "دلیل" ځواب هغهٔ ځنګله کړے دے چې هم دې مقاله کښې ئې دا منلی دی چې "رساله دَ روایت او خیرالبیان دَ الهام پهٔ صورت لیکل شوې" ۲له دَ دې حقیقت پهٔ رڼا کښې به مونږ ووایو چې خیرالبیان کښې دَ "او بایزیده" تکرار ځکه دے چې دا دَ بایزید دَ عقیدې مطابق هغهٔ ته دَ "خدائی الهام" دے - که داسې نهٔ وی نو دَ خیرالبیان او رسالې کښې دَ "او بایزید" او "مسکین وئیلی دینه" تکرارونه دواړه به دَ "مولفینو ځوانے دود" ګڼو او داسې به دَ افغانستان دَ ګرانو لیکونکیو دا متفقه دعویٰ غلطه ثابته شی چې خیرالبیان "الهامی" کتاب دے -

دَ ښاغلی دوست بل دلیل دا دے چې رساله دَ خیرالبیان پهٔ شان پهٔ مخصوص طرز لیکل شوې او دَ فقهې لهٔ نورو کتابو څخه ځرګند توپیر لری" ۳له زما ډېره عاجزانه رائې دا ده چې دا دلیل بې بنیاده دے ځکه چې دَ دې مطلب به دا شی چې هره رساله چې دَ خیرالبیان پهٔ شان پهٔ مخصوص طرز (؟) لیکلې شوې او دَ فقهې لهٔ نورو کتابو څخه فرق لری نو هغه به بایزید انصاری لیکلې وی - دَ دې دلیل

---

...... له روښانی رساله - دَ ګران دوست شنواری مقاله - ص - و -

۲له ایضًا - ص - ز - ۳له ایضًا - ص - و -

دَ لانديې ښاغلی دوست دا خبره هم کړې ده چې دَ خېرالبيان دَ ص (۱۴)
او دَ رسالې دَ ص-۲۰ مضمونونه يو شان دی ما دَ ډېر مشقت باوجود
په دغه دواړو مخونو بيان شويو مضمونونو کښې څه يو ولے پيدا
نه کړے شه- خو که چرې دا وی هم نو دا دَ دې دعوې ثبوت
نه شی کرځېدے چې دواړه ليکونه دَ يو کس دی- که خېرالبيان
رښتيا "الهامی" کتاب وی نو دَ روښان دَ تحريک هر عالم ته دَ دغه
"الهامی کتاب" دَ تفسير حق حاصل وه او ډېره اغلبه ده چې دا رساله
دَ خېرالبيان دَ متعلقه ځايونو په تفسير کښې ليکلے شوې وی-

ښاغلے دوست دَ څلورم دليل په سلسله کښې وائی" په دواړو
کښې دَ روښان دَ طريقت دَ منزلونو تفصيل چې هغه (دَ شريعت،
طريقت، حقيقت، معرفت، قربت، وصلت، وحدت، سکونت) منزلونه
دی په تفصيل سره بيان شوی دی- [1] ښاغلی دوست دَ "روښانی رسالې"
دَ هغو مخونو حواله نه ده ورکړې چې پکښې دَ دېو "منزلونو" تفصيل بيان
شوے دے خو دَ دې په مقابله کښې زه دَ هغو مخونو حواله ورکوم
چې دَ اتو په ځائې پکښې له برهِ ذکر شويو "منزلونو" څخه صرف شپږ
منزله ذکر شوی دی-

"مسکين" چې دَ توحيد علم بيانوی نو وائی-

توحيد مقام دے دَ يکانګی چې (رئي) شپږ منزله دبنه
نومونو نه به ئې وايم که دَ چا په (شايد پرې) رضاوينه
شريعت طريقت حقيقت دے معرفت قربت وصلت دې ګښينه [2]

---

[1] ايضًا-ص-ز [2] روښانی رساله (عکسی حصه) ۹ مخ- چاپی حصه-۶ مخ-

یو بل ځائې کښې وائی۔

هر چې شلور مقام او کلیمه ئې نه زده — دَ فقیرئ لقمې په (پرې) حرامې وینه
شریعت طریقت حقیقت دے — شلورم دې معرفت کښینه [1]

له دې نه فورًا پس بیا دَ دغو شلورو وارو "مقاماتو" کلیمې بیانیږی او دَ ختمېدو نه لږ مخکښې دَ "فقرنامه" په حواله دَ اتو مقاماتو ذکر کیږی [2] چې دَ بایزید روښان دَ "اتو مقاماتو" په ځائې ئې نور اته مقامات را اخستی دی چې له هغو نه صرف دَ شپږو مقاماتو یعنی دَ "تائبانو" دَ "عابدانو" دَ "زاهدانو" دَ "صابرانو" دَ "راضیانو" او دَ "محبانو" تفصیل بیان شی او دَ اووم مقام دَ "شاکرانو" په دې شعر

اووم مقام دے دَ شاکرانو
شاکران دې په شکر کښې اوسینه [3]

رساله ختمیږی نو له دې جهته وئیلے شو چې دَ روښانی رسالې مقامات هغه نه دی چې بایزید روښان سره منسوبیږی او ځکه نو دَ ګران دوست شنواری دا وینا صحیح نه ده چې رساله کښې دَ روښان دَ طریقت دَ منزلونو تفصیل...... بیان شوے دے۔ [4]

دَ دیو ټولو خبرو په رڼا کښې زه وئیلے شم چې دَ "روښانی رسالې" په ضمن کښې لا دا خبره په حتمی طور فیصله شوې نه ده چې دا دَ بایزید روښان تصنیف دے بلکې لکه څنګه چې حبیبی مرحوم فرمائیلی دی۔ دا خبره نوره څیړنه او مطالعه غواړی او سرے سل په سل کښې حکم نه شی کولے تر څو چې دَ دغه رسالې نسبت پیر روښان ته

---

۱ عکسی حصه ۵۷ مخ۔ چاپی حصه ۳۸ مخ۔ ۲ روښانی رساله (عکسی) ص ۵۸ (چاپی) ص۔۳۸ ۳ رساله عکسی۔ص ۵۹ چاپی۔ص ۳۹ ۴ روښانی رساله۔ دَ ښاغلی دوست مقاله۔ ص۔ز۔

پهٔیوهٔبل دلیل ثابت نهٔ شی" (حواله یٔ مخکښې تېره شوه)

دَ بایزید روښان دَ شاعرۍ پهٔ باره کښې دَ عبدالاکبرخان اکبر نه بغیر نورو اکثرو لیکونکیو دَ اخون درویزه پهٔ بیان تکیه کړې ده اودا یٔ وئیلی دی چې بایزید بهٔ شاعري هم کوله - عبدالاکبرخان اکبر دَ بایزید دَ فارسۍ درې شعرونه دَ خپل کتاب "روښانیان - دَ مغلو تاریکیان" پهٔ ص ۶۸ راوړی دی خو دا حواله یٔ نهٔ ده ورکړې چې دا بې وزنه شعرونه یٔ لهٔ کومې راپیدا کړی دی - دېو درېو شعرونو کښې وړومبے "شعر"

من ذات خدا دیدم ایں چشم بنود
نور بود بے مثال کہ خود را بمن نمود

دَ صراط التوحید پهٔ ص ۱۹ راغلی دے خو هلته دا وضاحت نهٔ دے شوے چې ایا دا دَ بایزید خپل شعر دے کهٔ دَ بل چا شعر یٔ نقل کړے دے - نور دواړهٔ شعرونه دَ هغه "گفتارشیخ مسکین" نه رانقل شوی دی چې دَ صراط التوحید پهٔ ص ص ۲۲-۲۳ راغلی دے -

دَ صراط التوحید پهٔ دغه مخونو راغلے "گفتار" پهٔ څوارلسو شعرونو مشتمل دے چې نهٔ څهٔ وزن لری او نهٔ یٔ قافیه شته - دا "گفتار" اصل کښې دَ بایزید روښان لهٔ هغه قصیدې څخې منتخب شوے دے چې حالنامه کښې پهٔ ص ص ۵۷-۵۸ دَ حال انسانی دَ قصیدې پهٔ نامه راغلې ده او نهٔ ویشت شعرونه لری - دَ "حال انسانی" دا قصیده دَ صراط التوحید له قصیدې یو لوئې فرق دا هم لری چې وزن او قافیه یٔ صحیح دی - دَ مثال پهٔ طور دَ عبدالاکبرخان اکبر مرحوم نقل کړی شعرونه

کردم بعد ازاں اختیار ترک وجود
بکار ترک وجود مارا وصال پیدا شد

تام این حال بیانے کردم
ہر کہ این کار کرد چو آفتاب ہویدا شد

خو په دغه شکل کښې په حالنامه کښې نښتنه البته په دې شکل دغلته موجود دے۔

ہر کہ او ترد کرد ہستیٔ خویش
رتبۂ او ز قرب اولیٰ شد

دَ دې قصيدې ځنې شعرونه صراط التوحيد نه دَ نمونې په طور راخلم۔

در دلم عشق تو چوں پیدا شد
نعش من با من دشمن ظہور پیدا شد
چوں دل باخلاف نعش پیدا شد
دا بدانم خلقه بسیار باز پیدا شد

دا شعرونه په حالنامه کښې داسې دی۔

در دلم عشق تو چوں پیدا شد
نفس بامن عدد ہویدا شد
دل خلاف ہوائے نفس گرفت
شور و شرور وجود بالا شد[1]

دغسې په صراط التوحيد او حالنامه کښې په سوونو شعرونه دی چې دا پته ئې نه لګی . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

. . . . چې دا چا ليکلی دی خو هرکله چې دا ټول په فارسۍ دی نو ځکه کهٔ دَ دوی په باره کښې دا اطمينان هم وشی چې بايزيد روښان ليکلی دی نو هم ئې پښتو ادب او شاعرۍ دَ پاره څهٔ اهميت نښتنه۔

[1] حالنامه۔ ص۔ ۵۷ [2] ايضاً ص۔ ۲۳۷۔

هم په دغسې دَ ارزانی دَ "مراة المحققین" او دَ خلیفه مودود دَ "مقصودالطالبین" حال هم دے چې حالنامه کښې ترې ډېر شعرونه او نثرې برخې رانقل شوی دی خو هرکله چې دا نمونې هم په فارسۍ دی نو پښتو شعراو نثر ته ئې ځه بخښنه نشته - دَ حالنامې دَ لیکونکی دَ علی محمد دَ مشر ورور خواجه محمد چې حالنامه ورته "صاحب مقام سکونت" له وائی دَ پښتو دَ غزلونو ځه نمونې البته قابل ذکر دی چې مطلع او مقطع ئې لاندې رانقلوم -

(یو) کامل رهبر دې بویه

شه واقف دَ دوی له خویه

خواجه محمده په جهان کښې

دَ مسکین بخره ده لویه

هادی لون لون وایه

خپل هادی پکښې وستایه

خواجه محمد دې قناعت کړی

لوی غنی به شی گدایه [2]

حالنامه کښې دَ بایزید روښان پښتو شاعرۍ ته دَ بخښنو په باره کښې چې کوم تفصیل بیان شوے دے هغه دَ ډېرو اهمو نتائجو حامل دے - حالنامه وائی -

"د دیگر پیشتر در افغانان از دو سه بیت شعر زیاده نه بود د پیر دستگیر قدس سرهٔ بزبان افغانی قصیده ها و غزلها و رباعیها و قطعها و مثنویها ساختند - و از طفیل پیر دستگیر قدس سرهٔ فرزندان و مریدانش دیوانها گفتند - و درهائے حقائق و معانی دارال سفتند و بعض افغانان

---

[1] ایضاً - ص ۲۳۷ - [2] ایضاً - ص ص ۲۳۷ - ۲۳۸ -

که مرید این خاندان نبودند چون شعر و کلام ایشان دیدند تقلید و تتبع ایشان کردند." [1]

ترجمه:- "او بله دا چې اکاهو په پښتو کښې دَ دوه درې بېتو نه زیات شعر نه وه او پیر دستګیر قدس سره په پښتو قصیدې، غزلونه، رباعیانې، قطعې او مثنویانې جوړې کړې او دَ پیر دستګیر له طفیله دَ هغه زامنو او مریدانو دیوانونه جوړ کړه او دَ حقائقو او معانیو مرغلرې ئې وپېئېلې او څنې افغانان چې دَ دې خاندان مریدان نه وو چې دَ دوی شعر او کلام ولیدهٔ نو دَ دوی تقلید او تتبع ئې وکړه."

له دې بیانه دا نتیجې راووځی:-

۱- دَ بایزید له دوره مخکښې پښتو کښې شاعری له دوه درېو شعرونو نه زیاته نه وه.

۲- بایزید په پښتو کښې په وړومبی ځل قصیدې، غزلونه، رُباعیانې قطعې او مثنویانې لیکلی دی.

۳- دَ بایزید زامنو او مریدانو هم په پښتو شاعری کړې ده او دیوانونه ئې مرتب کړی دی.

۴- څنې نورو پښتنو هم دَ دوی تقلید کړے دے.

تراوسه لا دَ بایزید دَ پښتو قصیدو، غزلونو، رباعیاتو، قطعو او مثنویانو څه درک نه دے لګیدلے خو دَ حالنامه له بیانه یقینی طور سره څرګندیږی چې بایزید په دېو اضافو کښې شاعری کړې ده.[2]

هم دغسې دَ بایزید په زامنو کښې هم دَ هیچا دَ شعر پته لا

---

[1] ایضاً ص-۲۷۳- [2] حبیبی مرحوم دَ بایزید روښان "پښتو او فارسی کښې" دَ جوړو نظمونو ذکر کوی خو نه ئې نمونه ورکوی او نه ئې حواله- (دَ عکسی چاپ خیرالبیان مقدمه ص ص ۱۱-۱۲- دَ روښان یاد ص ۲۷۶-

تراوسه نه ده لګېدلې دَ هغه دَ نمسی مرزاخان دَ پښتو شاعرۍ او دَ ځنو کړوسو دَ هندۍ شاعرۍ په باره کښې موږ خبر یو خو بخپله حالنامه کښې هم دَ بایزید دَ زامنو دَ شعر په باره کښې څه تفصیل نشته شاید چې حالنامه کښې دَ "فرزندان" کلمه په وسیعه معنٰی کښې استعمال شوې وی او مراد ترې نمسی او کړوسی وی. خو په هر حال کښې دَ بایزید دَ خاندان پښتو ته بخښنې دَ قدرقابلې دی او دَ بایزید او دَ هغه خاندان دَ پښتو ادب په تاریخ کښې یو ډېر جوت مقام لری.

دَ دې برخې په آخر کښې زه دَ بایزید په فارسی او عربۍ دَ ځنو عالمانو دَ اعتراضونو په باره کښې خپل خیال څرګندول ضروری ګڼم. دَ دې اعتراضونو ابتدا دَ صراط التوحید له مقدمې نه شوې ده چې حافظ محمد ادریس مرحوم پکښې منجمله دَ نورو خبرو دا هم لیکلی دی چې "دَ دوی عربی خو صرف تبرک ګڼل پکار دی البته فارسی ئې بالکل صفا او سلیسه ده" (ترجمه) [1]

مولٰینا عبدالقدوس صاحب دَ خیرالبیان په مقدمه کښې لیکی.

"…. عربی ډېره کمزور ده (هکذا) که بایزید دا عربی عبارتونه نه وے لیکلے نو شاید چې عالمانو به ئې دومره مخالفت هم نه وے کړے [2] (دا خبره په یو بل اړخ ډېر اهمیت لری نو ځکه به پرې په خپل ځائې یو ځل بیا هم بحث کوؤ).

محترم عبدالحئی حبیبی مرحوم دَ بایزید روښان دَ عربۍ او فارسۍ په باره کښې لیکی :-

"ژبه ئې معیاری ادبی عربی نه ده ډېرې ګرامری ناوړې لری

---

[1] صراط التوحید. تعارف -ص- ۷ [2] خیرالبیان مقدمه -ص ص- ۶۰-۶۱-

او داسې ښکاري چې ليکوال يې په عربي ګرامر لږ پوهېدے[1] (دا تبصره دَ مقصود المومنين په باره کښې ده چې لکه ذکر يې شوے دے حبيبي مرحوم نه وه کتے). دَ صراط التوحيد دَ ژبې په باره کښې وائي "ماته ګډه فارسي او عربي ده"[2] ولې عجيبه خبره دا ده چې حبيبي مرحوم دَ "خيرالبيان" دَ عربۍ او فارسۍ په باره کښې دا ګيله نه کوي او په دې هم دَ خيال کولو تکليف نه کوي چې دَ کوم ليکونکي فارسي او عربي په وروستو ليکليو کتابونو کښې ماته ګډه وه هغه دَ خپل ليک ابتدا له داسې کتابه څنګه وکړه چې عربي او فارسي يې دَ حبيبي مرحوم له تنقيده بالا دي.

دَ بايزيد روښان په عربۍ او فارسۍ اعتراض کونکيو محترمو عالمانو دا خبرې نظرانداز کړي دي:-

۱- دَ بايزيد روښان معاصر او شديد مخالف اخون درويزه دَ خيرالبيان په عربۍ او فارسۍ هيڅ اعتراض نه دے کړے. تذکرة الابرار و الاشرار کښې اخون درويزه وائي:-

"اين ملعون کتابے را تصنيف کرده بعضے کلمات اورا به زبان عربي بلا ادراک ترکيب و ترتيب جمع آورده وبعضي را به زبان فارسي و بعضے رابه زبان افغاني وبعضے را به زبان هندي - اما هر کدام ازين کلمات ناموزون وناموافق افتاده به حدے که طبائع اهل علم ازاں متنفر مي گردد." [3] (ترجمه) "دې ملعون يو کتاب تصنيف کړے دے چې څنې الفاظ يې پکښې دَ ترکيب او ترتيب له ادراکه بغېر په عربۍ راجمع کړي دي څنې يې په فارسۍ څنې په پښتو او څنې په هندي. خو له دې الفاظو هر يو تر دې حده ناموزون او ناموافقه دے چې دَ اهلِ علم خلقو طبيعتونه ترې متنفّر کيږي" دَ اخون درويزه دا تنقيد صرف دَ خيرالبيان په عربۍ او فارسۍ نه بلکې په هندۍ او پښتو هم دے څکه

[1] دَ خيرالبيان مقدمه. ص. ۲۷، دَ روښان ياد ص ۲۹۱-
[2] ايضاً. [3] تذکرة الابرار والاشرار. ص ۱۴۸

نو دَ دې مطلب به دا ګنو چې اخون درویزه یا خودَ هغه پښتو او هندی هم غلطه ګڼله او یا بیا دَ هغه تنقید دَ ژبې دَ غلطۍ متعلق نه بلکې دَ مفاهیمو دَ غلطیو متعلق وه او په دې بنیاد دا ویلے شو چې دَ بایزید روښان دَ معاصر نقاد په خیال کښې دَ هغه عربی او فارسی له ګرامری او نورو لفظی غلطیو پاکه وه- او که خیرالبیان کښې دا غلطۍ وے نو بایزید به دَ اخون درویزه غندې عالم نه په دې سلسله کښې هم په امان کښې نه وه پاتې-

۲- دَ اخون درویزه زمانې ته نژدې په ۱۰۵۵ ه کښې دبستان مذاهب لیکلے شوے دے- دبستان مذاهب دَ حالنامې حواله ورکوی دَ خیرالبیان او مقصودالمؤمنین ذکر کوی او دا روایت هم کوی چې "علماء از مناظره او باز ماندند"[1] (عالمان هغه سره مناظره کښې پاتې راغله) نو که چرې بایزید روښان رښتیا یو بې علمه سړے وے نو دَ دبستان مذاهب لیکونکی (چې دَ هغه زمانې ته ډیر نژدې وه او دَ هغه مرید واصل ئې لیدلے وه) به ضرور دَ هغه دَ بې علمۍ ذکر کړے وے-

۳- خوشحال بابا هم دَ یولسمې صدۍ لیکونکے دے او په دې لحاظ بایزید سره عصری نژدې والے لری- په اخون درویزه دَ تنقید کولو په موقع خوشحال بابا په سوات نامه کښې وائی-

دَ روښان خیرالبیان ئې وه لیدلے
هغه هم مجهول بیان وه ناپسندلے

او هم دغه دَ "مجهولیت" الزام خوشحال بابا دَ اخون درویزه په "مخزن" هم عائد کړے دے-

نامعقول مجهول بیان پکښې بې ځایه
پکښې بد دَ سید وایه یزید ستایه

[1] دبستان مذاهب- تعلیم نهم- ص ۳۰۹ [2] سوات نامه- تاریخ مرصع ۲۴۳ [3] ایضاً ۲۳۶-

اوس چې دَ اخون درویزه په عربۍ او فارسۍ ښځا هم اعتراض نه دے کړے نو لازمًا به دَ "مجهول بیان" معنیٰ به گرامری غلطۍ نه بلکې لکه څنګه چې محکښې عرض وشه دَ عقائدو او مفاهیمو غلطۍ ګنړو (او خوشحال بابا ئې دَ درویزه په سلسله کښې مثال دَ "سیدبد" او دَ "یزید ستائیل" بیان کړے دے)۔

۴۔ دَ بایزید روښان په باره کښې لیک کونکی ټول علماء په دې متفق دی چې ملا ارزانی ډیر لوئې عالم سړے وه۔ هم دغسې خلیفه مودود ترین هم ډیر لوئې لیکونکے یادیږی او چې حالنامه کښې دَ هغه دَ فارسۍ دَ نثر کومې نمونې راغلی دی دَ هغو په وجه هغه دَ فارسۍ دَ اول صف په لیکونکیو کښې دَ شمار کیدو حق لری۔ دَ فارسۍ دَ کلاسیکی لیکونکیو دَ پارهٔ دَ عربۍ علم ډیرضروری وه او چې خلیفه مودود ترین او ملا ارزانی غندې عالمان دَ بایزید روښان نه دومره متاثرهٔ وو چې دَ هغه دَ پارهٔ ئې خپل اولاد او وطن پریښے وه نو دا ډیرهٔ غیراغلبه ده چې هغوی به دَ بو "جاهل" او "ناپوهٔ" سړی دَ پارهٔ دا دومره قربانۍ کولې۔ دَ ملا ارزانی هند ته دَ واپسۍ په سلسله کښې که دَ اخون درویزه روایت هم ومنو نو هغه دا وائی "بعد ازانکه پیر تاریک راه زنی و مسلمان کشی را پیشه گرفته ارزانی از و جدا شده باز بهند رفته"[1] (ترجمه۔ پس له هغې چې پیر تاریک شوکې او دَ مسلمان وژل خپله پېشه کړه ارزانی له هغه جدا شه او بېرته هند ته لاړ) دَ ارزانی په باره کښې اخون درویزه دا هم وائی چې هغه تېزفهمه او فصیح زبانه شاعر وه۔ (۲) او دَ هغه دوه نور

[1] تذکرة الابرار والاشرار ص۔ ۱۴۹۔ [2] ایضًا۔

وروښه عمر او علی ئې هم یاد کړي چې دَ دوارو نوموړو سره ئې دَ "ملا" کلمه لیکلې ده۔ نو سوال دا پیدا کیږي چې آخر دا دومره عالمان خلق دَ یو "ناپوه" او "جاهل" څنګه مریدان شوه۔ او په فارسۍ او عربۍ کښې یو ناقص لیکونکے ئې "کامل پیر" ولې اومنلو۔

۵۔ دَ خیرالبیان دعویٰ ده "نړو وایه وَ هغه سړی ونه چې باور نه کا په دا کلام چې راوړی له خدایه بهتر له دغه کلام۔ که یو یاست له ربنتنی ادمیان"[۱] اخون درویزه دَ خیرالبیان په باره کښې هر څه وائی خو دا نه وائی چې ژبه ئې غلطه ده او نه دغه دعوے تردید وی۔ دغسې دَ هغه دَ رسالو په باره کښې دا خو وائی چې پکښې دَ دروغو احادیث راغُنډ کړی دی[۲] خو دا نه وائی چې دَ دغو دروغو احادیثو عربی غلطه ده۔ دَ دې په مقابله کښې په پښتو، فارسی او هندی (هندی) ژبو کښې دَ هغه دَ موزونیت طبع اعتراف کوی۔[۳] ځکه نو دا خبره څه سمے نه خوری چې دَ بایزید عربی او فارسی ضعیفه ده۔

۶۔ حالنامه دا شهادت ورکوی چې دَ امداد دوه نمسو قادرداد او مهدی داد به دَ عالمانو او صالحانو صحبت غوره کنړلو دَ پیردستګیر کتابُونه ئې لُستی وو په شاعرۍ کښې "بهرهٔ تمام" لرله او دَ موسیقۍ په مهم کښې ماهران وو (۴۶۷، ۴۶۸) دَ جلال الدین دَ لور بی بی علائی (چې دَ احداد بی بی وه) په باره کښې وائی چې له خپله پلاره ئې خیرالبیان او مقصود المؤمنین "ښه په معنیٰ" لُستلی وو(ص۴۷)

---

[۱] خیرالبیان ص۔ ۲۱۶۔ عکسی چاپ۔ ۱۲۴۔ الف [۲] مخزن ص۔ ۱۲۲۔
[۳] ایضاً۔ ص۔ ۱۲۳

نو چې دَ کوم خاندان زنانه هم په عربۍ پوهېدل نو مشرته به ئې ځوک لږ عربۍ او فارسی څنې نابلد وواټې.

داسې ښکاری چې دَ روښانیانو په تحریراتو کښې دَ عربۍ او فارسۍ دا غلطۍ دَ کاتبانو دَ لاس وهنې نتیجه ده. لکه چې پخپله مولیٰنا عبدالقدوس صاحب منلی دی چې "کېدے شی چې دَ دې عربۍ ډېرې غلطۍ هغه ناپوهه کاتبانو کړې وی چې دَ بایزید دَ ارادت په حلقه کښې شامل وو" [۱] او دَ دې خبرې یو ثبوت دا هم دے چې که یو خوا خوشحال بابا دا وائی چې:

له چانه په پښتو کښې ما میزان لیدلے نه دے
میرزا په دا زبان که وئیل کړی دی تللی [۲]

نو بل خوا دا هم یو ناقابل تردید حقیقت دے چې دَ مرزا په دیوان کښې کم و بېش هر غزل دَ وزن غلطۍ لری. دَ دې وجه دا ده چې دَ روښانیانو کتابونه به خلقو یواځې لوستل نه بلکې حفظ کول به ئې هم. دا هم دَ حالنامې روایت دے چې دَ بی بی علائی ورې خور بی بی نورخاتون دَ مرزاخان دیوان ټول حفظ کړے وو (ص ۶۷۴) نو دَ حفظ کړیو نظمونو او نثر په لیک کښې دَ راوستلو په صورت کښې که دَ ژبې غلطۍ واقع شی نو هیڅ یو هوښیار سړے به ورته دَ مصنف غلطۍ ونه وائی بلکې هر کله چې دا دَ حفظ کونکی او دَ دغه حفظ له سلسلې لیک ته دَ راوړنکیو په لویه سلسله کښې دَ ډېرو دَ غلطیو نتیجه کېدے شی نو صحیح رائې هم دا ده چې دا غلطۍ دَ کاتبانو او نسخه نویسانو نه سرزدې شوی دی.

---

[۱] دَ خیرالبیان دَ پېښور چاپ مقدمه. ص. ۶۱ [۲] ارمغان خوشحال. اوّل ټوک. ص. ۱۳

(۱۶)

دَ مقدمې په دې برخه کښې زه دَ هغو غلط فهميو ازاله کول غواړم چې دَ بايزيد روښان دَ "مخالفينو" په سلسله کښې ځنو ليکونکيو په دانسته يا نادانسته ډول خورې کړې دی او هرکله چې دَ بايزيد روښان له ټولو لوئې مخالف حضرت پيربابا ياديږی نو ابتدا به ئې هم له دوی ځنې وکړم۔

دَ حضرت پيربابا په باره کښې دا ياد ساتل پکار دی چې دَ دوی هيڅ يو ليک نه مونږ ته پاتې دے او نه ئې معاصرينو ذکرکړے دے دَ دوئ دَ "مخالفت" سند دَ اخون درويزه له تحريراتو پيش کيږی او هرکله چې دَ اخون درويزه په سلسله کښې مفصّل بحث مخکښې راروان دے ځکه نو دَ هغه دَ رواياتو په باره کښې به پخپل وخت خبرې وکړے شی۔ خو صرف دومره معروضات دلته کول ضروری گڼم چې روښانی تحريراتو کښې دَ پيربابا دَ مخالفت هيڅ ذکر نه موندلے کيږی (او دغسې دَ اخون درويزه په باره کښې هم روښانی تحريرات خاموش دی) البته دَ مرزا ديوان کښې دا يو شعر ضرور شته چې متاسفانه پرې هيچا دَ غور کولو تکليف نه دے کړے۔

اے مرزا روښان په هر لوری جلوه کا
دَ تبريز افتاب راوخوت له بونيره

دا شعر مختلف قرأتونه لری۔ دَ کابل دَ چاپې ديوان متن کښې دَ "بونيره" په ځائې "منيره" ليکلے شوے دے چې يو خو مصرع بې معنی کوی اوبله دَ "منيره" يائې معروف دَ ټول غزل دَ يائې مجهول قافيې سره سمون ختموی۔ ځکه نو دومره خو يقينی ده چې دا تورے "بونيره" دے۔ دَ کابل دَ چاپې ديوان په حاشيه کښې هم دَ يوې قلمی نسخې په حواله هم دغه

قرأت راغلے دے۔ دغه نسخه کښې دَ وروسته مصرعې دَ "روښان" په ځائې "خضر" راغلے دے۔ داسې ښکاری چې دویمه مصرع کښې دَ "تبریز" کلمه اصل کښې "ترمذ" ده (دا مصرع دَ کابل چاپې دیوان کښې داسې ده "تبریزی افتاب راوخوت له منیره" او ورسره ئې حاشیه کښې دا نوټ هم راغلے دے" دَ نورو نسخو دَ روښان په ځائې دَ کتابخانې په نسخه کښې "خضر" دے او دَ کتابخانې دَ نسخې دَ (منیر) په ځائې په نورو کښې (بونیر) دے۔ په دې شکل کښې دَ کابل چاپې دیوان دَ نورو نسخو "بونیر" نظرانداز کړے او صرف دَ کتابخانې دَ نسخې قرأت ئې رااخستے دے۔ دا هم یاد ساتل پکار دی چې دَ "کتابخانې" دَ نسخې په نامه دَ مرزا خان انصاری دَ کابل چاپ دیوان کښې له دوو نسخو استفاده شوې ده چې دَ کتاب مرتب ئې په خپله مقدمه کښې دَ "کتابخانې بشپړه نسخه" او "دَ کتابخانې نیمګړی نسخه" په نامه معرفی کوی له خوله بلاه مرغه ئې دَ دیوان په ص۔ ۱۳۸، چې دغه شعر لری هیڅ صراحت نه دے کړے چې دا شعر ئې له کومې نسخې اخستے دے)

بهرکیف دَ "بونیر" له کلمې دا استنباط کول به غلط نه وی چې دې شعر کښې مرزا حضرت پیربابا ته اشاره کوی۔ او په دې لحاظ صحیح شعر داسې پکار وه۔

اے مرزا خضر په هر لوری جلوه کا

دَ ترمذ افتاب راوخوت له بونیره

که زما دا توجیه قبوله نه کړے شی نو بیا دَ شعر هیڅ مفهوم نه شی پیدا کیدے۔ او هر کله چې سید علی ترمذیؒ (پیربابا) بونیر سره تعلق لری نو په دې بنا وئیلے شو چې دې شعر کښې دَ پیربابا روحانی افاضاتو

ته اشاره شوې ده۔

دَ څنو بې احتياط ليکونکيو دا خيال دے چې هرکله پيربابا مغلوسره رشته لرله نو ځکه هغوی دَ مغلو دَ پاره په پښتنو کښې کارکولو۔ دَحيرانتيا خبره دا ده چې دا ليکونکی دَ يوسفزيو ټوله قبيله چې پيربابا پکښې ژوند کړے دے او اوس ئې پکښې مزار هم دے په دې نه غندی چې دَ هغوی مغلو سره رشته وه او يواځې په پيربابا دا تنقيد کوی۔

بيا که مغلو سره رشته لرل ځه ګناه ده نو داګناه خو دَ بايزيد روښان په سلسله کښې هم شته ځکه چې دَ بايزيد دَ پلار عبدالله مور دَ زيد اغا لور وه اودَزيد اقا ښځه دَ سُلطان ابوسعيد مرزا والئ توران لور وه لـه په دې لحاظ خو بايزيد انصاری هم دَ پيربابا په شان دَمغلو وينه لرله او مغل ئې هم دغسې ماماخيل وو لکه چې دَ پيربابا وو۔ دَ تذکرة الانصار دَ وينا مطابق دَ زيد اقا قبر دَ امير تيمور قبر سره نژدې په سمرقند کښې دے ؎۲

دَ اخون درويزه نامه هم په روښانی تحريراتو کښې دَ بايزيد روښان دَ مخالف په حيثيت په نظر نه راځی۔ دَ اخون درويزه يو کتاب هم هغه پخپله نه دے مرتب کړے۔ سيّد تقويم الحق کاکاخيل دَ مخزن په مقدمه دَ اخون درويزه دَ زوئ کريم داد بابا'' په باره کښې ليکی چې دے دَ اخون درويزه مشر زوئ وه چې ,,دَ هغه ټول کتابونه ئې مرتب کړی او خواره کړی دی ؎۳ پخپله دَ مخزن دَ چاپی نسخې په وروستی پاڼه دَ فقير مصطفیٰ محمّد'' دا عبارت موجود دے ,,آں جمع و ترتيب کتاب مخزن الاسلام

لـه اورينټل کالج ميګزين۔ فروری ۱۹۵۵۔ ص۔ ۴۸۔ او شجرهٔ نسب۔ دَ ډاکټر جهانګير مقاله۔ ؎۲ ايضاً۔ ص۔۶۱۔ ؎۳ مخزن۔ مقدمه۔ ص۔ عب۔

که از عبدالکریم بابا بود نیز از مردم سهو و غلط افتاده" (دَ مخزن الاسلام هغه جمع او ترتیب چې عبدالکریم بابا کړے وه له خلقو سهوه او غلط شوے وه) په دې لحاظ دَ فقیر مصطفیٰ محمّد " (چې دَ اخون درویزه نمسے وه) په شهادت دا وئیلے شو چې تر ۱۱۱۲ه پورې (دَ مخزن دَ ترتیب وروستے تاریخ) په مخزن کښې کاتبانو او نسخه نویسانو لاس وهنې کړې وې۔ نو کـه صورت حال داسې وی نو لـه ۱۱۱۲ه نه پس ته پـه دې کتاب کښې دَ لاس وهنې امکان څوک ردولے شی۔او دَ دې یو ثبوت دا دے چې دَ مخزن پـه بارهِ کښې خوشحال بابا پـه ۱۰۸۶ه کښې وائی:

نامعقول مجهول بیان پکښې بېځایه
پکښې بـد دَ سید وایـه یـزیـد ستایه

او دَ مخزن دَ مندرجاتو پـه بارهِ کښې دا تفصیل ورکوی۔

دَ حسین پـه مرګ یزید کله راضی وه
بـلکې دے دَ ده دَ خون متـقاضی وه
امراکان ئې دَ حسین پـه مرګ قصاص کړل
زه حیران شوم دَ یزید پـه هسې خاص کړل
بیا ئې دا وو پکښې کښلی ده لـه دینه
چې پـه 'ال بـه رافضی درود وائی نـه

بیـا وائی۔

معـمّا دَ اذری تـرجـمه کـړې
تصوّف ئې دَ عالـم وتـه نومـړے
ترجـمه دَ شاه ناصر یو څو اشـکاله
دَ عالـم تـه جورهِ کـړې لـه مقاله

اوس چې موږ د مخزن چاپي نسخه ګورو نو نه په هغې کښې نه د "سيدبد" شته او نه د يزيد تعريف نه پکښې د يزيد د ظلم دفاع شوې ده او نه يې په ال رسول درود ته بد وئيلی دی. دغه شان د آذری د معما او د شاه ناصر ترجمه هم په موجوده چاپي مخزن کښې نشته.[1] په دې دليل ..... د مخزن د صحت په باره کښې په يقين هيڅ نه شی وئيلے کيدے بلکې د مخزن حصې خو د سيد تقويم الحق کاکاخيل په خيال په اخری ترتيب کښې داسې ګډې وډې شوی دي چې اوس پکښې دا پيلتون نه کيږی چې کريم داد بابا کومې حصې ليکلې وی او د اخون درويزه بابا کومې حصې تحرير کړی دی[2] او هغه پاتې کسر پکښې د کتاب مراتب مولينا فضل ودود مرحوم پوره کړے دے ځکه چې ځائې په ځائې يې پکښې داسې ګډ وډی را پيدا کړې ده چې د ټول کتاب صحت يې مشکوک کړے دے.[3]

د مخزن د صحت په باره کښې شک پيدا کونکی نور عوامل هم شته. د مثال په طور د کتاب د اکثرو فصلونو اخرته اخون درويزه خپل نوم راوستے دے خو د ځنو فصلونو اخرته يې دا اهتمام نه دے کړے د مثال په طور دا فصلونه چې عنوانونه يې په نکتو نوملی شوی دی د "درويزه" نامه نه لری.

---

[1] د شاه ناصرخسرو يوه رباعی د مخزن په ص-۱۱۱ سره د ترجمې راغلې ده. خو ورسره د بايزيد بسطامی "ګفتارهم" د رباعی په شکل کښې سره د ترجمې بيان شوے دے.

[2] مخزن. مقدمه. ص. عط. (ملخصًا) [3] د مثال د پاره وګورئ د کتاب حاشيه په ص ۱۷۸ (ليک د کريم جان) او متن ص ۱۸۵ (ليک د کريم داد).

قنب



له دې نه علاوه نکته چهاردهم او پانزدهم (ص ص ۱۰۸، ۱۰۹) کښې دَ "درویزه" په ځائې دَ "فقیر" نامه راغلې ده. دغه نوم یعنی "فقر" څنو ځایونو کښې عبدالحلیم صاحب او مصطفیٰ محمد صاحب هم استعمال کړے دے[1] بلکې په ص-۱۸۳ دَ یو نامعلوم الحال سړی "عمرخان" په نامه هم څنې شعرونه دَ "بعضو قلمی نسخو" په حواله راغلی دی. څنو څنو ځایونو کښې دَ ایضًا معلوم بار" "دیگر معلوم باد" او "بیان دیگر" په عنوانونو اصل مضمون کښې اضافې شوې دی او ښاغلی مرتب دا څرګندونه نه ده کړې چې دا اضافې دَ چا دی. ښاغلی مرتب دَ قلمی نسخو نمبر څنې څنې ځایونو کښې په حاشیه ورکوی خو دومره تکلیف ئې نه دے کړے چې دَ دغو قلمی نسخو پېژندګلو وکړی. دَ مثال په طور دَ ص ۶۵ په حاشیه کښې دَ قلمی ۱، ۲، ۳، ۴ او ۵ او دَ چاپی دریو نسخو ذکر راغلے دے خو دا نه ده څرګنده چې دا کومې نسخې دی او دَ استناد درجه ئې څه ده. دَ دیو ټولو وجوهاتو له کبله دَ "مخزن" صحت مجروحیږی. دا موقع دَ مخزن په باره کښې دَ مفصل بحث نه ده خو دومره به زه ضرور ووایم چې دَ "مخزن" څومره قلمی نسخې زما له نظره تېرې شوې دی (او دَ دوی شمېر له شلو زیات دے)

---

[1] دَ مخزن مقدمه - سید تقویم الحق کاکاخیل ص - ع -

هغو کښې یوه هم دَ بل پهٔ شان نهٔ ده۔ ځکه نو محض دَ "مخزن" پهٔ شهادت څوک مجرمول ماته هیڅکله صحیح نهٔ ښکاری۔

دَ اخون درویزهٔ سرهٔ منسوب دَ دویم کتاب "تذکرة الابرار والاشرار" حال هم که لهٔ مخزنه بد نهٔ دے نو ښهٔ هم نهٔ دے۔ ورومبے خو دا خبرهٔ هم ډیره اهمه ده چې لکه دَ "مخزن" دا کتاب هم دَ اخون درویزهٔ لهٔ وفاته پس دَ هغهٔ زوئې عبدالکریم لهٔ دې الفاظو "از کلمات جان پرور..... درویزه ننګهاری قدس سرهٔ در تحریر آورده و تالیف نموده"[1] سرهٔ لیکلے دے۔ او لهٔ دغه پسه ئې هم تر ص ۲۴۷ پورې دا "تحریر" او "تالیف" جاری ساتلے دے۔ دَ کتاب دَ تالیف کال ۱۰۲۱ھ بیان شوے دے۔[2] حالانکې پهٔ دغه کال لا اخون درویزهٔ ژوندے وهٔ۔ سید تقویم الحق کاکاخیل دَ مخزن پهٔ مقدمه کښې دَ خزینة الاصفیا پهٔ حواله دَ اخون درویزه دَ وفات کال ۱۰۴۸ لیکلے دے او رود کوثر کښې شیخ محمد اکرام هم بغیر لهٔ څهٔ حوالې هم دغه کال را اخستلے دے۔ پهٔ دې لحاظ پهٔ ۱۰۲۱ھ کښې اخون درویزه ژوندے وهٔ او پکار ده چې دا کتاب ورته اوروِلے شوے وے یا هغهٔ پخپله لُستلے وے خو متأسفانه دا خبرهٔ پهٔ تذکرة الابرار والاشرار کښې نهٔ ده راغلې۔ ځکه نو پهٔ یقین سرهٔ دا وئیل مشکل دی چې تذکرة الابرار والاشرار دَ اخون درویزهٔ لهٔ سترګو تېر شوے وهٔ۔ دا دعویٰ پهٔ دې لحاظ هم دَ غور قابله ده چې خوشحال بابا سوات نامه کښې دَ تذکرة الابرار والاشرار هیڅ ذکر نهٔ کوی۔ افضل خان پهٔ خپل تاریخ مرصع کښې نهٔ صرف دَ هغهٔ دَ فارسی او پښتو "هرقسم" کتابونو ذکر کوی (ص۔ ۳۶۴) بلکې دَ تذکرة الابرار والاشرار

---

[1] دَ..... درویزه ننګراری قدس سره لهٔ جان پروره کلما توڅخه پهٔ لیک کښې راوړے شوے او تالیف شوے۔ تذکرة الابرار والاشرار۔ ص ۲۲۸-۲۲۷۔ [2] ایضاً۔ ص ۲۴۷۔

حوالې هم ورکوي۔ دَ مثال په طور دَ تاریخ مرصع په ص - ۲۳۱ دَ "تذکرة الابرار والاشرار" نوم اخلی او په ۲۳۶ ، ۲۳۷ او ۲۴۰ دَ دغه کتاب بیان شوی حالات تکراروی خو دَ حېرانتیا خبره دا ده چې په دیوحالاتو کښې دَ تذکرې او دَ تاریخ مرصع دَ بیان تر مېنځه بعض ډېر اهم اختلافات موجود دی۔ مثلاً

| تاریخ مرصع | تذکرة الابرار والاشرار |
|---|---|
| ۱- شېربون نومېده دَ قندهار په لور پښتون وه دوه زویه ئې وو یو کند بل څمند۔ (ص-۲۳۱) | شیربون نام افغانے بود در حدود قندهار۔ از دو پسر خلف ماندند یکے شیخی دویم غوری۔ (ص ۸۶)۔ (ترجمه)۔ شیربون نومے یو افغان دَ قندهار په حدودو کښې وه چې له هغه دوه زامن پاتې شوه یو خښی او دوېم غورے۔ |
| ۲- غلورو وارو ورونو یوه‌ن حلال کړے وه یو تربله ئې ووېشه۔ دا یو ورور چې ځمکنے نومېده، دا ئې له ښوروا له وېشه هېر کړ۔ دَده ئې بخره ونکړه۔ دے ازرده شه دَ دې وارو ورونو له مېنځه جدا شه تر اوسه پورې جدا دے۔ متفرق په هرځائې مېشت دے۔ زیراني هم له ورونو جدا شوی دَننګرهار په تاجک ماجک کښې مېشت دی۔ | هر چهار برادران شاتی را گشته بخته بودند چنانکه می بائیست گوشت را میان یکدیگر قسمت کردند اما در قسمت شوربا چمکنی را فراموش کردند تا حصه شوربا بدو نرسید ازان عم غصه وخشم گرفته از جمیع برادران بیرون رفته در سفید کوه متوطن شده اولاد اوالی یومنا هذا با برادران نرسیدند و باطراف عالم پریشان شدند۔ و اگر مردم غوری خیل جمع شوند هم حصه در سر خود کما حقه نمی یابند (ص ص ۸۲-۸۷)۔ ترجمه "غلورو وارو ورونو یوه لړه (مېنه نافل) حلاله کړه او پخه ئې کړه۔ لکه چې |

اکثر خلق چې ترې نه خبر نه دی
ورته وائی چې تاجک دی"

پکار وو غوښه یې په خپلو کښې ووېشله
خو دَ ښوروا په وېش کښې یې ځمکنے هېر
کړه او دَ ښوروا برخه هغه ته ونه رسېده
له دې کبله هغه (ځمکنے) له نوروورو نو
جدا شه او په سپین غره کښې مېشت شه
او دَ هغه اولاد زمونږ تر دې وخته نورو
ورونو ته نه دے راغلے او که (دوئ)
غوریاخېلو سره یو ځائې شي نو هم خپله
بخره لکه چې حق یې دے نه مومي"

۳- دَ دله زاک په هغه اوان په مېره
دَ لنګرکوټ استوګه وه، دَ یُوسف
زی په اشنغر- په دا سبب چې
دلازاک دَ لنګرکوټ کردو نواح
مېره نیولې وه چې به دَ یُوسف زیو
مال موېشي دَ مېرې ته په چراګاه
ورغے تاخت او تاراج به یې کړه-
که څوک به یې په سود په سودا
ورغے هم به یې ازاروه-(ص ۲۳۶)

چوں مدتے مردم یُوسف زئی در ہشنغر متوطن
شدند مردم دلہ زاک باز بایشان طریقہ عناد وخلاف
پیش گرفتند چوں مملکت ہموارے ایشانرا بودہ اگر
تجار مردم یوسف زئی در راہ ایشان گذشتے بعضے
را کشتے وبعضے را تاراج بردے واگر گاوان ایشان
بجانب صحرائی ہمواری بیرون آمدے دزدان ولوندان
دلازاک ہمہ را بتاج بردے - (ص-۹۴)

ترجمه:- "هر کله چې یوسف زی تر څه
مودې په هشنغر متوطن پاتې شو-
دلازاکو بیا ورسره دَ عناد او خلاف طریقه
راواخسته- هر کله چې دَ سمې علاقه
دوئ سره وه که دَ یوسف زیو سوداګران
به دَ دوئ په لاره تېرېدل هغه نو ځنې به

ټې وژل اوځنې به ټې لوټ کول اوکه
دَ دوئ غواګانې به دَ سمې صحراته راوتې
نو دَ دلازاکو غلو او بدمعاشانو به لوټلې"

۴- نقل دے چې دولس زره سواره
دَ غوریه خېل په هغه اوان کښې
وُو- تېرسو سواره ابلق سواریو
دَ خلیل په تپه کښې وُو په دا
جنګ کښې اکثر پرېوتل-(ص۲۳۷)

سماع است که مردم غوری خیل را دوازده هزار
سوار بودند همگی یکسره تا ختند اکثر ایشان به تیر ہائے
ایں مردم دوختہ کشتہ شدند مگر اندکے.(ص۹۲)

ترجمه:- وئیلے شی چې غوریا خیل دولس
زره سواره وُو ټول له خپلې وتېښتېدله
په دوئ کښې اکثر دَ دیو خلقو (یُوسفزیو)
په غشیو ووژلے شوه"

کرانو لُستونکیو ته به احساس شوے وی چې دَ دواړو تاریخی دستاویزونو په تفصیلاتو کښې دومره اختلاف دے چې دَ هغې په بنا دا نتیجه قائمېدلے شی چې دَ تاریخ مرصع دَ تصنیف په زمانه کښې دَ تذکرة الابراروالاشرار" شکل داسې نه وه لکه چې اوس دے او ځکه نو دا فیصله کول آسان شی چې "تذکرة الابراروالاشرار" کښې هم لکه دَ "مخزن" کاتبانو او نسخه نویسانو دَ خپلې خوښې یا بې احتیاطۍ له کبله لاس وهنې کړی دی.ځکه نو له تاریخی اعتباره دا کتاب هم دَ استناد درجه باتلی او کم ازکم دَ بایزید انصاری خلاف ترې تمسک کول یو ډېر غېر محتاط عمل دے۔

دَ "تذکرة الابراروالاشرار" خلاف یو ډېر محکم دلیل پخپله دَ کتاب له متنه لاس ته راځی۔ دَ کتاب بیان دے۔

ایں فقیر شبے از شبہا در ہشت خضر مہمان او بوده - چوں از عادات فقیر از اوّل عمر تا بآخر ہمیں ( ؟) کہ شب بیدار می باشد، درآں شب ہنوز بقصد تجسّس احوال او بیدار تر بودم

چوں درمیاں فقیر و خوابگاہ او پردۂ لطیفہ بودہ، دریافتم کہ تمام شب با عروس خود در خواب بودہ چوں صبح دمید از بستر خواب برخاستہ جامہ ہا پوشیدہ، نے غسل بجا آوردہ و نہ وضو، تا آمدہ در مسجد نشست، بعدہٗ اتباع او در رسیدہ و بہ نماز بامداد مشغول گشتند و ایں فقیر تنہا نماز را بجا آوردہ"[1] ترجمه "او دا فقیر له شپو نه يوه شپه په هشنغر کښې دَ ده مېلمه وه او هر کله چې له اوله تر آخره (؟) دَ دې فقير دا عادت پاتې شوے دے چې دَ شپې ويښ وی او په هغه شپه خو دَ ده دَ حالاتو دَ تجسس دَ پاره زيات ويښ وم (نو) هر کله چې دَ فقير او دَ ده دَ خوابګاه ترمينځه نرۍ پرده وه ما معلومه کړه چې دے ټوله شپه خپلې ناوې سره وُودهٔ وه - چې سبا شه له بستره پاڅېده جامې ئې واغُستې - نه ئې غُسل په ځائې راوړه او نه ئې اودس وکړه خو راغے او په جماعت کښې کښېناست پس ته دَ هغه مريدان راغله او دَ سحر نمونځ ئې شروع کړه او دې فقير ځان له نمونځ وکړه" دې واقعه کښې ډېرې داسې خبرې دی چې دَ اخون درويزه غندې عالم نه ئې توقع نه شی کېدے - مثلاً:

۱- دَ خدائې پاک حکم دے چې ولا تجسسوا (او تجسس مه کوئ) او دَ دې واقعې ليکونکی پخپله دا اعتراف کړے دے چې دَ بايزيد دَ حالاتو دَ تجسس دَ پاره دَ عادت نه زيات ويښ پاتې شوے وه -

۲- دَ خدائے پاک بل حکم دا دے چې وَلا يغتب بعضکم بعضاً (تاسو کښې دې يو دَ بل غيبت نه کوی) او دا واقعه بيانول که بهتان نه وی نو غيبت خامخا دے -

۳- بايزيد په ده دومره اعتماد کړے وه چې دے ئې په خپله خوابګاه کښې څملولے وه او ده دَ هغه دَ اعتماد نه دا ناجائزه فائده حاصلول غُښتل چې دَ ښځې خاوند دَ خلوت تماشا ئې په پټه پټه کوله -

---

[1] تذکرة الابرار والاشرار - ص - ۱۵۰

۴- دَ هغه زماني دَ رښا دَ انتظاماتو او دَ کپړې دَ نفاست دَ اندازه کولو نه پس هر څوک پخپله دا فیصله کولے شي چې په توره تیاره کښې هغه منظر ښځي لیدے نه شي چې دَ کتاب لیکونکی دَ لیدو دعویٰ کوي ځکه نو دا دومره لوئې دروغ دَ اخون درویزه غُندې انسان نه انتهائي غېر متوقع دی۔

۵- دَ کتاب دَ لیکونکی دا خبره هم دَ مناسبې ګواهۍ په غېر موجودګۍ کښې قابلِ اعتبار نه ده چې بایزید روښان ته دَ غسل ضرورت پېښ شوے وه او وې نه کړو۔ دغسې دَ اودس خبره هم سمون نه خوري ځکه چې اوّل خو دَ کتاب لیکونکی دا نه دی ښئیلي چې آیا دَ بایزید کور صرف په یوه کوټه مشتمل وه او بل کوم ځائې (چې هلته اودس کیدے شي) ئې نه لرلو چې دَ کتاب دَ دې خبرې تصدیق پرې وشي چې دَ کتاب لیکونکی به بایزید خامخا په اودس کولو لیدلو۔ بیا دا هم کیدے شي چې بایزید نه داسې شرعي عذر لاحق شوے وه چې دَ هغې په وجه هغه په تیمّانه نموځ کړے وي۔ هر کله چې دَ کتاب لیکونکی دا ټول تفصیلات نه دی بیان کړي نو دَ هغه روایت قابلِ اعتبار نه دے او صرف یو داسې الزام دے چې هیڅ ثبوت ئې نه شي پېش کیدے۔

۶- دَ کتاب لیکونکی دا نه ده واضحه کړې چې دَ سحر دَ نمانځه امام څوک وه۔ ځکه چې که بایزید پخپله امامت کولے نو بیا خو دَ هغو الزاماتو په رڼا کښې چې دَ کتاب لیکونکي ئې لګوي دَ هغه په اقتدا کښې دَ نمانځه دَ نه کولو دَ پاره بنیاد موجود وه خو هر کله چې دَ کتاب لیکونکی دا نه دی وئیلي (او ډېره اغلبه

دا ده چې بایزید امامت نه کولو ځکه چې په دې صورت کښې
به دَ کتاب لیکونکی خامخا دا الزام لګولے وے) نو دَ کتاب لیکونکی له
پکار وو چې دَ رسول کریم صلّی الله علیه وسلّم له دې وعیده
وېرېدلے وے چې فرمائیلی ئې دی چې "من شَذّ شُذَ فی النار"
(هر څوک چې (له جماعته) بېل شه نو په اور کښې پرېوتو" او
ځکه دَ دې واقعې لیکونکے اخون درویزه هېڅکله نه شی کېدے۔

دَ تذکرة الابرار والاشرار په تمهید کښې دَ "غېرو" کتابونو په جمله
کښې دَ "کشف المحجوب" نوم هم راغلے دے (نعوذبالله) او دَ یو کتاب په
حواله پکښې دا جسارت هم شوے دے چې "مصنف کشف المحجوب از جملۂ عارفان
نیست" (دَ کشف المحجوب مصنف دَ عارفانو له جملې څخه نه دے)۔ او
صاحب دَ کشف المحجوب حضرت داتا گنج بخشؒ دے چې اقبال دَ هغوی
په باب له وائی ے

سیّد ہجویرؒ مخدوم امم
مرقد او پیر سنجرؒ را حرم

او دا پیر سنجرؒ هغه بزرګ دے چې په کشفی حال کښې ئې له خُلې
دَ کشف المحجوب دَ مصنفؒ په باره کښې دا شعر وتلے دے۔

گنج بخش فیضِ عالم مظہرِ نورِ خدا
ناقصاں را پیرِ کامل کاملاں را رہنما

او هم دغه پیر سنجرؒ دَ کتاب په ص ۱۲۸ خپل پیر طریقت هم ګڼی۔
(خو متاسفانه په شجره کښې دَ پیر سنجر دَ مخدوم سید هجویری ذکر
نه کوی)۔ اوس دا څنګه کېدے شی چې دَ دې ټولو خبرو نسبت دې
اخون درویزهؒ سره وکړے شی۔

خبرهِ دلته نه ختمیږی بلکې تذکرة الابرار والاشرار دَ رسول کریم صلی الله علیه وسلّم. دَ حضرت امیرالمؤمنین عُمرؓ او دَامت نورو اکابرینو په باره کښې دَ ډېرو غېرو محتاطو خبرو نه ډک دے او هم دغسے دَ اخون درویزهِ نوم سره منسوب بل کتاب ارشاد الطالبین کښې هم داسې خبرې شوی دی چې دَ اهل سُنّت والجماعت مسلک سره سمون نه خوری [1]

او دَ کفر دا فتوے چې په تذکرة الابرار والاشرار او ارشادالطالبین کښې صادرې شوې وې دَ هغو خو څه شمار نشته. دَ دیو فتوؤ په بارهِ کښې حضرت امام اعظم دا فرمائیلی دی چې که په چا کښې یو کم سل نخښې دَ کفر او یوه دَ ایمان وی نو دَ کفر فتویٰ پرې نه بنائی خو دَ تذکرې په نزد که چا ووئیل چې مریض به مړشی یا غله به گرانه شی نو دَ ځنو په نزد به کافر شی، که چا ووئیل چې یهودی له عیسائی ځنې ښه دی نو کافر شی، که چا صغیره گناه وکړه او بل چا ورته ووئیل چې توبه وباسه او هغه ووئیل چې ما څه کړی دی نو کافر شی وغېره وغېره [2]

اوس څرګنده خبرهِ ده چې دَ اخون درویزهِ غندې منجّرعالم نه خو دَ تکفیر دا توقعات نه شی کیدے لکه چې له دیو کتابونو ظاهریږی.

"تذکره" کښې دَ "پیرچالاک ختک" او دَ هغه دَ ورور پیرعمرختک په باره کښې یوه قصه راغلې ده چې له هغې دا معلومیږی چې دَ کتاب دَ لیکونکی په نظر کښې نو پیر چالاک "جاهل" "مفتری" "سفیه" او "ضال" وه (نعوذ بالله) او دا ئې محض دَ حضرت پیر باباؒ سره دَ یوې مناظرې نه اخذ کړی دی [3] حالانکې دا پیر څالاک ختک هم هغه "اخون څالاک" معلومیږی چې تاریخ مرصع کښې ئې افضل خان ختک

---

[1] تذکره - ص - ۱۸۱ - ۱۱۴ - ۲۸۳ (چې پرې دَ کتابت په غلطۍ ۱۸۳ لیکلے شوی دی) وغیره وغیره - ارشادالطالبین . [2] تذکره - ص - ۲۴۶ - [3] تذکره - ص - ۱۳۲ -

په دې عنوان ذکر کړے دے "ذکر قدوه محققين زبدهٔ علماء دين متين پيغمبر غازئ غزاء کفار طرف کوهستان کاشغر و چين ښکار تړونے دَ مريدانو په فتراک يعنې حضرت اخوند محمد ځالاک قدس الله سره" اوس هرڅو که دا اخون ځالاک هم دَ نړۍ وه او ځکه ختک وه (افضل خان ئې "ترين" بولي) خو افضل خان ئې دَ شاهجهان هم عصر شماري او هرکله چې حضرت پيربابا دَ اکبر باچا په عصر کښې په ۹۹۱ھ کښې وفات شوے دے نو ځکه دا انتهائي غېر اغلبه ده چې دَ اکبر باچا په زمانه کښې وفات شوی پيربابا به يو داسې سړی سره بحث کړے وی چې هغه دَ اکبر باچا دَ بادشاهۍ په دوره (۱۰۳۷ - ۱۰۶۸ھ) کښې هم ځوندے وه- دا دواړه بيانونه په يوه وخت صرف هله صحيح کيدے شي چې دوه اخون ځالاکه ومنو-[2]

"مخزن" او "تذکرة الابرار والاشرار" کښې دَ هغو غزاګانو ذکر دے چې يُوسف زيو دَ "تاريکيانو" برخلاف کړی دی- او هرکله چې دَ تذکرې ليکونکے دَ رسول کريم صلّى الله عليه وسلّم دَ دوو حديثونو په حواله ځان دَ يُوسف زيو سره ملحق ګڼي[3] نو اوس سوال دا پيدا کيږي چې که چرې دَ "مخزن" او "تذکرې" دَ دغو متعلقه حصو ليکونکے اخون درويزه وی نو هغه ئخپله په دې "جهاد" کښې حصه ولے نه اخستله- دَ "مخزن" او "تذکرة الابرار والاشرار" کښې هيڅرته هم دا ذکر نشته چې اخون درويزه دَ "تاريکيانو" برخلاف په يوه جنګ کښې هم شامل وه حالانکې هغه دَ احداد تر وخته ژوندے وه ځکه چې په تذکرة الابرار والاشرار[4]

---

[1] تاريخ مرصع ص-۵۹۲- [2] اثر افغاني دوه اخون ځالاکه مني خو هغه بل اخون ځالاک هم دَ "ترۍ" (نړۍ) اوسيدونکے شماري او خپل اخون ځالاک دَ ترکستان ګڼي- روحاني رابطه- ص ۵۰۴- [3] تذکره ص- ۱۱۳- ۱۱۴- [4] تذکره ص- ۱۵۸-

او په مخزن کښې[1] د جلال الدین د مرګ او د احداد د هغه په ځای د کښېناستو صفا ذکر شوے دے. اوس نو سوال دا پیدا کیږی چې که "تاریکیان" هم دغسې "کشتنی" وو لکه چې په "مخزن" او "تذکرة الابرار و الاشرار" کښې ئې ذکر شوے دے نو د دیو کتابونو لیکونکی په دې نیک کارکښې پخپله ولې حصه نه اخستله. دا سوال به د کریم داد بابا په باره کښې هم پیدا کیږی ځکه چې کریم داد بابا هم تر ۱۰۷۲ھ پورې ژوندے وه او که هغه هم "تاریکیان" هم دغسې بد ګڼلے لکه چې د هغه مرتب کړی کتابونو نه څرګندیږی نو د هغوی برخلاف له مقدسه جنګه ئې ولې ډډه کوله. څرګنده خبره ده چې د دیو ټولو تفصیلاتو په رڼا کښې مونږ وئیلے شو چې یا خو د بایزید روښان او د اخون درویزه ترمینځه د اختلاف او دښمنئ دا خبره صحیح نه ده او یا بیا (نعوذ بالله) اخون درویزه او د هغه زوئې باعمله عالمان نه وو او چې څه ئې وئیل هغه به ئې نه کول.

د بایزید روښان د مخالفانو په صف کښې اوس اوس د یونوی "مخالف" حضرت اخون پنجوؒ (چې اصل نوم ئې عبدالوهاب وه) اضافه هم شوې ده. دا اضافه د شمس العلماء میراحمد شاه رضوانی د تحفة الاولیاء په حواله څېړندوئې محمد صدیق روهی په خپل کتاب ادبی څېړنې کښې کړې ده چې د ننګرهار پوهنتون د ښوونې او روزنې پوهنځی په ۱۳۶۰ هش کښې چاپ کړے دے. ښاغلی روهی د ښاغلی اثر افغانی د کتاب "روحانی رابطه او روحانی ترون" حوالې هم پخپلې مقاله کښې ځائې په ځائې ورکړی دی نو ښکاره ده چې دوی د تحفة الاولیاء د استناد په باره کښې دومره اصرار نه وے کړے ځکه چې ښاغلی اثر د اخون پنجو بابا په باره کښې خصوصًا

---

[1] مخزن ص-۱۲۷-(فارسی) ۱۳۶ (پښتو).

او دَ نورو دینی مشرانو په باره کښې عمومًا دَ هغو خبرو تردید او تغلیط کړے دے چې دَ تحفة الاولیاء لیکونکی راوړی دی۔

دَ تحفة الاولیاء لیکونکے شمس العلماء میر احمد شاه رضوانی مرحوم(۱۳۵۳-۱۲۷۹ه) دَ اکبرپورې اوسیدونکے وه ځکه نو دَ اخون پنجو په سلسله کښې چې څه ورته ښه ښکاریدلي دَ خپل کلی وال سره ئې تړلی دی مثلًا دا چې اخون پنجو بابا دَ حضرت کاکا صاحبؒ پیر وه او دا چې هغه دَ "تاریکیانو" خلاف وه وغیره وغیره۔ دَ وړومبی خبرې تردید ئې دَ حضرت کاکا صاحبؒ په باره کښې دَ لیکلی شویو ټولو تذکرو نه کیږی او دَ دویمې خبرې تردید ئې دَ لاندې لیکلیو معروضاتو په ذریعه دَ کولو جرأت کوم؛

۱- لکه چې مخکښې عرض وشهٔ تحفة الاولیاء اِکّی یو کتاب دے چې دَ اخون پنجو بابا او دَ بایزید روښان دَ مریدانو تر منځه دَ اختلاف خبره کوی او هرکله چې دَ دې کتاب لیکونکے "غرض لرونکے گواه" دے نو ځکه محض دَ ده په سند دا خبره دَ منلو نه ده۔

۲- هیڅ یو روښانی کتاب کښې دَ اخون پنجو بابا ذکر دَ بایزید روښان دَ مخالف په حیث نه دے شوے۔

۳- دَ اخون پنجو بابا هیڅ یو کتاب موندِ ته نه دے پاتې او په دې وجه دَ براه راست شهادت په غیر موجودگۍ کښې دا فیصله کول ممکن نه دی چې اخون پنجو بابا دَ بایزید روښان په باره کښې څه خیال لرلو

۴- تذکرة الابرار والاشرار کښې دَ "ابرارو" په سلسله کښې دَ "ملاعبدالوهاب" مانکروای کوم ذکر کړے دے[1] هغه دَ دې خبرې تردید کوی چې اخون پنجو بابا دَ اخون درویزهؒ مرید وه۔ نو که اخون درویزه سره دَ دې رشتې په سبب څوک خامخا اخون پنجوؒ هم دَ هغه "شریک کار"

[1] تذکرة الابرار والاشرار ص-۲۲۱-

کړی نو پکار ده چې هغه دَ خپل خیال اصلاح وکړی. پخپله دَ میر احمد شاه رضوانی دَ وینا مطابق دَ اخون درویزه او دَ اخون پنجو ترمینځه ملاقات نه دے شوے.[1]

۵- دَ اخون پنجو بابا په باره کښې روایات دا دی چې هغه او دَ هغه پلار دَ عبدالقدوس گنگوهیؒ مریدان وو. او عبدالقدوس گنگوهیؒ دَ ابراهیم لودی سره دَ پانی پت په جنګ کښې موجود وه او بیا دَ بابر سره دَ پانی پت له میدانه پیاده په ډیر تکلیف ډیلی ته بوتللے شه.[2]

۶- دَ اخون پنجو بابا والد محترم دَ ابراهیم لودی له شهادته پس هندوستان پریښوه او یوسفزیو ته راغے او بیا چې په هندوستان کښې دَ سوریانو حکومت قائم شه نو هغه دَ یوسف زیو سکونت ځکه ترک کړه چې یوسف زی دَ سوریانو نه باغیان وو.[3]

۷- "روحانی رابطه" کښې اثر صاحب دَ مهابت خان له خوا دَ جهانګیر دَ ګرفتارۍ په واقعه کښې (بغیر له څه سنده) دَ اخون پنجو بابا ذِکر کوی او دا مدعا لری چې اخون پنجو بابا دَ حضرت مجددؒ مرید وه. دَ حضرت مجددؒ دَ مکتوباتو په وړومبی دفتر کښې یو مکتوب (نمبر ۱۵۷) دَ حکیم عبدالوهاب صاحب په نوم شته خوخدائې خبر چې دا حکیم عبدالوهاب صاحب اخون پنجو بابا دے هم او که نه. خو دا خو یو بالکل ثابت حقیقت دے چې دَ اخون پنجو بابا زوئې حضرت شیخ فریدالدین دَ حضرت مجددؒ دَ خلیفه اعظم حضرت ادم بنوریؒ په خلفاؤ کښې وه[4] نو ځکه دا ډیره اغلبه ده چې دَ حضرت مجددؒ او حضرت آدم بنوریؒ متوسلینو

---

[1] تحفة الاولیاء. ص. ۲۸ (روحانی رابطه ص. ۴۸۲) [2] رود کوثر. ص. ۷۶ [3] تحفة الاولیاء (روحانی رابطه ص. ۴۶۵) [4] نتائج الحرمین (قلمی) ص. ۱۷۳ له مولینا محمد امین بدخشیؒ (دَ ډاکټر محمد حنیف صاحب په حواله).

کښې دې څوک دَ مغلو دَ ظلمونو حمایت وکړی۔

۸۔ تاریخ مرصع کښې دَ حضرت اخون پنجو بابا براهِ راست ذِکر نشته حالانکې که چرې دَ معترضینو دا خبره رښتیا وی چې اخون پنجو بابا دَ مغلو حمایت کړے وه نو دا ډېره غېرممکنه ده چې دَ پېښور دَ مشهورې محاصرې (۱۶۳۰ء اواخر دَ ۱۰۳۹ھ) په ضمن کښې اخون پنجو بابا غېرمتعلق پاتې شوے وے او ځکه نو تاریخ مرصع به ئې خامخا دَ هغه کردار ذِکر کولو چې اخون پنجو بابا دَ مغلو په حمایت کښې ښکاره کړے وه۔ دا خبره ځکه هم اهمیت لری چې دَ تاریخ مرصع دَ لیکونکی ماماخېل او نیکه (شهبازخان) په دې جنګ کښې دَ مغلو ملګری او دَ بایزید روښان مریدان دَ عبدالقادر په مشرئ کښې دَ پښتنو سره (تریوه وخته) کومکیان پاتې شوی وو۔[۱] په دې وجه دَ خپلو ماماخېلو او نیکه دَ صفائئ دَ پارهِ افضل خان سره له ټولو غوره سند دَ اخون پنجو بابا عمل وه خو هرکله چې تاریخ مرصع کښې دَ ۱۶۳۰ء دَ جنګ په سلسله کښې دَ اخون پنجو دَ هېڅ کردار ذِکر نه دے شوے نو ځکه دا خبره سکُته غلطه ده چې اخون پنجو بابا دَ روښانیانو په ضد او دَ مغلو په حق کښې څه کارروائئ کړې دی۔

۹۔ دَ تاریخ مرصع سیاسی برخه کښې لکه چې عرض وشه دَ اخون پنجو بابا نوم نه دے راغلے خو دَ پښتنو اولیاؤ دَ هغه تذکرې دَ ترجمې نه پس چې مخزن افغانی کښې شامله ده دَ افضل خان لیکلې ضمیمه کښې دَ اخون پنجو بابا نوم شته۔ تاریخِ مرصع کښې دَ اخون څلاک په تذکره کښې ویُلی شوی دی۔ نقل دے چې یوهِ ورځ مېلمانه وَ مهمانخانې ته دَ

[۱] ۱۶۳۰ء۔ ص۔ ۷۸۔

اخوند جیو راغلل- هغه زمان دَ حضرت جیو کره هیڅ موجود نه وُو-
وئ فرمائیل چې کتوړ په نغریو باندې کړئ اُبه تودې کړئ-چې
اُبه گرمې شوې خادمان راغلل خبر ئې حضرت اخوند ته ورساوه-حضرت
اخوند وفرمائیل چې څخو تحمّل وکړئ- پس له یوه ساعته یو شخص
راغے- دوه گوډی ئې دَ مېوو دَ وریږو گېډوډ راوړل وَ کتوو ته ئې واچول
چې وریږې پخې شوې، وئ فرمائیل چې کوژغالی دَ مستو دَ پاره وکړئ-په
دا میان کښې یو شخص راغے منګی ئې دَ مستو راوړه په وریږو ئې
واچول وئ خوړل چې هغه شخص لاړ، حضرت اخوند وفرمائیل چې دا
شخص اخون پنجُو وه" [1] اخون پنجُو که دَ مغلو سره وے نو افضل خان
به هیڅکله دَ هغه مقام دَ اخون ځالاک سره په تعلق کښې نه وے
ښئیلے ځکه چې اخون ځالاک هغه "قدوة محققین" "زبدهٔ علماء دین متین"
او "غازی" گڼی او ظاهره ده چې داسې سړے به دَ افضل خان په
خیال هیڅکله دَ مغلو دَ ملګری په "غیبی امداد" فخر و نه کړی-

۱۰- دَ شمس العلماء میراحمد شاه رضوانی تحفة الاولیاء کښې دَ اخون پنجُو یو
کرامت بیان شوے دے چې ښاغلی خېږندوئ محمّد صدیق روهی په
دیو الفاظو کښې ترجمه کړے دے "حضرت اخون پنجُو صاحب یوه ورځ
دَ جُومات په حجره کښې دَ مراقبې په توګه سر په زنګانه ایښے وه
کله چې راپاڅېده کالی ئې لانده شوی وو او دَ سمندر نروې ابه ئې
له کالبو څخه څڅېدې دَ ده مرید حیران وه خو اخون پنجو په خندا
ورته ووئیل چې زه دَ مراقبې په حال کښې وم ومې لیدل چې زما دَ
یوه مخلص بېړۍ چې حجاز ته روانه وه په ابو کښې ډوبېدې-سوداګر

---

[1] تاریخ مرصع-ص-۵۹۳-

له مانه دَ روحانيت په عالم کښې مرسته وُغښته زه ورغلم ببړۍ مې وژغورله نو زما کالی هلته لانده شوی دی" له

اوس هم دَ دې "کرامت" هغه روايت ولولئ، چې تاريخ مرصع کښې دَ اخون څالاک په سلسله کښې راغلے دے" نقل دے چې يوه ورځ اخوند څالاک غزا ته فضائل مآب اخوند ملا جمال کره مېلمه شه - هر ګاه چې طعام ئې وخوړ يوه حويلۍ ئې دَ پاره دَ شپې ورته خالی کړه - چې اخون ارام وينو هر څوک رخصت شول لاړل، دروازه ئې پورې کړه - پس له يوه ساعته اخوند ملا جمال راغے که هر څو ئې جستجوئې وکړ حضرت اخوند ئې په هغه حويلۍ کښې بيا نه موند- په دا جستجو له کليه پسې ووتل- اخوند قدس سرهٔ مخې ته راغے دواړه لستونی ئې په اُبو لاوندهٔ وُو- سوال ئې ترې وکړ حقيقت ئې نه معلوموه-چې خپل خلوت ته راغے اخوند ملا جمال مذکور چې يو دَ ده له شاګردانو وه ډېر الحاح ئې وکړ پس له هغه معزاليه وفرمائيل چې په قعر درياب کښې جهاز غرقېده هغو سرو زه ياد کړم - دَ دوئ په مدد ورغلم جهاز له غرقېده حق تعالی وساته ٢

اوس په يقينی ډول ديو دواړو روايتونو کښې يو غلط دے او هر کله چې دَ افضل خان ختک او اخون څالاک تر منځه وخت دَ مير احمد شاه رضوانی مرحوم او اخون پنجوٌ تر مېنځه زمانې په مقابله کښې لنډ دے او دَ اخون څالاک روايت دَ اخون پنجوٌ بابا دَ روايت په مقابله کښې اوّل هم ليکلے شوے دے نو دا څکه وئيلے شو چې مير احمد شاه رضوانی مرحوم محض دَ خپل " کلی وال" کراماتو کښې دَ اضافې په خاطر دا قيصه ليکلې ده-

دَ بايزيد انصاری په مخالفينو کښې يو لوئې نوم دَ خوشحال بابا دے- اګر چې

---

٢ه تاريخ مرصع ص- ٥٩٣- له ادبی خپړنې- ص- ١٧١-

دَ اوسنی زمانې یو شاعر دَ خوشحال خان دَ کلام پهٔ مقدمه کښې وئیلی دی چې "عجیبه خبرهِ ده چې خوشحال خان خټک دَ بایزید دَ عقائدو یا سیاسی تحریک پهٔ پره یا مخالفت کښې لهٔ هیڅ قِسمه جامع تنقید یا تحسین پهٔ نظم یا پهٔ نثر کښې نهٔ دے پرېښے حالانکې بایزید دَ خوشحال خان زمانې ته ډېر نژدې وه او پهٔ سیاسی طور دَ خوشحال خان هم خیال وه خو خوشحال خان دَ بایزید دَ عقائدو مخالف وه لکه چې دې شعرنه ئې معلومیږی۔

زهٔ دَ درویزهٔ غُندې ایمان بنیمُ وَ ده ته
دے دَ پیر روښان غُندې دَ کُفر کا تلقین[1]

لهٔ دې خبرې قطع نظر چې دَ دې حوالې وروستی حصه (خوشحال خان دَ بایزید دَ عقائدو مخالف وه) دَ دې دَ وړومبی حصّې (خوشحال خان خټک دَ بایزید دَ عقائدو........پهٔ پرهِ یا مخالفت کښې هیڅ قسمه جامع تنقید پهٔ نظم یا پهٔ نثر کښې نهٔ دے پرېښے) صفا تردید کوی دا خبره بالکل ثبوت ته رسی چې خوشحال خان بابا دَ بایزید روښان دَ مذهبی عقائدو سره اتفاق نهٔ لرلو۔ پهٔ دې ضمن کښې زهٔ دَ خوشحال بابا ځنې نور شعرونه دَ حوالې دَ پارهِ پېش کوم۔

هغه وخت چې پیر روښان فساد بنیاد کهٔ
پښتنو ورسره ټینګ کار دَ فساد کهٔ

---

دَ روښان خیرالبیان ئې وه لیدلے
هغه هم مجهول بیان وه ناپسند لے[2]

---

[1] ارمغان خوشحال۔ مقدمه۔ ص۔۱۴۔ [2] تاریخِ مرصع۔ ص۔ ۳۴۲۔

دَ خوشحال بابا پهٔ دیو درېو واړو شعرونو کښې بایزید انصاری دَ "تاریک" پهٔ نامه نهٔ دے یاد شوے بلکې پهٔ وړومبی او دوېم شعرکښې دَ "بایزید روښان" او درېم شعر کښې دَ "روښان" پهٔ حېثیت ئې ذکر شوے دے۔ لهٔ دې ځنې دا نتیجه راوکښل غلط نهٔ دی چې هر څو کهٔ خوشحال بابا دَ بایزید انصاری مذهبی عقائدو سره اختلاف لرلو خو هغهٔ سره ئې هغه عداوت نهٔ لرلو دَ کوم نسبت چې دَ بایزید پهٔ سلسله کښې اخون درویزهٔ ته کیږی۔

دلته یوه خبره دَ هېرولو نه ده۔ ښاغلی اسلانوف پهٔ خپله مقاله "دَ روښانیانو مِلّی نهضت" کښې دَخوشحال خان دَ دیوان دَ پېښوری چاپ پهٔ حواله دَ هغهٔ دا دوه شعرونه راوړی دی:۔

نس مې اپریدے دے څهٔ غم نهٔ لری دَ دین
ښهٔ فکر ئې لږ دے ډېر دے بداو وته شین
زهٔ دَ پیغمبر غُندې ایمان ښیم وَ دهٔ ته
دۓ لکه شیطان غندې دَ کُفر کا تلقین

او بیا ئې وئیلی دی "مګر دَ خوشحال خان پهٔ هم دغه شعر کښې چې دَ راورټی پهٔ مجموعه کښې چاپ شوے دے دَ پیغمبر دَ لفظ پهٔ ځائې درویزه راغلے دے او دَ شیطان دَ لفظ پهٔ ځائې روښان لیکلے شوے دے۔

خو باید ووئیل شی چې پېښورے چاپ سم او صواب ته نژدې دے ځکه چې پهٔ پېښوری چاپ کښې هغه قلمی نسخه پهٔ کار لوېدلې ده چې پخپله دَ خوشحال خان دَ لمسی افضل خان پهٔ قلم لیکل شوې ده"[1]
دا دوه شعرونه دَ "پېښوری چاپ" دیوان کښې داسې دی۔

---

[1] دَ روښانیانو ملی نهضت۔ص۔۳۳۔

قع

نس مې افریدے دے چې غم نه لری دَ دین

بنه فکر یُ لرِ دے ډیر دے بداو وته شین

زه دَ پیغمبر غُندې ایمان بنیُم وَ ده ته

دے راته شیطان غُندې دَ کُفر کا تلقین[۱]

دَ هوتی چاپ دیوان چې دا شعرونه ترې رانقل شو دَ "خانصاحب محمدزمان صاحب" اکوړه " په اجازت او دَ پروفیسر عبدالمجید افغانی مرحوم دَ یوې وړې مقدمې سره چاپ شوے دے. دَ دې دیوان دَ ۹۸ مخ نه پس ته لیکلی شوی دی "حصه دوېمه دَ دیوان دَ خوشحال خان ختک له قلمی نسخې نه چې په قبضه دَ افضل خان ختک کښې وه په تصحیح دَ ډاکټر ایچ ډبلیو بېلیو صاحب بهادر دَ پېښور په جېلخانه کښې په اهتمام دَ سلطان بخش داروغه په سنه ۱۸۷۰ کښې مطبوع شوے وه اوس دوباره په اجازت دَ سرکار دولت مدار میاں عبدالرحمن تاجر کتب دَ پېښور او دَ هوتی بازار خواجه گنج چاپ کړلو و بالله التوفیق"[۲]

دَ بېلیو دَ اصلی نسخې په هم دغه مخ (۱۶۲) دغه دواړه شعرونه هم دغسې راغلی دی لکه چې دَ هوتی چاپ دیوان کښې دی. دَ بېلیو دَ اصل نسخې په خاتمه کښې چې دَ دیوان په ۶۰۷ مخ چاپ ده دا نوټ راغلے دے: "جناب ډاکټر ډبلیو بلیو صاحب بهادر مهتمم دَ جېلخانې دَ پېښور له بعضې خانانو دَ خاندان دَ مصنّف نه نسخه دَ دیوان مذکور چې ډېره خوش خطه او مطلا بیش قیمته او بې بها وه راغښتلې په خپل حکم سره په مطبع دَ جېلخانې دَ پېښور کښې

---

[۱] دیوان خوشحال خان ختک بزبان افغانی و فارسی. (دَ هوتی چاپ) ص - ۱۶۲

[۲] کامل مرحوم دَ کلیات دَ سریزې په "د" مخ سهواً دا نوم " نظام بخش داروغه " لیکلے دے. دَ هوتی چاپ دَ بره درج نوټ داوېنا هم پوره صحیح نه ده چې دَ بېلیو چاپي نسخه په ۱۸۷۰ کښې "مطبوع" شوې ده دَ بېلیو دَ نسخې په ټائټل ۱۸۶۹ اع لیکلے شوے دے او په خاتمه کښې یُ ۱۸۷۰ اع راغلے دے.

په اهتمام دَ سلطان بخش داروغه په سنه ۱۸۷۰ عیسوی چې موافق دَ سنه ۱۲۸۷ هجری دے دَ پاره دَ فائدې دَ خاص و عام خلقو چاپه ئې کړه؛

دَ بناغلی اسلانوف په رائې دَ خوشحال خان ختک دَ دیوان دَ "پېښوری چاپ" قرأت ځکه صواب ته نژدې دے چې په دې چاپ کښې هغه قلمی نسخه په کار لوئېدلې ده چې دَ خوشحال خان دَ لمسی افضل خان په قلم لیکل شوې ده؛ دَ "پېښوری چاپ" دواړو نسخو کښې دا صراحت نه دے شوے چې دا نسخه دَ افضل خان ختک بن اشرف خان ختک بن خوشحال خان ختک په قلم لیکلې شوې ده- په دواړو نسخو کښې افضل خان ته دَ کتاب دَ ملکیت نسبت خو شوے دے خو دَ دې نسخې دَ افضل خان په خپل لاس دَ لیکلو هیڅ دعوی نه ده شوې- او بیا دا هم دعوی نه ده شوې چې دا افضل خان دَ خوشحال بابا لمسے افضل خان وه- او ډیر اغلب قیاس دا دے چې دا افضل خان هم هغه دَ جمال ګړی افضل خان ختک دے چې انګریزی مستشرقینو ترې ځنې نسخې اخستې یا ئې ورسره لیدلې وې لکه چې هیوز ئې دَ کلید افغانی په مقدمه کښې اعتراف کړے دے-

دَ پښتو له ټولو لوئې خوشحال شناس یعنی دوست محمد خان کامل مومند مرحوم و مغفور دَ جېلخانې دَ نسخې او دَ هغې دَ نقل (هوتی چاپ) په باره کښې وئیلی دی: "دَ ۱۸۷۰ء چاپ نسخه اګر که نایابه خو نه ده لیکن ډېره کمه موندے شی- دا نُسخه ما لُستې خو نه ده ولې دَ هوتې چاپ نسخې دَ لُستو نه معلومیږی چې کاتب صاحب پکښې ډیر تصرفات کړی دی" له

معنوی لحاظ سره هم دَ دیو دواړو نسخو دَ دیو دوه شعرونو قرأت انتهائی ګمراه کن دے- خوشحال بابا دَ "خپل نس" دَ "اپریدی" کېدو په ثبوت کښې

---

له دَ کلیات سریزه- "د" مخ

دا وئیل غواړی چې دے (دَ خوشحال بابا نفس) ځکه اپریدے دے چې دَ بایزید روښان دَ "کفر تلقین" منی او زما هغه خبرې نه منی چې دَ درویزه غُنډې پکښې ایمان ښئیلے شوے دے۔ اوس دلته یوه لویه تلازمه دَ بایزید روښان او دَ اپریدیو ده چې دَ هغې په موجودګۍ کښې "پیر روښان" نه بغیر دَ بل چا ذکر هیڅ جواز نه لری۔

دَ ببلیو نسخه په ۱۲۸۷ کښې لیکلے شوے وه۔ او چې له کومې قلمی نسخې دغه چاپی نسخه لیکلے شوې ده دَ هغې دَ لیک دَ کال هیڅ پته نه لګی۔ خود خوشحال بابا له ټولو زړه نسخه چې مونږ ئې لرو دَ عابد خان په قلم لیکلې هغه نسخه ده چې دَ دیو کرښو لیکونکے ئې لری۔ له دغه پسه دَ محمّد سعید ساکن سرائې (شاید چې هم دا ختک سعید وی) په ۱۱۷۳ھ کښې لیکلې نسخه ده چې دَ پښتو اکیډیمی دَ لائبریرۍ دَ قلمی نسخو نمبر ق-۸۱۳ لری۔ دې پسې دریمه زړه نسخه دَ ګُل محمد پېښوری په قلم په ۲۶ر محرم ۱۱۷۵ھ دَ محمدی صاحبزادهؒ دَ پاره لیکلې نسخه ده چې دَ هم دغه لائبریرۍ نمبر ق-۲ لری۔ دغو درېو واړو نسخو کښې دغه دوه شعرونه هم دغسې دی لکه چې دَ راورټی، حبیبی مرحوم، کامل مومند مرحوم او نورو چاپی دیوانونو کښې راغلی دی (یعنی دَ درویزه او پیر روښان نوم لری) زما په خیال دَ محمدی صاحبزادهؒ دَ پاره لیکلې نسخه تر ټولو نسخو زیاته مستنده وه ځکه چې دَ یو لوئې شاعر او عالم له نظره تېره شوې ده او هم دا حکم دَ عابد خان په نسخه هم کېدے شی ځکه دَ دیو ټولو دلائلو په رڼا کښې دا خبره څه ځائې نه نیسی چې دَ "پېښوری چاپ" نسخې قرأت" سم او صواب ته نژدې" دے۔

اوس نو څو چې دَ خوشحال بابا او دَ بایزید روښان دَ باهمی اختلاف تعلق دے نو لکه چې مخکښې عرض وشه خوشحال بابا بایزید انصاری سره

دَ عقیدې اختلاف خامخا لرلو خو دا اختلاف تر هغه درجې نه وه رسیدلے ترکومې چې دَ مخزن او تذکرة الابرار والاشرار دَ لیکونکی وه - دَ دې په ثبوت کښې یو دلیل خو دا عرض شوے دے چې خوشحال بابا هیڅ یو ځائې کښې بایزید انصاری ته دَ مخزن دَ لیکونکی او دَ نورو مخالفینو غندې "تاریک" یا "تاریکے" نه دے وئیلے بلکه هرچرته ئې چې ذکر کړے دے نو دَ "روښان" یا دَ "پیر روښان" په نامو ئې یادوی۔

دَ خوشحال بابا شعر

هغه وخت چې پیر روښان فساد بنیاد کړ
پښتنو ورسره ټینګ کار دَ فساد کړ

دا ښئې چې دَ پیرروښان اقدامات دَ خوشحال بابا په نظر کښې دَ "فساد" دَ تعریف لاندې راتلل - خو دا به یوې نتیجې ته "زر توپ وهنه" وی ځکه چې خوشحال بابا دَ خپل "باچا" ایمل خان[1] دَ قومی تحریک په باره کښې وائی:

دَ ایمل فتور آغاز شه
دَ مومنو هم عنان شوم[2]

نو که دَ ایمل خان تحریک دَ خوشحال بابا په نظر کښې "فتور" وی نو دَ پیرروښان تحریک ته که هغه "فساد" ووائی نو زما په خیال له دې دا نتیجه اخذ کول صحیح نه دی چې خوشحال خان دَ بایزید انصاری دشمن وه - ځکه چې په "فتور" او "فساد" کښې دَ معنو اشتراک شته اوکه یو دَ مدح په مقام استعمال شوے وی نو بل خامخا دَ ذم مقام ته منسوب کول صحیح کار نه دے

---

[1] کلیات (کامل مرحوم) - ص - ۲۸٦ [2] ایضًا - ص - ۸۲۳ -

دَ خوشحال بابا (او ورسره دَ حضرت کاکا صاحبؒ په باره کښې هم) دا سوال البته پیدا کیږی چې دې دوارو مشاهیرو (چې وروسته په ۱۱۰۰ھ او دوہم په ۱۰٦۳ھ کښې وفات شوے دے) په ختکو کښې دَ بایزید روښان دَ تحریک په اثر و نفوذ ولې څه ونیلی نه دی۔ دَ احداد په لواغره کښې دَ مغلو سره په جنگ کښې قتلیدَه دا ثابتوی چې امداد او دَ هغه ملگری ختکو ته بغیر له څه وجې نه وو راغلی۔ حالنامه کښې راغلی دی چې امداد له تیراه نه (چې دَ روښانیانو مضبوط مرکز وه) ختکو ته تللی وه او اگرچې حالنامه دا نه ښئ چې احداد کله ختکو ته تللے وه خو دا ضرور بیانوی چې مغلو سره له اخری جنگه مخکښې "چند سال آنجا گزرانیدند" (څو کاله ئې هلته تیر کړه) له او هر کله چې امداد په ۱۰۳۴ھ (۲۵-۱٦۲۴) کښې وفات شوے وه نو که "چند" درې کاله هم وګنو نو دے به ختکوته به ۱۰۳۱ھ کښې تللے وشمیرو۔ او دا دَ حضرت کاکا صاحبؒ او دَ خوشحال بابا دَ پلار شهباز خان زمانه وه۔ او هر څو که سره دَ تاریخ مرجع هیڅ یو تاریخ مونږ ته دا نه ښئ چې دَ روښانیانو او ختکو تر مینځه څه روابط وو خو دَ "درپو کالو" دا اقامت څرگندوی چې دَ ختکو او روښانیانو تر مینځه ډیر ټینګ تعلق وه۔ که چرې دَ احداد په ختکو کښې اوسیدل دَ سیاسی زبردستئ له کبله وو نو پکار ده چې خوشحال بابا دا زور غندلے وے او که دا اوسیدل په زور نه وو نو بیا به دا ضرور فرض کوو چې ختک یا دَ ختکو یوه لویه برخه دَ بایزید روښان دَ ارادت په حلقه کښې شامله وه او دَ احداد سیاسی قیادت ئې منلو او په دې صورت کښې دا

---

له حالنامه۔ ص۔ ۴۳۵۔

سوالونه یقیناً پیدا کیږي چې دَ حضرت کاکا صاحبؒ مناقب لیکونکی خوشحال بابا پخپله او دَ هغه نمسے افضل خان ولې دَ بایزید روښان او دَ ختټکو په دې تعلق چپ پاتې شوی دی او څنې اوسنی خټک لیکونکی ولې په شدّت سره دَ دې تعلق دَ منلو نه انکار کوی۔ دَ ۱۶۳۰ء دَ پېښور دَ مشهورې محاصرې په سلسله کښې چې زمونږ افغانان مؤرخین په غلطۍ دَ روښانیانو دَ تحریک سره تړی او محترم دوست محمّد خان کامل مرحوم ئې دَ کمال خان داؤدزی دَ قیادت لاندې دَ مغلو برخلاف دَ پښتنو جنګ ګڼی، دَ مقامات قطبیه او تاریخ مرصع دواړو له بیانه معلومیږی چې په دغه موقع دَ خوشحال بابا دَ والد شهبازخان همدردی مغلو سره وې له او چونکې په دغه جنګ کښې عبدالقادرخان روښانے تر څه وخته دَ پښتنو سره ملګرے وه نو دا ویلے شو چې کم ازکم دَ ۱۶۳۰ء په دې واقعه کښې دَ خوشحال بابا خاندان دَ روښانیانو خلاف وه۔ ځکه نو په دې موقع تاریخ مرصع له دا وضاحت کول پکار وو چې خټکو دَ احداد سره ملګرتیا او دَ هغه له زویه سره مخالفت ولې کولو؟

دیو ناقابل فهم واقعاتو کښې یوه واقعه دَ روښانیانو په خلاف دَ یُوسف زیو په جنګ کښې دَ مخزن دَ لیکونکی نه شاملیدل دی چې بوخوا روښانیان ملحدان ګڼی او دَ هغوی برخلاف جنګ کونکی غازیان شمېری دَ هغوی دَ غزاګانو قصې لیکی او بل خوا پخپله په یوه غزا کښې هم دَ خپل شرکت ذکر نه کوی۔

په دې موقع زه دَ پیر باباؒ او اخون درویزه په کردار دَ یو اعتراض ځواب ضروری ګڼم چې ما ئې دَ پیر باباؒ او اخون درویزه په سلسله کښې

---

له مقامات قطبیه ص- ۱۶۱- تاریخ مرصع ص ۲۵۳-۲۵۴-

قصدًا نه وه کړے خو اوس ئې دَ ځنو دوستانو دَ شدیدا اصرار په وجه وضاحت کوم- دا اعتراض دَ پیر باباؒ او اخون درویزه دَ هغه کردار متعلق دے چې دے دواړو مشرانو دَ اکبر دَ دین الٰهی په ضمن کښې څرګند کړے دے- حبیبی مرحوم لیکی:- "...... په روښانیانو پسې یو عمومی پروپاګند دَ سیاسی اختلاف په وجه له شاهی درباره روان وه چې دوی دَ الحاد او اباحت په تور بدنام کاندې- دې خبرې ته سر اولف کېږو په لطیف ډول اشاره کوی، چې روښان خو دَ سیاست له پاره "پیرتاریک یا ملحد وبلل شه مګر دَ هغه وخت پاچا" اکبر" خو پخپله هم دَ دغه نامه مستحق وه ځکه چې هغه هم یو نوے "دین الٰهی" راایستلے وه[1] دا اعتراض نورو لیکونکیو هم دَ حبیبی مرحوم په تتبع کښې کړے دے- خو حقیقت دا دے چې دا اعتراض له تاریخه دَ بې خبرۍ دَ تدبر له قلته او کــه خدائې پاک مې نه غلطوی نو دَ پیر باباؒ او اخون درویزه سره خامخا عداوته او بایزید روښان سره له غیر ضروری عقیدته را پیدا شوے دے-

دین الٰهی څه وه او څه ترې جوړ کړے شه دا یو بېل سوال دے چې دَ ځواب دَ پاره دې ئې لُسنونکی دَ ډاکټر اشتیاق حُسین قریشی مرحوم مشهور کتاب "دَه مُسلم کمیونټی او دَه انډیا و پاکستان سب کانټی نـنټ" (دَ هند و پاکستان دَ برصغیر اهل اسلام) ته رجوع وکړی (په انګریزۍ نه پوهېدونکی قارئین دَ شیخ محمد اکرام دَ مشهور کتاب "رود کوثر" نه استفاده کولے شی) خو لکه چې بالکل تاریخی حقیقت دے- حضرت پیر بابا دَ دین الٰهی دَ رواج په کال (۹۹۰ھ) رحلت کړے وه نو ځکه هغوی باندې خو دَ

---

[1] دَ پښتو ادبیاتو تاریخ- دوهم ټوک- دوهم چاپ- ص- ۳۲۰

دين الٰهی پهٔ مقابله کښې دَ چپ پاتې کېدو الزام صریحًا غلط او له خدایه دَ نهٔ وېرېدو ثبوت دے۔ خو اخون دروېزه چې دَ معلومو سندونو ترمخه تر ۱۰۴۸ھ ژوندے وهٔ او دَ اکبر له مرګه پس وفات شوے دے دَ اکبر پهٔ باره کښې خپله عقیده داسې څرګنده کړې ده "چون اکبر بادشاه نیز از دین پاک خیرالبشر علیه السلام انحراف نموده بود انصاف نه کرد" ۱؎ (هر کله چې اکبر بادشاه هم دَ رسول کریم صلّی الله علیه وسلّم له پاکه وینه اوړېدلے وهٔ انصاف ئې ونهٔ کړهٔ)۔ بیا وائي "اما ازین جاکه دین و ملت بے حکومت حکام اسلام تقویت نمی یابد فائده نه کرد زیراکه بادشاهی اسلام نبوده" ۲؎ (لیکن پهٔ وجه دَ دې چې دین او ملّت دَ اسلام دَ حاکمانو له حکومته بغیر تقویت نهٔ مومی (زما بحث او دلائلو څهٔ فائده ونهٔ کړه لکه چې دَ اسلام باچائي نهٔ وه) بیا وائي

لا رخنه وه دَ دین پاتې چې زمونږ باچا اکبر وهٔ
دے دَ نفس پهٔ لوری تللے او له دینه بې خبر وهٔ ۳؎

زما پهٔ خیال تر ۱۰۴۸ھ پورې دَ اکبر دَ الحاد او کفر وغیره خبرې خو پېښور ته رارسېدلې وې ولې دَ نام نهاد دین الٰهی "شهرت" لا نه ترِ دې بلکه نهٔ وه رارسېدلے۔ هسې هم "دین الٰهی" دَ اکبر له درباره بهرنهٔ وه وتلے او پهٔ شاهی دربارِیانو کښې صرف اتلسو کسانو دغه "دین" قبول کړے وه ۴؎ او دَ تورمل او بګوان داس غوندې امیران ئې پهٔ سختو مخالفینو کښې شامل وو او دَ اکبر دَ مرګ نه پس خو هسې دَ دې "دین" جنازه ووتله او هر کله چې اکبر پهٔ ۱۰۱۴ھ (۱۶۰۵ء) کښې وفات شوے

---

۱؎ تذکرة الابرار والاشرار۔ ص۔ ۱۵۷۔ ۲؎ مخزن۔ ص ۱۲۴۔ ۳؎ ایضًا ص۔ ۱۳۴۔ ۱۳۵۔ ۴؎ رودِ کوثر ص۔ ۱۲۹۔

دے او دَ مرحوم اشتیاق حُسین قریشی مطابق دَ اکبر مذهبی عجائب پرستۍ په ۱۵۹۵ء (۱۰۰۳ھ) کښې خپل انجام ته رسېدلې وې له څکه نو دَ اخون درویزه نه دا امېد ډېرې ځایه وه چې دَ اکبر له مرګه پس دې مخزن او دَ تذکرې دَ لیکونکی ئې بې ضرورته دَ هغه برخلاف تحریر او تقریر کولے.

دَ روښانیانو په خلاف دا تحریک دَ امداد تر وخته جاری وه څکه چې احداد په ۱۰۳۶ھ کښې دَ دغه لیکونکی په ژوند وفات شوے وه او دَ ۱۰۲۱ھ نه پس دَ اخون درویزه دَ څه تحریر پته نه وه لګېدلې[۲]

له بره ذکر شویو حوالو نه دَ دې خبرې واضح تردید کیږی چې پیربابا او اخون درویزه پیرروښان ته خو ملحد وئیلی دی خو دَ یو "نوی دین" دَ موجد اکبر باچا په الحاد او کفر چپ پاتې شوی دی. او څکه هرڅوک چې په حقیقت دَ خبریدلو نه پس هم دَ دې غلط الزام په صحت اصرار کوی نو هغه یا خو دَ خپلې اصلاح فکر نه لری او یا له خدایه نه وېرېږی.

بهرکیف لکه چې یو ځل مخکښې هم ما عرض کړے دے او هم دغه خبره ګران ملګری سید تقویم الحق کاکاخېل هم کړې ده اوس دَ بایزید او پیربابا ترمېنځه مناقشه ورډدول بې فائدې دی. دواړه ډلې دَ خدائې پاک په مخکښې حاضرې دی. تلك امة قد خلت لها ما كسبت و لكم ما كسبتم و لا تسألون عما كانوا يعملون. په دې سلسله کښې دَ قرآن کریم دَ دې آیت حواله ګران سید تقویم الحق کاکاخېل هم ورکړې ده او زه هم دا بحث په دغه آیت کریمه ختموم.

زه دَ دې مضمون په آخرکښې اوّل دَ محسنِ حقیقی دَ احساناتو شکریه ادا کوم چې دَ هغه په خاص فضل زه دَ دې قابل شوم چې دَ بیمارۍ

---

[۱] ده مُسلم کمیونټی او ده انډو پاکستان سب کانټی ننټ - ص-۱۴۹ - [۲] مخزن - مقدمه - ص (ل)

دَ علم دَ کمی او دَ مصروفیت باوجود مې دا کار تر سره ورسولو۔ بیا دَ هغه دَ هغو بندګانو شکریه هم په ما واجبه ده چې دَ هغوی دَ تعاون نه بغیر به دا کار تر هغه حده مکمّل شوے نه وه لکه چې اوس دے ۔ دیو بنده ګانو کښې له ټولو نه مخکښې زه دَ مرحوم دوست محمّد خان کامل مومند مرحوم نوم اخستل ضروری ګنړم چې په ټولو تحقیقی او علمی کارونو کښې ئې زما حوصله افزائی کړې ده۔ خدائې پاک دې هغوی ته دَ دې جزا په هغه جهان کښې ورکړی۔ آمین۔

دَ دوی نه پس دَ خپلو ګرانو دوستانو امتیاز احمد صاحبزاده او فاروق صاحبزاده ډېر ډېر ممنون یم چې زما ادبی کارونو ته ئې تل په درنه سترګه کتلی دی او دَ دوی دَ تعاون په وجه زه دَ دې قابل شوے یم چې ډېرو ګرانو ادبی کارونو ته لاس واچوم۔ خدائې پاک دې دوئ له هم اجر ورکړی۔ دَ ګران سید تقویم الحق کاکاخېل، پروفېسر محمد اعظم اعظم سید سیف الرحمٰن، ډاکټر راج ولی شاه خټک، پروفېسر یار محمّد مغموم، ګران آصف صمیم، اسد الله غضنفر، فرید صحرائی، سید محمود ظفر او دَ خپل کشر ورور صاحبزاده سعید احمد دَ تعاون او ملګرتیا اعتراف کوم۔

دَ کتاب ښاغلے خوش نویس ګران انوارُالحق داؤدزے او دَ کتاب چاپونکے ښاغلے مصطفیٰ کمال هم زما دَ خصوصی شکریے مستحق دی۔ خدائې پاک دې دیو ټولو ته جزائے خېر ورکړی۔ آمین

واخر دعوٰینا ان الحمد لِلّٰه ربّ العٰلمین

پېښور۔ ۷ر جنوری ۱۹۸۷ء

۷ر جمادی الاوّل ۱۴۰۷ھ

قلندر مومند

# ضمیمه الف

## خبرالبیان

| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | ایتونه | د مقصود المؤمنین مخ | کیفیت |
|---|---|---|---|---|
| ۱۹ | ۱۵ الف | یعلمون ظاهراً من الحیٰوة الدنیا.... غافلون | ۲۱۹ | |
| ۲۰ | ۱۵ ب | لا یحب الله الجهر بالسوء من القول | ۲۵۳ | |
| ۲۵ | ۱۸ الف | وما من دابة فی الارض الاعلی الله رزقها | ۲۳۰ | |
| ۲۷ | ۱۹ ب | لقد خلقنا الانسان فی احسن تقویم | ۱۳۷ | |
| ۲۸ | ۱۹ ب | الله یتوفی الانفس حین موتها....الی اجلٍ مسمّیً | ۱۵۰ | |
| ۳۲ | ۲۱ب، ۲۲ الف | اولٰئِك الذین هدی الله فبهدٰهم اقتدِه | ۱۳۳ | |
| ۳۳ | ۲۲ الف، ۲۲ب | اعلموا انما الحیٰوة الدنیا لعب ولهو.....والاولاد | ۲۱۶ | مقصود المؤمنین "اعلموا" او د "لهو" نه پس عبارت نه لری. |
| ۳۴ | ۲۲ ب | ومن اعرض عن ذکری فان له معیشةً ضنکا | ۱۹۲ | دا د پېښور په ۱۴۸ او د کابل په ۳ ب هم شته. |
| ۳۵ | ۲۳ الف | بل توثرون الحیٰوة الدنیا والاخرة خیرٌ وّابقیٰ | ۲۲۰ | |
| ۳۶ | ۲۳ ب | یا ایها الناس کلوا مما فی الارض حلالاً طیّبًا | ۱۹۱ | د پ په ۲۸۱ او د ک په ۱۵۸ الف ولا تستبعوا خطوات الشیطین |
| ۳۸ | ۲۴ ب | وما ابرّی نفسی ان النفس......الامارحم ربی | ۱۷۳ | د مقصود المومنین په ۱۹۸ مخ هم شته |
| ۳۹ | ۲۵ الف | زیّن للناس حب الشهوات من النساء......متاع الحیٰوة الدنیا | ۲۱۶ | |
| ۳۹ | ۲۵ الف | تلك الدار الاخرة نجعلها للذین لایریدون علوًّا فی الارض ولا فسادًا۔ | ۱۴۰ | د مقصود المومنین په ص ۲۱۹ هم شته |
| ۴۳ | ۲۷ ب | قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی یحببکم الله | ۲۴۱ | |
| ۴۴ | ۲۸ ب | یا ایها الذین امنوا لم تقولون مالا تفعلون | ۱۳۵ | |
| ۴۸ | ۳۱ الف | اولی لك فاولی ثم اولی لك فاولی | ۲۶۰ | |

| خیرالبیان | | | | |
|---|---|---|---|---|
| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | ایتونه | د مقصود المومنین مخ | کیفیت |
| ۵۱ | ۳۳ الف | واعبدوا الله ولا تشرکوا به شیئًا | ۱۳۸ | |
| ۵۳ | ۳۴ الف | اذا زلزلت الارض زلزالها | ۱۷۶، ۱۸۴ | |
| ۵۴ | ۳۴ ب | كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ | ۳۳۶ | |
| ۵۶ | ۳۵ ب | لمن المُلْكُ اليومَ لِلّٰهِ الواحد القهار | ۱۷۵ | |
| ۵۶ | ۳۵ ب | ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ اخرىٰ فاذا هم قيامٌ ينظرون | ۱۷۸ | |
| ۵۷ | ۳۶ الف | بِاَنَّ رَبَّكَ اوحىٰ لها | ۱۷۹ | |
| ۵۸ | ۳۶ ب | يَوْمَئِذٍ يصدرُ الناسُ اشتاتًا | ۱۸۰ | |
| ۵۹ | ۳۷ الف | جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ | ۱۳۶ | |
| ۶۰ | ۳۸ الف | اِنَّ شرَّ الدَّواب ........ لا يعقلون | ۱۴۹ | |
| ۷۲ | ۴۴ ب | المنافقون والمنافقات .... فَنَسِيَهُمْ | ۲۶۹ | خیرالبیان کښې دا ایة دوه ځل راغلے دے دوېم ځل دَ پېښور ۲۳۴ او دَ کابل په ۱۳۳ الف کښې "ان المنافقون هم الفاسقون" عبارت زیات دے۔ |
| ۷۸ | ۴۸ الف | وتوبوا الى الله جميعًا...... تفلحون | ۲۳۷ | |
| ۷۸ | ۴۸ الف۔ب | اُدْعُ اِلىٰ سبيل ......... هِيَ اَحْسَنُ | ۱۴۸ | |
| ۷۹ | ۴۸ ب | فاذا اطمأننتم.......... كتابًا موقوتًا | ۲۶۴ | |
| ۸۰ | ۴۹ الف | يا ايها الذين كتب عليكم الصيام.... من قبلكم | ۲۷۱ | |
| ۸۰ | [۴۹ الف۔ب ۱۰۵ ب۔] | وَ ويلٌ............ بالآخرة هم كافرون | ۲۸۰ | |
| ۸۲ | ۵۰ ب | المراهد.......... صراطٍ مستقيم | ۱۹۱ | |
| ۸۳ | ۵۱ الف | فاستقيموا اليه واستغفروه" | [۲۸۴، ۲۹۶ ۳۱۷] | م م کښې اتهٔ ځایه وشمارلے شهٔ۔ |
| ۸۶ | ۵۳ الف | قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى | ۲۹۱ | |
| [۸۷، ۲۱۱ ۲۵۹] | ۵۲ الف۔ ۱۲۱ ب۔ ۱۳۶ ب | واذكُرْ رَبَّكَ....... من الغافلين | ۲۹۹ | |
| ۸۸ | ۵۳ ب | وجوهٌ يومئذٍ......... ناظرةٌ | ۲۲۵ | |
| ۹۲ | ۵۶ ب | وَجَعَلَ كلمةَ ......... هى العُلْيا | ۳۴۲ | |

| خیر البیان | | | | |
|---|---|---|---|---|
| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | ایتونه | د مقصود المومنین مخ | کیفیت |
| ۹۴ | ۵۸ الف | یا ایها الذین امنو...... الی الکعبین | ۲۶۵ | |
| ۱۰۰ | ۶۱ ب | وَرَبُّكَ يَخْلُقُ......... لَهُمُ الْخِيَرَةُ | ۱۹۷ | |
| ۱۱۶ | ۷۱ ب | وَاَقِمِ الصلوٰة لِذِكْرِى | ۲۶۴ | |
| ۱۱۶ | ۷۲ الف | انّ الصلوٰة تنهٰی ..... ولذکر الله اکبر | ۲۷۰ | |
| ۱۱۷ | ۷۲ ب | الّا المصلین ........ دائمون | ۳۱۶ | |
| ۱۲۰، ۱۲۳، ۱۳۶ | ۷۶ الف، ۸۳ الف | قُلْ كُلٌّ يَعْمَل على شاكِلَتِهٖ | ۲۲۲، ۲۷۶ | |
| ۱۲۷ | ۷۸ ب | فمن كان يَرْجُوْا..... ربه احداً | ۱۶۳ | |
| ۱۳۱ | ۸۱ الف | واقیموا الصلوٰة...... ترحمون | ۲۶۴ | دا ایت د پ پهـ ۱۷۷ او د ک پهـ ۱۰۳ ب هم شته |
| ۱۳۴ | ۸۲ ب | فویلٌ للمصلّین ...... ساهون | ۲۶۹ | |
| ۱۳۶ | ۸۴ الف | للّذین احسنوا الحسنٰی وزیادةٌ | ۲۸۷، ۳۳۲، ۳۴۷ | |
| ۱۵۵، ۲۱۱ | ۹۳ ب | یا ایها الذین امنوا اذا تناجیتم.... الرسول | ۲۵۶ | |
| ۱۵۷ | ۱۲۱ ب | فاذا اطمانتم........ کتاباً موقوتاً | ۲۶۴ | دا ایت پهـ پ ۱۷۹ او ک ۴۵ ب هم شته |
| ۱۵۸ | ۹۵ الف | وَمن احسنُ قولًا..... عمل صالحًا | ۱۴۸ | |
| ۱۶۰ | ۹۶ الف | يُثَبِّتُ الله ......... وفی الاخرة | ۲۵۷ | |
| ۱۶۰ | ۹۶ الف | الیه اَدْعُوْ وَاِلَيْهِ مآب | ۱۴۰ | |
| ۱۶۱، ۲۲۴ | ۹۶ ب، ۱۲۸ الف | وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون | ۱۳۷، ۳۲۱ | |
| ۱۶۳ | ۹۷ ب | یا ایها الذین امنو..... ایامًا معدودات | ۲۷۱ | دا ایت پوره حصه د پ پهـ ۸۰ او د ک ۴۹ الف هم شته |
| ۱۶۵، ۱۷۰ | ۹۸ ب، ۱۰۱ الف | کل ذٰلك كان سَيِّئُهٗ عند ربك مكروها | ۲۷۵ | |
| ۱۶۷ | ۹۹ ب | فمن لم یجد ....... سِتّينَ مِسكينًا | ۲۷۳ | |
| ۱۶۷ | ۱۰۱ الف | فمن شهد منکم الشهر فلیصمه | ۲۷۵ | |

| خیرالبیان | | | | |
|---|---|---|---|---|
| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | ایتونه | د مقصودالمومنین مخ | کیفیت |
| ۱۷۶ | ۱۰۳ ب | واقیموا الصلوٰة ........ قرضًا حسنًا | ۲۷۸ | |
| ۱۸۶ | ۱۰۸ الف | و لله علی الناس..... غنیٌّ عن العالمین | ۲۸۲ | |
| ۱۸۷ | ۱۰۸ ب | الحج اشهرٌ......... فی الحج | ۲۸۲ | |
| ۱۸۹، ۲۵۷ | ۱۰۹ ب<br>۱۴۵ ب | الخناس الذی یوسوس فی صدور الناس | ۲۰۱ | |
| ۱۹۰ | ۱۱۰ الف-ب | واصحاب المشئمة ما اصحاب المشئمة | ۲۹۰ | |
| ۱۹۱ | ۱۱۰ الف-ب | وَاما مَنْ خافَ....... هی الماوٰی | ۱۹۹ | |
| ۱۹۱ | ۱۱۰ ب | انّ النفسَ لامّارةٌ بالسوءِ الّا ما رحم ربی | ۱۷۳، ۱۹۸ | |
| ۱۹۲ | ۱۱۱ الف | واصحاب الشمال ما اصحاب الشمال | ۲۹۰ | |
| ۱۹۸، ۲۲۸ | ۱۱۴ الف<br>۱۲۹ ب | وزیّن............ فهم لا یهتدُوْنَ | ۱۸۹ | |
| ۲۰۲ | ۱۱۶ الف | اِنّ کید الشیطان کان ضعیفًا | ۲۲۶ | |
| ۲۰۳ | ۱۱۶ ب | اِنّ الشیطن لکم عدوٌّ فاتخذوه عدواً | ۲۰۳ | |
| ۲۰۵، ۲۵۰ | ۱۱۷ ب<br>۱۴۱ ب | اِنّ الحسنات یذهبن السیئات | ۲۰۵ | |
| ۲۰۷ | ۱۱۸ ب | وَامّا........... اصحاب الیمین | ۲۹۵ | م مکښی د "فاصحاب المیمنة" په ځای "واصحاب المیمنة" غلط دے۔ |
| ۲۰۷ | ۱۱۹ الف | فاصحاب المیمنة ما اصحاب المیمنة ط | ۲۹۴ | |
| ۲۰۸ | ۱۱۹ الف | یاایّها الناس....... شفاءٌ لما فی الصدور | ۱۳۴ | |
| ۲۰۸ | ۱۱۹ ب | ثُلّةٌ من الاولین وَثُلّةٌ من الاخرین | ۲۹۴ | |
| ۲۰۹ | ۱۲۰ الف | قل یاعبادی الذین اسرفوا....... رحمة الله | ۱۸۱ | |
| ۲۱۰ | ۱۲۰ ب | قد بیّنا الایاتِ لِقومٍ یوقنون | ۱۵۰ | |
| ۲۱۰ | ۱۲۰ ب<br>۱۲۱ الف | ان الّذین یبایعونكَ....... اجراً عظیمًا | ۲۴۱ | |
| ۲۱۲ | ۱۲۱ ب | والکاظمین الغیظ والعافین عن الناس | ۳۲۳ | |

| خیرالبیان د پېښور چاپ مخ | خیرالبیان د کابل چاپ مخ | ایتونه | د مقصود المومنین مخ | کیفیت |
|---|---|---|---|---|
| ۲۱۴ | ۱۲۳ الف | (مایفعل الله بعذابکم) ان شکرتم وامنتم | ۳۰۲ | |
| ۲۱۵ | ۱۲۳ ب | فلهم عذاب جهنم ولهم عذاب الحریق | ۱۶۲ | |
| ۲۱۷ | ۱۲۴ ب | هذا بصائرُ للناس ...... یوقنون | ۱۳۳ | |
| ۲۲۰ | ۱۲۶ الف | ولا تطع من اغفلنا قلبه عن ذکرنا | ۲۰۹، ۳۱۳ | |
| ۲۲۱ | ۱۲۶ ب | یوم لا ینفعُ .......... بقلب سلیم | ۲۱۱ | |
| ۲۲۲ | ۱۲۷ الف | بل الانسان علی نفسه بصیرةٌ ولو القی معاذیرهٗ | ۳۵۲ | |
| ۲۲۵ | ۱۲۸ ب | ولا تکونوا کالذین نسُوا الله فانسٰهم انفسهم | ۳۱۴ | |
| ۲۲۸ | ۱۳۰ الف | فاما الذین امنو فزادهم ایمانًا | ۱۵۴، ۲۹۳ | |
| ۲۲۸ | ۱۳۰ الف | لیستخلفنهم .......... خوفهم امنًا | ۱۴۰ | |
| ۲۳۵ | ۱۳۳ ب | فنجعل لعنة الله علی الکاذبین | ۲۵۴ | |
| ۲۳۶ | ۱۳۴ الف | براءةٌ من الله ....... من المشرکین | ۲۴۳ | |
| ۲۳۷۰ | ۱۳۵ الف | قل هل ننبئکم ....... یحسنون صُنعاً | ۵۰، ۲۴۹ | |
| ۲۳۸ | ۱۳۵ ب | انّ علینا جمعه وقرانه ....... فاتبع قرانه | ۱۳۵ | پ کښې د غلطۍ په وجه "فاتبع قرانه" نه دے لیکلے شوے |
| ۲۳۹ | ۱۳۶ الف | فمن کان یرجوا ........ ربه احدًا | ۱۶۳ | |
| ۲۴۰، ۲۵۶ | ۱۳۲ الف، ۱۴۵ الف | من کان فی هٰذه اعمی ......... اضل سبیلا | ۱۹۴ | |
| ۲۴۰، ۲۹۵، ۳۰۰ | ۱۳۲ ب، ۱۶۵ الف، ۱۶۷ ا-ب | یا ایها الرسول ......... فما بلغت رسالته | ۱۴۵ | |
| ۲۴۴ | ۱۳۸ الف | یا ایها الذین امنوا ....... اصیلًا | ۲۹۹ | د پ ۲۹۷ او ک ۱۶۵ ب کښې د "اصیلًا" نه پس تر "الی النور" لیکلے شوے دے۔ |
| ۲۴۵ | ۱۳۹ الف | واتبع سبیل من اناب الیّ | ۲۹۸ | |
| ۲۵۰ | ۱۴۱ ب | ولکلٍ درجاتٌ مما عملوا | ۱۳۶ | |
| ۲۵۲ | ۱۴۲ ب | والذین اهتدوا ......... واٰتاهم تقوٰهم | ۲۹۷ | |
| ۲۵۵ | ۴۴ ب | ولقد ذرأنا لجهنم ........ هم الغافلون | ۲۰۹، ۳۱۴ | |

## تقفه

| کیفیت | دَمقصودالمومنین مخ | ایتونه | خیرالبیان دَکابل چاپ مخ | خیرالبیان دَپېښور چاپ مخ |
|---|---|---|---|---|
| | ۳۰۹ | قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّی وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖ اَحَدًا | ۱۴۷ الف | ۲۶۰ |
| | ۳۳۳ | یا ایها الذین امنوا ....... اِلَیْهِ الوسیلَةَ | ۱۵۳ الف | ۲۷۲ |
| | ۳۳۵ | کل شیءٍ هالكٌ اِلّا وجهَهٗ | ۱۵۳ ب | ۲۷۳ |
| | ۳۲۸ | وَنحن اقرب الیه من حبل الورید | ۱۵۴ الف | ۲۷۳ |
| | ۳۴۷ | فانزل الله سکینته ....... کلمة التقوی | ۱۵۶ ب | ۲۷۹ |
| | ۱۸۹ | وَعصٰی اٰدمُ ربَّهٗ فغوی | ۱۵۸ ب | ۲۸۲ |
| | ۱۹۰ | ثُمَّ اجتبٰه ربّه فتاب علیه وَهدی | ۱۵۸ ب | ۲۸۳ |
| | ۱۳۶ | فَنِعْمَ اَجْرُ العاملین۔ | ۱۶۴ ب | ۲۹۴ |



ضمیموکښې دَ استعمال شویو مخففاتو تفصیل دا دے:-

پ۔ دَ خیرالبیان دَ پېښور چاپ

ک۔ دَ خیرالبیان دَ کابل چاپ

مم۔ مقصودالمومنین

# ضمیمه ب

| خیر البیان: د پېښور چاپ مخ | خیر البیان: د کابل چاپ مخ | حدیثونه | د مقصود المومنین مخ | کیفیت |
|---|---|---|---|---|
| ۴ | ۵ ب | کل امرذی بال لم یبدا باسم الله فهو ابتر | ۲۶۱ | |
| ۶ | ۷ الف | لا احصی ثنا علیك انت کما اثنیت علی نفسك | ۱۲۸ | |
| ۱۹ | ۱۵ ب | من انقطع الی اللهِ کفاه...... وکله الله الیها | ۲۱۷ | |
| ۲۰ | ۱۵ ب | وجبت محبته الله علی من اُغْضِبَ فحلم | ۳۲۴ | |
| ۳۸، ۱۹۱ | [۲۴ ب<br>۱۱۰ ب] | شر النفس اشد من شر الشیطان | ۱۹۸ | دَ مقصود المومنین په ۲۰۰ بیا راغلے دے |
| ۴۰ | ۲۵ ب | الکیس من دانَ نفسه وعمل.... علی الله مغفرة | ۱۵۳ | |
| ۴۲ | ۲۷ الف | طلب الله فرض قبل کل فریضة۔ | ۳۲۰ | |
| ۴۳، ۸۳ | ۲۸ الف<br>۵۰ ب-۵۱ الف | ملاك الدّین الورع والورع سید العمل | ۲۷۶ | خیر البیان کښې دوه ځایه راغلے دے۔ |
| ۴۴ | ۲۸ ب | اشد الناس عذابًا یوم القیامته عالمٌ جاهلٌ لاینفعهُ الله بعلمه | ۱۳۶ | مقصود المومنین "عالمٌ خاملٌ" راوړے دے۔ |
| ۴۵ | ۲۹ الف | الموت اشد من الطبخ...... سبعین درجة | ۱۶۱، ۱۶۲ | م م کښې دَ مناشر په ځائې مُنشار او سبعین په ځائې "تسعین" دے۔ |
| ۴۷ | ۳۰ ب | من یذکر الله وقلبه ساه عن الله فالله خصمه یوم القیامة | ۳۶۷ | |
| ۶۳ | ۳۹ الف | الجنةُ للمطیع وان کان عبدًا.... سیدًا قریشیاً | ۳۵۸ | |
| ۷۹ | ۴۸ ب | المومن لایکذب والکذاب (لیس فی) امتی | ۲۵۸ | |
| ۸۰، ۱۱۲ | [۴۹ الف<br>۷۱ ب] | لا صلوٰة الّا بحضور القلب | ۲۶۶ | |
| ۸۰ | ۴۹ ب | لا ایمان لمن لا صلوٰة له ولا صلوٰة لمن لا زکوٰة له | ۲۸۰ | م م کښې متن کښې دَ ورومبی صلوٰة په ځائې "صدقة" دے |
| ۸۵ | ۵۲ ب | واللهُ طیب لایقبل الا الطیب | ۲۹۲ | م م کښې دَ "والله" په ځائې "ان الله" دے۔ |
| ۸۷ | ۵۳ الف | انّ الشیطن جاثم........ وسوس | ۲۰۳ | م م کښې دَ "الله" نه پس "تعالیٰ" هم دے۔ |

| خيرالبيان | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دَ پېښور چاپ مخ | دَ کابل چاپ مخ | حدیثونه | دَمقصود المومنين مخ | کیفیت |
| ٨٧ | ٥٣ ب | من اراد ان يجلس ...... اهل التصوّف | ٢٤٦ | |
| ٨٩ | ٥٤ ب | ما نهٰكم عن ذكر الله تعالىٰ فهو حرام | ٢٢٧ | |
| ١١٦ | ٧٢ الف | لعن الله ........ حضور قلبه | ٢٦٦ | داحديث خيرالبيان کښې پهٔ دې شکل هم راغلے دے "وليس فى قلبه حضور الرحمٰن" پ ١٣٢- ک ٨١ ب- |
| ١١٧ | ٧٣ ب | المنتظر الى الصلوٰة كانه فى الصلوٰة | ٣١٦ | |
| ١٢٩ | ٧٩ الف | لا تجزى الصلوٰة ........ والسجود | ٢٦٦ | |
| ١٣٠ | ٨٠ الف | اذا قُمْتَ الى الصلوٰة ...... كلّها | ٢٦٥ | |
| ١٣١، ١٤٨ | ٨١ الف، ٨٩ ب | فصلّوا كما رايتمونى اُصلّى | ٢٦٥ | |
| ١٤٥ | ٨٨ ب | افضل العباد عند الله من يذكر الله كثيراً | ٣٠٠ | خيرالبيان کښې دېر ځل راغلے دے- |
| ١٤٨ | ٨٩ ب | فصلّوا كما رايتمونى ......... مردودة | ٢٦٥ | دَ دې حديث يوه حصه دَ خيرالبيان پهٔ پ ١٣١ هم ده- |
| ١٦٠، ١٨٧ | ٩٦ الف، ١٠٨ ب | انّ الله امر المومنين بما امر به المرسلين | ٢٧٠ | |
| ١٦٣ | ٩٨ الف | للصائم فرحتان فرحةٌ عند الافطار.... لقائى | ٢٧٢ | م م کښې دَ افطار پهٔ ځائې "فطره" او دَ لقائى پهٔ ځائې "لقاء ربه" دے- اصل حديث کښې "لقاء الرحمٰن" دے- |
| ١٦٦ | ٩٨ ب | الصوم جنّةٌ من النار كجنّة احدكم من القتال | ٢٧٢ | |
| ١٧١ | ١٠١ الف | اذا دخل رمضان ........ الشياطين | ٧٦، ٢٧٥ | |
| ١٧٩ | ١٠٥ الف | من وجبت ........ فهو ملعون | ٢٨٠ | |
| ١٨٨ | ١٠٩ الف | لا سبيل الى الله الا بالبلا | ٢٨٨ | خيرالبيان کښې دَ "ملعون" نه پس دَ "وملعون فى النار" الفاظ هم شته- |
| ١٩٠ | ١١٠ الف | وعن عبد الله بن عمر........ ابدًا | ٢٩٠، ٢٩٥ | |
| ٢١٩ | ١٢٥ ب | انّ من العلم كهيئة المكنون المخزون لايعلمهٗ الا العلماء بالله- | ١٤٠، ٣٢١ | م م کښې يو ځائې "الا العلماء" او بل ځائې "الا اهل المعرفته" راغلے دے- |
| ٢٢٦ | ١٢٩ الف | العبد مخير بين الحسنات والسيات | ١٩٨ | |
| ٢٢٨ | ١٣٠ الف | لا يستقيم ايمان احدكم...... يستقيم عمله | ١٦٠، ٢٥٥ | |

## تفح

### خیرالبیان

| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | حدیثونه | د مقصودالمومنین مخ | کیفیت |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ٢٣٠ | ١٣١ الف | من تعلّم ............ بصورة الخنزیر | ١٤٢ | |
| ٢٣٢ | ١٣٢ الف | دولة المومن .......... عما نهوا عنه | ٢٥٨ | م م کښې د "نهوا عنه" په ځای "نهی عنه" دے |
| ٢٤١ | ١٣٦ ب | یا فاطمه ............ بغیر عمل صالح | ١٦٣ | |
| ٢٤٢ | ١٣٦ ب | یا امتی لا نتکی بشفاعتی بغیر طاعتی | ١٦٣ | |
| ٢٤٣ | ١٣٧ ب | اللهم احینی مسکینًا ....... زمرة المساکین | ٣٤٨،٣٤٥ | |
| ٢٤٨ | ١٤٠ الف | خیر الذکر الذکر خفی وخیر الرزق ما یکفی | ٣٠٠ | |
| ٢٥٦ | ١٤٥ الف | الشریعة کمثل اللیل ...... فوق الشمس شیءٌ | ٢٨٣ | م م متن کښې هر ځای "مثل" او حاشیه کښې "کمثل" دے۔ |
| ٢٧٢ | ١٥٣ الف | من لم یکن للوصال اهلًا ..... فکل احسانه ذنوب | ٣٣٣ | دا شعر د نثری عبارت په شکل کښې د پ په ٢٧٤ او د ک په ١٥٤ ب دوباره راغلے دے۔ |
| ٢٩٥ | ١٦٥ الف | دلیل الانبیاء صحته الایمان | ١٣٥ | |

# ضمیمه ج

### خیرالبیان

| د پېښور چاپ مخ | د کابل چاپ مخ | قول | د اولیاؤ اقوال: د ولی نوم | د مقصودالمومنین مخ | کیفیت |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ٣٦ | ٢٣ ب | کُلوا الحلال ........ الجبین | حضرت علیؓ | نشته | د م م په ٣٥٤ یو بل قول شته |
| ١٠٦ | ٦٥ ب | اصول التوحید ........ جهل عنه | سراج (؟) | نشته | |
| ١٢٨ | ٧٩ الف | کلمة بسم الله ....... یوم النشور | حضرت امیرالمومنین علیؓ | ٢٦١ | |
| ١٢٨ | ٧٩ الف | لا صلوٰة الا بفاتحة الکتاب | امام شافعیؒ | ٢٦٣ | |
| ٢٨٣ | ١٥٨ ب<br>١٥٩ الف | شقی ابلیس ......... رحمه الله | محمد الدینوری | ١٨٣ | |
| ٢٩٦ | ١٦٥ ب | انّ الله نزّل ......... دراسته | حسن بصری | نشته | په ٢٨٥ م م یو بل قول شته |

# مراجع

دَ قرآن کریم او دَ مختلفو تفسیرونو، دَ احادیثو له کتابونو او دَ امت دَ اولیاء او صلحاؤ دَ لیکونو نه علاوه له دیو کتابونو فائده اخستې شوې ده.


۱ ادبی ښېړنې - محمد صدیق روهی - کابل

۲ ارمغان خوشحال - پېښور

۳ اسلامی دائرة المعارف (اُردو) - لاهور

۴ اکبرنامه - (فارسی) - دَ ابوالفضل

۵ اکبرنامه (ترجمه دَ بیوریج)

۶ انګرېزی انسائیکلوپیډیا آف اسلام

۷ اورینټل کالج میګزین - فروری ۱۹۵۵ - لاهور

۸ بایزید روښان - دَ مرحوم قیام الدین خادم. کابل

۹ تاریخ مرصع - دَ افضل خان ختک - دَ کامل مرحوم نوټونو سره.

۱۰ تحفة الاولیاء - دَ شمس العلماء میر احمد شاه رضوانی

۱۱ تذکرة الابرار والاشرار - پېښور

۱۲ تفسیر یسیر - دَ مولوی مراد علی صاحب - پېښور

۱۳ تقویم تاریخی - عبدالقدوس هاشمی - کراچی

۱۴ توزک جهانګیری - دَ الېګزنډر راجرز انګرېزی ترجمه

۱۵ حالنامه - دَ پښتو اکېډیمی ټاپ شوې نسخه

۱۶ خیر البیان - چاپی نسخه - پېښور

۱۷ خیر البیان - عکسی نسخه - کابل

۱۸ دبستان مذاهب (فارسی)

۱۹ دبستان مذاهب - انگریزی ترجمه

۲ دَ پښتو ادبیاتو تاریخ - دوهم ټوک دَ حبیبي مرحوم

۲۱ دَ پیر روښان په سلسله کښي دَ اخترخان دَ ډاکټریټ مقاله (دَ محترم تقویم الحق کاکاخیل په شکریه)

۲۲ دربار اکبری - دَ شمس العلماء محمد حسین ازاد

۲۳ دَ روښانیانو ملّی نهضت - دَ اسلانوف (ترجمه)

۲۴ دَ روښان یاد - دَ ګڼو کسانو مقالې - کابل

۲۵ دی مسلم کمیونټی اودَ انډو پاکستان سب کانټی نینټ - دَ اشتیاق حسین قریشی مرحوم

۲۶ دَ هند دَ کتابخانو پښتو قلمی نسخې - دَ زلمی هوادمل

۲۷ دیوان خوشحال خان خټک - بزبان افغانی و فارسی - دَ هوتی چاپ

۲۸ روحانی رابطه - روحانی تړون دَ قاضی عبدالحلیم اثر افغانی

۲۹ رودکوثر - دَ شیخ محمد اکرام -

۳۰ روښانی رساله - کابل

۳۱ سوات نامه - (تاریخ مرصع)

۳۲ صراط التوحید - دَ بایزید روښان - پېښور

۳۳ عهدِ بنګښ - دَ مفتی ولی الله فرخ آبادی - کراچی

۳۴ کلیاتِ خوشحال - دَ کامل مرحوم دَ مقدمې سره

۳۵ مخزن - دَ پروفېسر سید تقویم الحق کاکاخیل له مقدمې سره

۳۶ مقامات قطبیه و مقالاتِ قدسیه - دَ حضرت عبدالحلیم صاحبؒ

۳۷ مقصود المؤمنین - دَ دکتور میرولی المسعودی دَ تصدیر سره

۳۸ مکتوبات امام ربانی - لاهور

۳۹ مناقب غوثیه (قلمی) له محمد صادق شیبانی سعدی قادری

۴۰ نتائج الحرمین (قلمی) له مولینا محمد امین بدخشی (ډاکټر حنیف په حواله)

۴۱ دَ لنګوسټک سروے اوانډیا دَ ګریرسن

۴۲ یوسف زی پټهان - دَ مرحوم الله بخش یوسفی

بسم الله الرحمٰن الرحیم (١)

یابایزید - اکتب علیٰ (٢) بدایة الکتاب بتعظیم الحروف بسم الله تمام- (٣)
اِنّی لا اضیع (٤) اجر الذین یکتبون (٥) ثم یخربون (٦) حرفا او نقطةً ثمّ
یکتبون لاجل صحیح البیان-

یا بایزید- بنویس بر آغاز کتاب بہ بزرگی و بہ درستیٔ حروفھا بسم الله
تمام- من گم نمی کنم مزد آں کساں کہ می نویسند باز خراب می کنند
یک حرف یا نقطه- باز می نویسند برائے درست شدن بیان-

او بایزید- وکښه پهٔ آغاز دَ کتاب پهٔ ښو درستو (٧) حرفونو بسم الله
تمام- زهٔ نهٔ ورکوم مزدوری دَ هیغو کسانو چې کښی بیا ئې ورانوی
(٨) یو حرف یا تکے بیا ئې کښی چې درستیږی بیان-

رے بایزید- لکھ کتاب کے آغاز (٩) کے بیان جن کے سارے اکھر
سھن بسم الله تمام- میں نہ گنوانوگا (١٠) مزدوری انھن کی جے لکھیں
(١١) پھن بگاڑن اکھر کہ (١٢) تمکنی پھن لکھیں اس کارن جے (١٣) سھی
ہوئے بیان- (١٤) -

یا بایزید- اکتب الحروف التی تفسر بکل لسان لاجل منفعت الانسان (١٥)
انت عالم انّی لا اعلم بغیر حروف القرآن یا سبحان (١٦)

یا بایزید- کتابة الحروف علیك ظهر- (١٧) وَ علم اسماء الحروف علیَّ-
(١٨) اُکتب بامری بمثل حروف القرآن وَ ضعْ علیٰ بعض الحروف
نقطةً او جزمًا او علامة اخریٰ لاجْل ان یعرف الانسان- اکتب
بعض الحروف اربعا اربعا- عیان- سیعلمون اذا یقرأون بیخرجون
النفس مع بعض اخر الحرفین انسان (١٩)

یا بایزید - بنویس آں حروفہا کہ بسازند بھر زبان برائے منفعت ادمیان

توئی دانا - من نمی دانم بجز حروفھائے قرآن یا سبحان -

یا بایزید - نوشتن حروفھا بر تو است و نمودن و آموزانیدن نامہائے

حروف برمن است - بنویس بفرمان من ہمانند حروفھائے قرآن و

بنہ بر بعض حروفھا نقطہ یا جزم یا دیگر نشان (۲۰) برائے آنکہ

حروفھا بشناسند آدمیان - بعض حروفھا چھار چھار بنویس - عیان -

زود بیاموزند چوں بخوانند و دم بیرون کشند با بعض دو حروف بہ

سینہ آدمیان -

او بایزید - وکښه هغه حرفونه چې په هره ژبه سازېږي دَفائدې

دَ پاره دَ آدمیانو - ته دانا یې له هره څیزه (۲۱) ما نه زده بیرون

حرفونو دَ قرآن او سبحان -

او بایزید - دَ حرفونو کښل په تا دی - دَ حرفونو څرګندول و نمون

وښوول په ما دی (۲۲) وکښه زما په فرمان په مانند دَ حرفونو دَ

قرآن او کېږده په ځنې حرفونو ټکی یا غوندی یا نورې نښانې بې

له حرفونو- ژر به وپېژنی آدمیان - ځنې حرفونه څلور څلور وکښه

عیان - ژر به ئې زده کا چې ئې لولی - ساه ورسره باسی له دوه و

وستری حرفو (۲۳) سره آدمیان -

رے بایزید - لکھ (۲۴) وہ اکھر جے سب جیب سھن جڑ تھیں

اس کارن جے نفع پاون آدمیان - توں سجان (۲۵) ہے کچ کا میں نابیں

جانتا بن قرآن کے اکھر رے سبحان -

رے بایزید - لکھنا اکھر کا تجھ سے ہے ، دکھلاونا اور سکھلاونا مجھ

سے ہے لکھ میرے فرمان سھن جیوں اکھر قرآن کے پھن کے پھن -

لکھ کوئی اکھر اوپر (۲۶) تمکنا کے جزم کے اور نشان جے وہ اکھر
پھچانھن آدمیان - لکھ کوئی اکھر چار چار عیان - ورھال سکھن جے
پڑھن تو سانس نکالن کوئی دویں بچہ اکھر سھن آدمیان بسم اللہ
الرحمٰن الرحیم - الالف کان احد عیان - الف یکے ھست عیان - الف یو
دے عیان - الف ایک ہے عیان - ب بابابہ - پ پاپاپہ - ت تاتاتہ -
ٹ ٹاٹاٹہ - (۲۷) ث ثاثاثہ - کان بیان - یعنی ھست بیان - دے بیان -
ہے بیان - ج جاجاجہ - چ چاچاچہ - ݗ ݗاݗاݗہ - ح حاحاحہ -
خ خاخاخہ - یقراؤن انسان - (۲۸) یعنی بخوانند آدمیان - لولی دي
آدمیان - پڑھن آدمیان - د دا دا دہ - ڈ ڈا ڈا ڈہ - ڊ ڊا ڊا ڊہ -
ذ ذا ذہ - ڏ ڏا ڏا ڏہ - یعرفون یعنی بشناسند - ودي پېڑنی -
پھ تا دي وی اعلام پھچانھن توں جان - (۲۹) ر را را رہ - ڑ ڑا ڑا ڑہ -
ز زا زا زہ - ڙ ڙا ڙا ڙہ - قدکان عیان - یعنی تحقیق ھست عیان -
رښتیا دی عیان سچ ہے عیان - پس سا سا سہ - ش شا شا شہ -
ښ ښا ښا ښہ - ص ض ط ظ - یقرؤن باللسان - یعنی بخوانند
بزبان - لولی دي پھ ژبہ - پڑھو جیب پھن از زبان - ع عا ، غ غا
ف فا ، ق قا ، ک کا کا ک (۳۰) ګ ګا ګا ګ - ڳ ڳا ڳا ڳ - (۳۱) یفقھون
بھا عاقلون انسان (۳۲) یعنی بفھمند بدان عاقلان آدمیان - پھ
دا دي وپوھېږی عاقلان آدمیان - اسے سمجھیں سُجان آدمیان -
(۳۳) ل لا لا لہ - م ما ما مہ - ن نا نا نہ - ڼ ڼا ڼا ڼہ (۳۴) و واواوہ
ھ ھا ھا ھہ (۳۵) ی یا یعلمون تمام - یعنی بدانند تمام - زدہ
دي کا تمام - سکھن تمام (۳۶) بسم اللہ الرحمٰن الرحیم - بدایۃ الکتاب
(۳۷) یا بایزید - اکتب حمدی حمداً کثیراً یبدو رضائی اذا قال من

حمدی انسان۔ انظر یسبحُ لی ما فی سمائیَ وَ ما فی ارضی لیس من شیءٍ الا یسبحُ بحمدی فلتومن بھذا الکلام۔ (۳۸) اما رجل امی کیف اکتب حمدك حمداً کثیراً۔ یا سبحان۔ یا با یزید۔ اکتب بقدر علمك۔ تمام۔ (۳۹) انت عالم و خالق المخلوقین و حافظ کل مخلوق بحفظه قبل الاظھار (۴۰) اِذا صارَ بعددِ جمیع المخلوقات بحار ثم صار البحار مدادا وصار اکثر منھا (و صار الکتاب ۴۱) بعدد سبعین الف کاتب او صار اکثر منھا، لکل کاتب سبعون الف قلم لاُ یکتب و لا یتم کلام حمدك وَ لَوْ بسبب الکتابة انکسر کل الاقلام وجف المداد۔ تمام۔ (۴۲) او کان حمدك حمدًا کثیراً بعدد کل معلوم لک۔ یا سبحان۔ اکتب فی ھذا الکتاب صلوٰة علی خاتم الانبیاء و علی اله ما کان جعلنا و رحمته و برکته علیك و علی آل و احباء واتباعك فِی ھذا الزمان۔ اعلم (۴۳)

بنام خدائی (که) بخشائنده است مهربان یعنی بنام خدای است عیان آغاز کتاب۔ یا بایزید سپاس و ستائش من بنویس که خوشنودئی من پیدا می شود چوں مرا ثنا می گوئند ادمیان۔ بنگر۔ مرا تسبیح می گوئند آنچه در آسمانها وزمین من است۔ نیست از چیزے مگرکه مرا تسبیح می گوید پس باورکن بایں کلام من مرد امیم چگونه بنویسم ثنا و ستائش توبسیار۔ یا سبحان۔ یا بایزید۔ باندازهٔ دانش خود بنویس تمام۔ توئی دانا و خالق مخلوقان و هستی (بر۴۴) مخلوقان را نگاه بان که نگاه داشتی ایشان را پیش از پیدا شدن ایشان۔ چوں شوند به شمار هر(؟) مخلوقات دریاها۔ پس هر دریا سیا می شود یا زیادت تر شوند

ازین بشمار هفتاد هزار کاتبان یا زیادت تر شوند ازین - هرهر کاتب را هفتاد هزار اقلام نوشته نه شوند و تمام نگردند سخنان ثنا و صفت تو - اگر بسبب نوشتن همه قلمها بشکنند و سیاهی شود تمام - یا ثنا و ستائش تو بسیار اینست که بشمار آنچه مر ترا معلوم است - یا سبحان -

بنویس درین کتاب صلوٰة بر خاتم انبیاء محمد علیه السلام و بر همه پیغامبران و بر آ (نا) نکه (۴۵) پس روان ایشان (هستند) (۴۵) کردم رحمت و برکت بر تو و بر پس روان و محبان و فرمان برداران تو درین زمانه - تو بدان -

بسم الله الرحمٰن الرحیم

پهٔ نامهٔ دَ خدائ چې بخشائنده دے مهربان - پهٔ نامهٔ دَ خدائ (چې) پهٔ خدائ دے عیان - اغاز دَ کتاب -

او بایزیده - زما ډېر ستر صفت وکښه - خوښی مې پیدا شی چې زما ډېر ستر صفت وائی ادمیان - کوره - زما تسبیح وائی چې زما پهٔ مزکه کښې دی (یا) پهٔ اسمان - نشته هیڅ بیرون چې زما تسبیح وائی ته باور کړه پهٔ دا بیان -

زهٔ عاجی مېړهٔ یم (۴۶) پهٔ څهٔ ستا ډېر صفت وکښم او سبحان!؟ - او بایزیده - دَ خپلې پوهې پهٔ اټکل ئې وکښه - تمام -

تهٔ دانا یئې او خالق یئې دَ مخلوقان - تهٔ ژغروے یئې دَ وارهٔ مخلوقان - او ژغرد (دې) چې لا دوئ پیدا شوی نهٔ وو - (۴۷) کهٔ دریابونه شی څو پهٔ ګنډر (۴۸) دَ مخلوقان - ترو وارهٔ دریابونه نوری شی یا کهٔ لهٔ دغو پهٔ ګنډر زیات شی - اویا زره کاتبان

یا کھ لھ دغو پھ گنہدار زیات شی - دَ ھر کاتب اویا زرہ قلمونہ شی بې گمان وکښې تمامې بہ نھ شی ستا دَ ستري ثنا (۴۹) خبرې کھ دَ کښلو پھ بھنہ قلمونہ مات شی او توری شی تمام - (۵۰) - یا ستا ډېر ستر صفت ھوی دے پھ گنہدار چې پھ تا معلوم دے - او سبحان -

وکښہ پھ دا کتاب صلوة پھ خاتم دَ انبیاء چې محمدؐ دے (۵۱) او پھ وارہ پیغامبرانو چې دَ دوئ دی پس روان - و مې کھ رحمت او برکت پھ تا او ستا پھ پس روانو پھ محبانو چې وې نغوږی (۵۲) پھ دا زمانہ - پھ تا دې وی اعلام -

او با یزید - (۵۳) وکښہ خیرالبیان چې ئې لولی ادمیان (۵۴) پھ ھغہ ھسی الحان چې بہ ئې لوست سورت دَ الرحمٰن (۵۵) زھ عاجز بندہ عاصی یم - خپسروتا وتہ گنھکار او بدکار گنم لھ وارہ گنھکارانو لھ بدکارانو دَ محمدؐ پھ امت کښې علیہ السلام - ولې امیدواری مې ستا وَ ښېگړې و رحمت و بخشش وتہ دہ - را وبخښہ وَ ما وتہ او زما وَ یارانو و فرمان بردارانو و محبتی وتہ گناھان - بل مې زړہ قرار شی او ستا وَ کلام وتہ وزگار شی او سبحان -

او با یزید - کھ نھ غوارې یا غواړی ستا یاران چې دې نغوږی (او) محبتی کسان (۵۶) زما امرنکاری ترو بویہ چې وجاروځې نھ او ستا یاران چې دې نغوږی او محبتی دې لھ وارہ گناھانو - زھ خدائې زورور کړونے بخشائندہ دانا یم لھ ھرہ څیزہ - بخپلې دانائۍ پھ توانائۍ گنھکار نیکوکار بلبخت

نیک بخت کړم او نیکوکار ګنهګار نیک بخت بلبخت کړم دَ دیو
دَ چار په بهنه - پهٔ تا دي وی اعلام -
او بایزید ما رښتیا وبخښل وَ تا وته او ستا وَ یارانو ومحبانو
او چي دي نغوړی وَ هغو وته دَ توبې په بهنه وړاندیني
ګناهان - ولې تن دي ژغوری - ترو منع کړه یاران محبان او
هغه چې دي نغوړی لهٔ دغه پسه لهٔ نورو ګناهونو - ترو
یُ لېږه چې ښیګړه کا مدام -
تا ړده چي پهٔ ما پورې مسخرې کا او راپورې خاندی زما
پهٔ کښل او زما پهٔ لوستنې پورې ځني ادمیان (۵۷) را حواله
کړه وَ ما وته هغه چې زما پکښې دېره ښېګړه او ستا
خوښي ده - نهٔ مسخرې کا نهٔ راپورې خاندی ساه کښې
(۵۸) ادمیان - او سبحان -
او بایزید - شرم دي نشته چي درپورې مسخرې کا یا درپورې
خاندی او نهٔ نقصان دَ ایمان - ګوره هسې یُ مسخرې کړې
او خندل یُ زما پهٔ پیغامبرانو پهٔ اولیاګانو پورې لهٔ تا
وړاندې ځني آدمیانو - (۵۹) او بایزیدا - وَ تا مې عقل درکړه - و
دې لیداه و دي پېژاندهٔ دَ دهٔ پهٔ ړنا رښتیا دروغ ، امر
نهی ، حلال او حرام - ترو مې ننویست ستا پهٔ زړهٔ کښې ډار
امید واری - پهٔ هغه بهنه دي کړه چار دَ اسلام - دَ چارې
پهٔ بهنه دي بیا لاړ موندهٔ او هر مقام - ترو حکمت مې
درکهٔ او اجتهاد او نور دَ الهام - وَ هر چا لره چي مې حکمت
ورکهٔ وَ هغه مې دېره ښېګړه ورکړه عیان -

او بايزيد - که زما خوښې غواړې او ډېره ښېگړه، وکښه خيرالبيان
زه اروم په دا زمانه له ځني ادميانو خبرې دَ دنيا او هر
چې پکښې دی، خبرې دَ کرلې دَ سود (۶۰) او بازرگانۍ او دَ
ځناورانو او بېهوده خبرې او دروغ - دَ کينې دَ غېرت دَ مېړځه
يا نور نور رنگارنگ خبرې سخنان - دَ بهښت خبرې او هر چې
پکښې وی نعمت ئې (۶۱) دَ رنگارنگ طاعت يا دَ دوزخ خبرې
او هر چې پکښې دے عذاب ئې په بهنه دَ رنگارنگ گناهان
(۶۲) ياده وی زما نوس وَ ما وته لذت شهوت په ښېگړې ئې
را ښرگندوی شېطان او وَ هغو چارو وته مې لېږی (۶۳) لښکر
دَ شيطان - پېدا کېږی وَ زما زړه وته انديښنه دَ دنيا دَ
اخرت بيا بيا او نه خلاصيږی زما زړه له ښنتی دَ نوس
دَ شېطان (۶۴)
پخو وکښم (۶۵) خير البيان په دا زمانه او سبحان -
او بايزيد وکښه زما په عنايت خيرالبيان - نه ئې کښل (۶۶)
پېغامبرانو نه اولياگانو کتابونه له تا وړاندې او نه ئې کړه
بندگی، چار دَ ښېگړې، زما بې عنايته بې توفيقه - په تا دې
وی اعلام -
راوښيه و ما وته (۶۷) دستور او ادب دَ کتابو دَ کښلو او سبحان -
او بايزيد - دستور او ادب دَ کتابو دَ کښلو هغه دے چې ئې وکښه
زما په توفيق په ښکلې توگه (۶۸) په ورکولو دَ انديښنې او
دَ زړه په حضوری او په نه نغته (۶۹) دَ نوس دَ هوس او
دَ شېطان او دَ فائدې دَ پاره دَ ادميان (۷۰)

ګوره - ما کتابونه له تا وړاندې پېغامبرانو وته استولی وو چې پکښې وه بیان دَ رښتیا دَ دروغو دَ کړو دَ نکړو دَ حلالو دَ حرامو په ژبه دَ خپل قام - زه به دروښیم وَ تا وته په خپل قدرت په څلور ژبې خیر البیان - څه شو که ته له دغو وړاندې بې خبره وې (۷۱) له خیر البیان - ګوره زما او زما دَ انبیاء و اولیاء رښتیا دے کلام (۷۲) زما او زما دَ انبیاء دَ اولیاء کلام مې کړے دے خیر البیان -

وکتبه زما او زما دَ انبیاء و اولیاء ګفتار په دا کتاب - که دَ دیو وهنا یو شکل وی زما له کلامه ترو ئې لوله په جار کړه ترو په دا پند ورکړه و ترسنده ادمیان -

ته مې لار ښوولے (۷۳) کړې چې رښتینې لار وروښیه لکه پېغامبران و ادمیان -

کومه ده رښتینې لار - دا (و) ښیه وما وته په خپل فرمان او سبحان - (۷۴)

او بایزید - رښتینې لار دَ انبیاء ده - دَ انبیاء لار هغه ده چې زما وپېژندګلی وته بولی ادمیان -

مرګ به ورشی وَسرې وته ننګهان - (۷۵) نشته دَ سرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

ګوره دَ دغه زمانې ادمیان غواړی دنیا او هر چې پکښې وی پرې (۷۶) مشغول دی ډېر ادمیان څنې په کرل یا په بازرګانۍ یا په پوندګلۍ یا په ترکش بندۍ څنې په نورو نورو چارو مشغولی کا ادمیان -

مرګ به ورشی وسرې وته ننګهان نشته دَ سرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

څنې سرې هسې ګڼې چې لوئ (۷۷) عزیزی په

ډېر مال په زاوزاد یا په ډېره وینا چې بد بېهوده په زوره وائي - نه ده زما خوښې (۷۸) چې بد بېهوده په زوره وائي ادمیان -

مرګ به ورشي وَسرې وته ننګهان - نشته دَسرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

یا هسې کړني چې لوئ (۷۷) عزیزی په ښته ده دَ قهر په راتلل (۷۹) ده دَ تیغ په وهل ده چې وژني ادمیان - ګوره دا هسې چار ده حرام -

مرګ به ورشي (وَسرې وته (۸۰)) ننګهان - نشته دَسرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

یا هسې کړني چې لوئ (۷۷) عزیزی په زورکاری په غلا په طمع په کاسیری په نادانی وه په ګناهان - (۸۱)

مرګ به ورشي وَسرې وته ننګهان - نشته دَسرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

یا هسې کړني چې لوئ (۷۷) عزیزی په اسراف (۸۲) په وزانی په بدفعلی په مېرڅی کښې ده - مېرڅی به نه وی بېرون له نوسه له شېطانه - (۸۳)

مرګ به ورشي وَسرې وته ننګهان - نشته دَسرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

او بایزید - ووایه چې مرګ دې ډېر یادوی ادمیان او یادوی دې عذاب دَ ځنکدن چې روح به ئې ووځی له تنه دَ ادمیان (۸۴) -

مرګ به ورشي وَسرې وته ننګهان - نشته دَسرې په دنیا کښې تل دَ تله مقام

یادوی دې عذاب دَ ګور چې پکښې عذاب یا راحت دے دَ ادمیان -

مرګ به ورشي وَسرې وته ننګهان - نشته دَسرې په دُنیا کښې تل دَ تله مقام

یادوی دې عذاب دَ اور چې هر ګوره دے ګران - په تا دې

وی اعلام -

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
یادوی دې خپله نامه چې پکښې به کښلے (۸۵) زیاته بدی وی
کهٔ احسان -

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
یادوی دې لار دَ صراط چې یون ئې هر ګوره دے ګران - (۸۶)

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
یادوی دې هغه تله چې نیکی بدی به وتلی دَ ادمیانو (۸۷) بنه
ئې ډېر به وی چې ئې بنے لورے شی ګران (۸۸)

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
ننه باسی پهٔ زړهٔ کښې زما اوزما دَ عذاب ډار - لرې دې
اوسی پهٔ پرهیزګاری لهٔ واړهٔ حرامو - هله (۸۹) نهٔ کښېوځی زما
پهٔ عذاب کښې ادمیان -

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
او چار دې کا دَ ښېګړې پهٔ واړهٔ اندامو هله (۸۹) کښېوځی
زما پهٔ راحت کښې ادمیان -

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
توکل دې پهٔ ما کا چې رزق ورکوم وَ واړهٔ خورندګان (۹۰) -

مرګ به ورشی وَسری وته ننګهان - نشته دَ سری پهٔ دنیا کښې تل دَ تله مقام
ترک دې نهٔ کا سری (۹۱) زما طلب، تسبیح پېژندګلی، یاد، دَ
رزق پهٔ بهنه دې زړهٔ نهٔ لرې پرېشان - دَ زړهٔ پرېشانی
مې حرامې کړې دَ رزق دَ پارهٔ (۹۲) پهٔ آدمیان - (۹۳)

مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام
زه ژغورم دَ سینې دَ شا دَ ورغل په خوا په شا (۹۴) پسبینه
(۹۵) دَ موږ په نوس کښې ادمیان -
مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام
ترو پکښې بدل کړم حال دَ ادمیانو (۹۶) ګوره چې په خپل
قدرت منی وددرولې وینه کړم - ترو وددرولې وینه، دَ غوښې خزری
کړم ترو له هغې غوښې کړم صورت دَ ادمیان -
مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام
ترو ئې څرګند کړم په خپل قدرت هغه څیز چې شته دَ دیو
په ځان - هډ، پله، رګ، غوښه، وینه، پوست، وېښته او
واړه اندام دَ ادمیان - لکه سر (۹۷) او غوږ، سترګې، پوزه،
خُله، سینه او شا، لاس، پښې او هر چې شته دَ دوئ
په ځان (۹۸)
مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام
ترو ئې را وباسم په خپل قدرت دَ موږ له نوسه - ترو ئې
ژغورم په حالت چې رووتے، خوړونے هلکې، پېغلکۍ (۹۹) تور
بزیرے چې زوړ وی یا ځوان هسې بدل کړم په خپل قدرت
حال دَ ادمیان -
مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام
یا ئې ووژنم دے په هر حال کښې په خپل فرمان - په تا
دې وی اعلام -
مرګ به ورشي وَسرِي وته ننګهان - نشته دَسړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام

زه پوهېږم چې بدلېږی حال دَ دوئ (۱۰۰) نه پوهېږی چې
حال ئې بدلېږی دَ ادمیان۔
مرګ به ورشی وَسړی وته ننګهان ۔ نشته دَسړی په دنیاکښې تل دَ تله مقام
ګوره چې ورشی درد ، رنځ دَ سړی دَ ځان و ئې نه باسی
زما بې فرمان ۔ او نه ننباسی تندرستی هیڅ یو په خپل ځان ۔
مرګ به ورشی وَسړی وته ننګهان ۔ نشته دَسړی په دنیاکښې تل دَ تله مقام
وا به نه خلی درد یو اندام دَ سړی دَ بل دَ اندام (۱۰۱)
مرګ به ورشی وَسړی وته ننګهان ۔ نشته دَسړی په دنیاکښې تل دَ تله مقام
دَ سړی بویه چې یاد کا خپل عزیز محبّتی او هغه ژوی چې
ئې لیدلی پېژندلی وو عیان ګوره چې څو شوو هغه ادمیان (۱۰۲)
مرګ به ورشی وَسړی وته ننګهان ۔ نشته دَسړی په دنیاکښې تل دَ تله مقام
یادوی دې سرایونه ، کورونه ، ځایونه باغونه او هغه ونې چې سایه
داری ، مېوه داری دی عیان ۔ ګوره هسې ورانېږی دَ هرې زمانې
ادمیان لکه وران شوو دَ ورانديني زمانې کسان ۔
مرګ به ورشی وَسړی وته ننګهان ۔ نشته دَسړی په دنیاکښې تل دَ تله مقام
ترو نزار شه دَ هغو (۱۰۳) کسانو چې ژوندون او مرګ ئې وی
زما بې طلبه ۔ بے طاعته ، بے تسبیحه بې پېژندګلی ، بې یاده ،
بې نژدیکی ، بې پېوندګلی ، بې یکانګی بې قراری وی او په بد
خوی کښې وی په ګناهان
سخ اوزما خوښی دَ هغو کسانو ده چې ژوندون او مرګ ئې
وی زما په طلب ، په طاعت ، په تسبیح په پېژندګلی ، په
یاد ، په نژدیکی ، په پېوندګلی ، په یکانګی ، په قراری ، په

نیک خوئ کښې وی په احسان۔

مړګ به ورشی وَ سرِی وته ننګهان ۔ نشته دَ سړی په دنیا کښې تل دَ تله مقام او بایزید ۔ که دې رضا (۱۰۴) وی چې زما وَ پېژندګلو وته بولې ادمیان ۔ نو دې بویه چې دَ پېغمبرانو و لارې وته ئې بولې علیهم الصلوٰة و السّلام ۔ او که دې رضا وی چې دَ پېغمبرانو وَ لارې وته بولې ادمیان نو دې بویه چې ئې بولې وَ هغه وته چې پیر وی تمام (۱۰۵)

نشته په دا زمانه پیر تمام بیرون له تا چې وارث دَ انبیاء ئې ۔ دَ رښتینې لارې څښتن ئې ۔ ته باور کړه په دا کلام (۱۰۶) وایه وَ سړی وته چې په رښتینې پېژندګلو وپېژنی دا جهان چې کړے مې دے سرائې دَ بلا دَ فتنې دَ زیان او دا چارچوبه دَ تاریکو او سرائې دَ ورانو عیان ۔

هر چې محبت دَ بلا دَ فتنې له زیان کارې سرائې سره

کا مبتلا به يُ کړم (۱۰۷) په سختۍ، په بلا، په فتنه، په اندوه په غم او په تاریکۍ، په رندوالي (۱۰۸) ترو به زما له پېژندګلۍ دروند شي عیان۔

هر چې محبت له پلیتي (۱۰۹) له فاني سرائې سره کا۔ الوده به يُ کړم په مرداري (۱۱۰) چې پلیت شي۔ ترو ژوندون به يُ په زړورۍ (۱۱۱) وي و به مري په نادانۍ۔ تن کور ځائې به يُ شي وران۔ ترو به جزا دَ عذاب تل دَ تله مومي مدام۔

وایه سړی وته چې په ښتیا وپېژنی سرائې دَ هغه جهان کور۔ سرائې دَ نعمت دَ رحمت دَ روښنائۍ دَ خوښۍ او سرائې بودنۍ دے دَ هغه جهان۔ هر چې محبت دَ نعمت او دَ رحمت له سرایه سره کا دَ نعمت او دَ رحمت مزد به مومي۔ هر چې محبت له روښانه او دَ ښادۍ له سرایه سره کا دَ روښنائۍ او ښادۍ مزد به مومي هر چې محبت له باقي سرایه سره کا مزد باقي به بیا مومي چې نه به شي وران۔ نښته په دنیا کښې بقای (۱۱۲) او نښته ورانے دَ هغه جهان۔ عیان۔

ترو وایه وَ سړی وته چې دَ دنیا چارې دې هومره کا څو يُ پکښې استوګه وي په دا جهان۔ او دَ هغه جهان چارې دې هومره کا څو يُ فائده او بقا ئُ (۱۱۳) وه تل دَ تله مدام

هر چې دَ دنیا چار دَ اخرت دَ چارې دَ پاره پرېږدی فائده به مومي۔ رحمت راحت به يُ تل دَ تله وي مدام۔ هر چې دَ دین چار دَ دنیا دَ چار دَ پاره پرېږدی ده لره دے زیان۔ لعنت۔ غم۔ پښیماني او عذاب مدام۔

راوښـيه وَ ما وته دنيا او ولې او مايه ئې په خپل فرمان اوسبحان اوبا يزيد - دنيا مې محبت دَ دنيا کړے دے او ولې مې ئې دَ نوس هوس کړے دے دَ ادميان - عيان - دَ نوس له هوسه ښاخونه پيدا کړم له هره ښاخه زيان زښتې ډيرې بدۍ پيدا کړم عيان (١١٤) ګوره ښاخونه مې ئې حرص، کبر، طمع کړې ده او بدګمان - زه له حرصه وږده امېدواری، نان کوری (١١٥) تاريکي دَ زړه پيدا کړم - له کبره غرګی بې راهی پيدا کړم او مبينه دَ ګناهان - له شهوته غفلت بې شرمی او بد ادبی (١١٦) پيدا کړم عيان - له طمعې شک، ورکاوے دَ توکل او بدخوئی پيدا کړم، غېرت قهر او غښته دَ بدۍ وېنا پيدا کړم له بده ګمانه (١١٧) ګوره - ما په دړد دَ زېرو سپينو زرو، خريان، کرله اورتی، زامن - دا هسې شکل مې دَ دنيا مايه کړې دا وځناوران (١١٨) هر چې ئې رضا وی چې دَ دنيا ولې مايه ئې وپېژنم او په محبت ئې چار کړم دا خصلتونه او مايه دې وپېژنی او په محبت دې ئې چار کا - هر چې ئې رضا وی چې دَ دنيا محبت ترک کړم دا خصلتونه دې ترک کا هغه کسان -

او با يزيد - ما بدخوئی په مانند دَ اور يا دَ زهرو کړے دے او ښه خوئ مې په مانند دَ اُبو يا دَ دارو کړے دے عيان - ترو بويه چې دې نوس دَ هوس په نه نغته دَ مشقت په تېغ دې ووژنی ادميان - (١١٩)

حرص دې په صبر او وږد امېد په نژدې مهلت، نان کوری په ځوانمردۍ او تاريکي دَ زړه دې ووژنی په چارو

دَ اسلام (۱۲۰) کبر په کهتری غرگی په دار ، بې راهی په لارې په پرهیزگاری دې ووژنی میته دَ گناهان - شهوت په روژو، غفلت په یاد مدام ، بې شرمی په شرم ، او بد ادبی په نېه ادب (۱۲۱) غیرت په بنسېگره ، دَ بدې خبرې غنبته زما په فکر او قهر په قوت دَ زغمل ، دَ عقل په رڼا دې ووژنی بدگمان (۱۲۲) طمع په قناعت ، شک په یقین او بد خوئ دې ووژنی په نیکخوی ادمیان -

او با یزید - تا بویه (۱۲۳) چې زما او زما دَ عذاب دار ، زما او زما دَ راحت محبت وریاد کړې وَ ادمیان - لرې نه اوسی له نهی بیرون زما دَ عذاب دَ دار په بهنه اوچار نه کا زما په ورمندان (۱۲۴) بیرون زما دَ راحت په بهنه ادمیان -

هر څیز مې په اتکل کړے دے - سړے مې بهترین کړے دے له واړه مخلوقان - (۱۲۵) دَ هغې بندگی دَ پاره چې زما پېژندگلی پکښې حاصله شی چې مې په یکانگی وپېژنی دَ هر زمان ادمیان -

گوره عقل خوبیولے دے په ادمیان - ترو بویه چې خپل عقل دې بېدار کا - (۱۲۶) ترو دې ننه باسی په خپل زړه کښې زما او زما دَ عذاب دار ، زما او زما دَ راحت محبت ادمیان -

راوښیه وَ ما وته نخښې دَ ترسگارانو او محبتی کسانو په خپل فرمان او سبحان (۱۲۷) -

او با یزید - دَ ترسگارانو نخښه هغه ده چې لرې به اوسی زما دَ دار په بهنه له وارو حرامو دَ محبتی نخښه هغه ده چې (۱۲۸) هره چار کا زما دَ محبت په بهنه زما په ورمندان (۱۲۴)

زما دَ طلب او دَ پېژندګلو دَ پاره به ښهٔ چار کا په اندام۔
ترو تا بویه (۱۲۳) چې یاد کړې عذاب دَځنکدن، دَ پښتنې، دَ ګور، دَ قیامت۔ یاد کړه نامه او تله او عذاب دَ اور ادمیان۔
بل (۱۲۹) لرې اوسی دَ هر مقام له وارو حرامو۔ (۱۳۰) ګوره دَ ځانکدن (۱۳۱) عذاب هغه دے چې دَ ګنهګار ځانکدن شی وَ ده وته به دَ ځانکدن په وقت (۱۳۲) دَ قهر فرښته له هیبته سره دَ ده دَ روح دَ وکښولو (۱۳۳) دَ پاره ورستوم چې روح ئې په ګرانو کاږی دَ ده له ځانه۔ عیان۔ دَځانکدن عذاب به ئې یو ساعت دَ ده په نظر څو کاله کړم یو کال به څو دَ دنیا زار کاله وی او درد به ئې هسې وی چې څوک پوست کاږی دَ ژوندی حیوان یا به زیات وی له هغې دَ ځنې ادمیان۔ چې مرګ ورنژدې شی ترو به ووائی ګنهګار زار شه په ما چې ولې مې عذابوی سبحان۔
ترو به وَ (۱۳۴) خپلې فرښتې وته وکړم فرمان چې وائی وَګنهګار وته چې تا نه لوست کتاب دَ خدائې چې دې لوست چار دې نه کړه په کتاب دَ رحمٰن ځکه دې دا عذاب موندلے دے۔ عیان۔
ترو به دَ هغه پسه (۱۳۵) عزرائیل په قهر ورته ګوری ترو به هسې ورته وائی۔ او بې نمازه روحه۔ له دغه بې نمازه تنه راووځه۔ ترو به ئې په عذاب کښېباسم۔ په تا دې وی اعلام۔ (۱۳۶)
هر چې له مرګه ورانډې ومری، فرمان بردار محبتی نیکوکار شی زه وَ نیکوکار وته په حالت دَ ځانکدن دَ رحمت فرښته په

ښه صورت ورستوم دَ ده دَ روح دَ وکښلو دَ پاره چې روح ئې
په اسانه په راحت کاږی په تا دې وی اعلام۔
ترو به عزرائیل په نظر دَ رحمت ورته ګوری او هسې به ورته وائی
او پاکه روحه له دې پاکه تنه راووځه ترو ئې راوباسم دَ ده
له تنه او په راحت ئې کښیباسم۔ په تا دې وی اعلام۔
او بایزید۔ عذاب دَ پښتنې هوی دے چې له مرګه پس به وَ
ده وته دَ قهر فرښته له هیبته سره ورستوم دَ ده دَ پښتنې
دَ پاره۔ صورت ئې کړم دَ ده په نظر لکه غر لکه وته دَ
ده اندام۔ عیان۔
هر کله (۱۳۷) نظر کا ګنهکار وَ فرښتې وته دَ هغې له ډاره به
ئې دریږدی تن او اندام او هسې به وائی زار شه په ما په
دنیا مې دا هسې صورت نه لیدلے۔ ترو به ئې له ما وپښتی
زما په فرمان۔ هسې به په قهر ورته وائی۔ په څو (۱۳۸) خبر
یئې له یکانګه دَ رحمان۔
هر کله آواز ئې واروی په غوږ به ئې وردننه وځی په هغه
بهنه به کوږ شی۔ دَ هغه پسه به هسې وائی ما هسې اروېده
او وئیل مې چې خدائې یو دے۔ ولې نه مې زړه له یکانګه
چې په څو (۱۳۸) یو دے سبحان۔
ترو به ورته وائی زما فرښته زار شه ستا اے ګنهګاره۔ ولې
وې وهېر که امر، طلب، ورمندان دَ رحمٰن او چار دې نه کړه
دَ دنیا په ژوندون دَ ده په کتاب اوس دَ ده پس به نه نه
مومې بېرون عذاب دَ سبحان۔

ترو به دَ خپلي فرښتې وته کړم فرمان چې عذابوی دے او دَ
ده اندام څکه چې په اندام ئې کړي چاري دَ حرام۔ ترو به
وائی ګنهکار دریغه په ما۔ ولې مې عذابوی په دا هسې عذاب سبحان
ترو به دَ خپلي فرښتې وته کړم فرمان وایه دَ دغه بدکار وته
چې دے نادان چې عذاب دَ غوږ دَ سترګو دَ پوزې دَ خُلې
دَ لاس دَ پښې دَ زړه دَ نوس دَ تن دَ اندام او عذاب دَ
هر څیز چې په تا کښې دے (۱۳۹) بیا ئې مونده په بهنه دَ ګناهان۔(۱۴۰)
ترو به هسې وائی زیان کار که مې خدائې وجارباسی دَ دنیا وته
زه به هره چار کړم په ورمندان دَ سبحان۔ او بندګی به په
اخلاص کړم چې ئې کا (۱۴۱) مخلصان ادمیان۔
ترو به دَ خپلي فرښتې ته وکړم فرمان چې وائی دَ بدکار وته
چې تا به نه جارباسی دَ دُنیا وته سبحان۔ نشته تالره دَ دغه
پسه بېرون عذاب پر عذاب۔ عیان۔ او عذابوم به دے ترهغه
پورې چې دَ ګور عذاب موهی پخپل فرمان په دا بهنه چې
دَ نوس په نغته ئې چاره کړه او دَ شیطان۔ او چار به ئې نه
کړه زما په کتاب۔ په دا بهنه به نه موهی زما راحت ګنهکاران
ادمیان۔
راوښیه وماته عذاب دَ ګور او نخښې ئې چې په ادمیان
کښې دی او سبحان۔
او با یزید۔ عذاب دَ ګور هغه دے چې ګنهکار په ګور کښې
کېږدی دَ هغې پورې څو په خاورو پټ شی ترو به دَ ده ته

نکیر منکر پهٔ بد رنګ له قهره له هیبته سره وراستوم چې وړده به ئې وېښتهٔ غابښ وی دندان - او دَ اور ګرز به ئې پهٔ لاس وی او روح به ئې پهٔ تن کښې ننه باسم (پهٔ) هومره اټکل چې عذاب وراحت وته خبروی ادمیان - او دَ ګور تخښنه تن دے او دَ نکیر منکر تخښنه دوه فرښتې دی چې ننوځی له دوه خوبه سره پهٔ زړهٔ کښې دَ ادمیانو (۱۴۲) او دَ ګور دَ عذاب تخښنه خوی دَ تن دے عیان - پهٔ قهر به ورته وائی چې خدائې دې څوک دے - پیغامبر دې څوک دے او دین دې کوم دے - ترو به ګنهګار هسې ورته وائی چې ما اروېداه - پهٔ ژبه مې ویل چې خدائې یو دے - ولې پهٔ یګانګۍ ئې نهٔ پېژنم چې څو (۱۳۸) یو دَے یا به دَ ده (۱۴۳) له داره ورته وائی چې خدائې مې نهٔ یې سبحان. ترو به ئې ووهی دَ اور پهٔ ګرز زما پهٔ فرمان - ترو به ئې ورسوم وتحت الثرٰی وته - بیا به ئې راوخېژوم دَ ګور وته - ژوندے به ئې کړم - پهٔ دا عذاب به ئې عـذابوی څو وی زما پهٔ فرمان عیان - (۱۴۴)

ترو به هسې وائی ګنهګار ولې مې عذابوی پهٔ دې هسې عذاب سبحان - ترو به دَ خپلې فرښتې وته کړم فرمان چې وائی دَ زیان کار وته چې ته دَ خدائې بې طلبه بې پېژندګلۍ وې او چار دې نهٔ کړهٔ پهٔ ایت او پهٔ حدیث - (۱۴۵) عیان - ترو به دَ ګنهګار حجّت قطع شی او ژبه به ئې پهٔ حجت نهٔ ګرځی - ترو به ئې عـذابوی (۱۴۶) څو وی زما فرمان - ترو به ئې ګور هسې تنګ کړم چې دَ ښی رُخ هډونه دَ کیڼ رُخ وته او دَ کیڼ به

ئې نبي رحمه ووځي په نظر دَ ګناهګاران آدمیان. ترو به ګناهګار
هسې وائي په دا هسې عذاب مې ولې عذابوې سبحان. ترو به وَ
ګور وته کرم فرمان چې وایه وَ ګنهګار وته چې ته په زمکه
باندې په غفلت ګرځیدې، کبنېناستې، څملاستې، دَ خدائې بې
یاد استلې (۱۴۷) ځکه دې دا هسې عذاب وموندلاه او چار دې
نه کړه په ایت دَ قرآن او په حدیث (۱۴۸) او زبان کاره! په تا
دې وی اعلام. ترو به ئې جحت کوتاه شي. (۱۴۸) ژبه به مې په جحت نه
ګرځي دَ ګنهګاران ادمیان. عذابوم به ئې دَ ګور په عذاب دَ قیامته پورې عیان.
او با یزیده. عذاب دَ قیامت هغه دے کله. (۱۵۰) په خپل زور
زمکه وکوږوم. و به باسم هغه چې شته په دې کبنې ګران. په
تا دې وی اعلام. ترو به زمکه هرغر، توکرې خزرې ذره ذره
کړم ترو په خپل زور زمکه او هر غر به کړم همان (۱۵۱)
زمکه به دوه وارې وکوږوم، و به وژنم په ورمبی کوږول واړه
ژوی عیان. او ژوندی به کړم په دووم کوږول چې شته واړه مخلوقان.
دَ ورمبی کوږول نوم مې راجفة او دَ دووم کوږول نوم مې رادفة
کړے دے. په تا دې وی اعلام.
دَ برغو په ورمبی اواز به واړه ژوی ووژنم.
ترو به هسې وایم کوم دے قام دَ ظالمانو او قام دَ بادشاهانو
او قام دَ توانګرانو او قام دَ کبرژنو او هغه قام چې رزق ئې
زما خوړ او بندګی ئې دَ نورو کړه عیان. زه ګواهی کړم په خپل
ځان زه بادشاه دَ ملک یم. نه دے ملک بیرون زما. زه یو
یګانه قهر کړونے خدائې یم. ته باور کړه په دا کلام.

او دَ برغو پهٔ دووم اواز به واړه ژوی ژوندی کړم۔ هله ګوری وَ
خپلې ناځې وَته ادمیان۔ (۱۵۲)۔
ترو به لهٔ زمکې وباسم پهٔ خپل قدرت هغه چې پټکښې وی
ګران۔ تن دَ واړهٔ خوزیدونی عیان۔
دَ زمکې ځې دوهٔ دروتوالی کړی وی هغه پیړی دی او ادمیان۔
چې پهٔ دنیا کښې پهٔ زمکه باندې وو او تته ځې یستل پهٔدې
کښې لهٔ مرګه پس عیان۔ کله (۱۵۳) وباسی دَ زمکې بارغه ګران (۱۵۴)
ترو به وائی تام دَ بدکارانو۔ ولې وباسی دَ زمکې هر چې پکښې دی
ګران۔ که پټ عیب ئې نهٔ کړی عیان۔ ترو به زهٔ وایم. وَخپلې
فرښتې وته ځې وایه وَ دیو ته (۱۵۵) چې ګرانی باسی زمکه
پهٔ فرمان دَ رحمان۔
او با یزید۔ زهٔ به پاڅوم پهٔ ورځ دَ قیامت پیړی سړی تام تام
عیان۔ ځنې به تام دَ انبیاؤ وی ځنې دَ شیطانانو، ځنې به
تام دَ مؤمنانو وی ځنې دَ کافرانو ځنې به تام دَ نیکوکارو وی
ځنې دَ ګنهګارانو، ځنې به تام دَ ذاکرانو (۱۵۶) ځنې دَ غافلانو عیان۔
ځنې به دَ خیر (۱۵۷) وی ځنې دَ ړاندهٔ تام۔ ځنې به دَ اروېدونی (۱۵۸)
وی ځنې دَ کاڼهٔ تام۔ ځنې به تام دَ واصلانو وی ځنې دَ فاصلانو
ځنې به تام دَ یکانو وی ځنې دَ مشرکانو۔ ځنې به تام دَ مخلصانو۔
ځنې دَ منافقانو۔ بیا به دوئ وویني (۱۵۹) کښلې نامه دَ خپل
کردار۔ پهٔ تا دې وی اعلام۔
هر کله (۱۳۷) نظر کا وَ خپلې ناځې وته کښلی به بیا مومی پکښې
خپلې کردې (۱۶۰) پیړی ور ادمیان۔ نهٔ بهٔ ویني نهٔ به مومی پهٔ

نامه کښې یو کرده دَ بل عیان ۔

او بایزید ۔ زه به کوتاه کړم په ورځ دَ قیامت په دیدن دَ کښلي نامې جهت دَ ادمیانو ۔ نرو به هر یو جزا دَ خپلي کردې مومی ۔ په ښه چار به له ما جزا دَ ښېګړې مومی په بده چاره به جزا دَ بدی مومی عیان ۔

او بایزید ۔ زه به په ورځ دَ قیامت پاڅوم له تېې سره په چار دَ تېې ادمیان ۔ پیر تمام به پاڅوم په چار دَ پېغامبرانو دَ پېغامبرانو له تېې سرهِ علیهم الصلوٰة و السّلام او پیر ناتمام دَ شېطان په چار (له تېې دَ (۱۶۱) شېطان ۔

فرمان بردار دَ پیر تمام دَ مُسلمان په چارو له مُسلمانه سرهِ او فرمان بردار دَ پیر ناتمام دَ کافرانو په چار له کافرانو په ښه چار دَ نیکوکارو له تېې سره دَ ګناه په چار له ګنهګارانو، په دائم ذِکر دَ ذاکرانو له تېې سرهِ په غفلت له غافلانو ادمیان ۔

زما دَ دیدان په بهنه دَ خېرو له تېې سره زما بې دیدنه دَ رندو له تامه (۱۶۲) زما دَ اواز دَ اروېدو او زما دَ تسبیح دَ پوهې په بهنه دَ شنواو له تېې سرهِ زما دَ اواز بې اروېدو زما دَ تسبیح بې پوهې په بهنه دَ کنو له تامه ۔ عیان ۔

دَ وصلت په چارو له واصلانو دَ وصلت په چارو له فاصلانو، دَ یکانګۍ په چارو له یکانو سرهِ ، دَ شرک په چارو له مشرکانو، دَ اخلاص په چارو له مخلصانو سرهِ دَ نفاق په چارو له منافقانو ادمیان ۔

او بایزید ۔ زه به کوتاه کړم په ورځ دَ قیامت جهت چې وویني په نامه کښې کښلي چار دَ ادمیانو ۔ لکه ورنه ګوری (۱۶۳) پیرناتمام نادان

مشرک و خپلې ناڅې وته - کښلې به بیا موحی خپلې چارې واړه لکه چارې دَ شیطان - ترو به وائی - ژاړ شه په ما چې دنیا مې خپسر (۱۶۴) ګانه دَ پښت په بهنه پیر ناتمام (۱۶۵) او خپله چار مې بنه ګڼله په ګمان له چارې دَ ادمیان اوس خپل نوم په خپله نامه کتې وینم نوم دَ پیرناتمام مُشرک او خپله چار لکه چاره دَ شیطان - ترو به زه و خپلې فرښتې وته کړم فرمان چې ورته وایه اے زیانکاره باور دې نه که په کتاب دَ خدائې او چار دې نه کړه په دا ایت

يَوْمَ يُنْفَخُ فِى الصُّوْرِ فَلَا انْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّ لَا يَتَسَاءَلُوْنَ (۱۶۶)

ترو به ورته وایم وَ ده وته (۱۶۷) ژما لعنت په تا او وَ خپلو فرښتو، پېغامبرانو و دوستانو دَ لارې وَ تبنتنو او پر واړه دَ عرصات دَ عالمو وته به کړم فرمان چې وَ ده وته وایئ چې لعنت دَ خدائې په تا یا فلان دَ فلان (۱۶۸) چې چار دې کړه دَ شیطان - چې یه بې تله بې لیداه بې ژدکړې او بې دَ نبی دَ کردې دې په دروغ وئیل چې زه پیر یم تمام او مال دې حصلاوه په دنیا کښې دَ پیریدا او دَ پښت په بهته حرام - (۱۶۹) له سرې دې غلاوه مال و ایمان - نشته تا لره دَ دغه پسه بیرون عذاب دَ سختۍ له تپې دَ شیطان -

هر کله (۱۳۷) ورته ګوری پس ژو دَ پیرناتمام دَ نادان مشرک شیطان وَ خپلې کښلې ناڅې وته خپل نوم به کښلے موحی نوم دَ کافراو خپله چار دَ کافرانو - وائی به ژاړ شه په ما چې خپسر مې په دنیا کښې مؤمن ګانه او خپله چار مې ګڼله چار دَ مؤمنانو اوس خپل نوم په خپله نامه کښې (۱۷۰) کښلے دَ کافرنوم وینم او خپله چار

واړه لکه چار دَ کافرانو۔ عیان۔
ترو به زه ورته وایم لعنت زما پهٔ تا او وَ خپلو فرښتو وپیغامبرانو
و دوستانو، دَ لارې دَ تښتنو او پهٔ واړه دَ عرصات و عالمو وته به
کړم فرمان چې ورته وائی لعنت دَ خدائې پهٔ تا او فلان دَ فلان(۱۷۱)
چې چار دې کړه پهٔ نغته دَ شیطان او نه دې کړه چار پهٔ ایت
دَ قرآن۔ نشته تا لره بیرون عذاب له تپې دَ کافرانو۔ عیان۔
هر کله (۱۳۷) گنهګار وَ خپلې کښلې نامې وته گوری ترو به وائی
زار شه پهٔ ما پهٔ دنیا کښې مې (۱۷۲) خپسر نیکوکار کا نهٔ۔ خپله
چار مې طاعت گڼله اوس خپل نوم پهٔ خپله نامه کښې کښلے
گنهګار او خپله چار ویتم چار دَ گناهګارانو۔(۱۷۳)
ترو به زه پر ده لعنت کړم۔ ور وَ (۱۷۴) خپلو فرښتو پیغامبرانو
وَ دوستانو دَ لارې وَ تښتنو او پر واړو دَ عرصات وَ عالمو وته
به کړم فرمان چې ورته وائی لعنت دَ خدائې پهٔ تا او زیان کاره۔
باور دې نه که پهٔ کتاب دَ خدائې او چار دې نه کا پهٔ ایت(۱۷۵)
او با یزید۔ زه هیڅ ظلم نه کړم پر سړی ولې سړے ظلم کا پهٔ خپل
ځان۔ گوره زه بدل کړم نوم خوئې او حال دَ ادمیانو پهٔ چار دَ
ادمیانو۔ هر چې دَ گناه چارې پرېږدی۔ ترو ښېګړه کا پهٔ ده به
نوم دَ گناهګارۍ واخلم او نوم به ئې کړم له نیکوکارانو۔ عیان۔
دَ گناه خوی به ئې دَ طاعت پهٔ خوئې دَ عذاب حال به یې دَ
راحت پهٔ حال بدل کړم۔ پهٔ تا دې وی اعلام۔ هر چې ښهٔ چار
پرېږدی ترو چار دَ گناه کا۔ زه به له ده نوم دَ نیکوکارۍ واخلم
ترو نوم به ئې گناهګار کړم او خوئی دَ طاعت به ئې پهٔ خوئی دَ

ګناه او دَ راحت حال یه ئې دَ عذاب په حال بدل کړم۔ عیان۔
او بایزید۔ زه به وَ خپلې فرښتې وَته کړم فرمان چې ګوښې کا (۱۷۶)۔
تیه دَ بدکارانو له تپې دَ نیکوکارانو ادمیانو بیا یه وَ خپلې فرښتې
وته کړم فرمان چې وخیژوی وَ بلندیه وته نیکوکاران۔

نته باسم (۱۷۷) په سجّین کښې ګروه دَ ګناه کارانو۔ عیان۔ ما په بهښت
کښې باغونه کړی دی په ګڼډار (۳۸) دَ پیری دَ ادمیان۔ زه به
ورو بخښم تل دَ تله ژوندون، نښه او لوئې مقیمې ملکونه وَ هر
یو چې وی له نیکوکارانو۔(۱۷۸) یکښې به ئې ډار اندوه (۱۷۹) نه
وی۔ پکښې به ئې خوښی او ښادی وی او هغه چې دَ ده رضا
وی او تل دَ تله امان۔

سجّین مې کانړې کړې دے پکښې مې سوری کړی دی په ګڼډار
(۳۸) دَ پیری ور دَ ادمیانو۔ په هر سوری کښې مې عذاب کړے
دے په اتکل دَ ګناهونو۔ زه به وَ اور وته کړم فرمان چې
هر یو عذابوی په اتکل۔ غواړی به هر یو که له اوره ووځم۔
هیڅ کله به نه وباسم یو له ګناهګارانو ادمیانو۔ نه به موهی
پکښې هغه مرګ چې له راحته وی دَ دوزخیانو۔ او عذابوم به
له کافرانو سره۔ لا نږې لاندې منافقان۔ ځکه چې په ژبه به
ئې وئیل باور مې دے په خدائې۔ په فرښتو په کتاب او په
پیغامبرانو ئې او په وستریه ورځ۔ رښتیا نیکی بدی له خدایه ده
او له مرګه پس ژوندون رښتیا دے دَ زړه بې باوره او بې چارې
دَ اندام۔ (۱۸۰)

دَ منافقانو نخښنه هغه ده چې لیږی دَ ګناه وَ چار وته ځان ور

نور کسان - له بنې چارې منع کوی ادمیان - بندګی مې به کا له
حرامو په وهیره دَ پټ ذِکر - چې په زړه په ساه ئې کا مدام -
هر چې دائم ذِکر وهَېر کا - زه به ئې وَهېر کړم په عذاب دَاور
چې دے سوزان - منافقان هغه دی چې کا ګناهان - ګوره نخښې دَ
منافقانو دَ مؤمنانو بیان دی په قرآن - چې منافق ومری - وَ
ادمیانو بویه چې ئې پریوېځی (۱۸۱) په کفن دې ئې کښېږي کا - نوځ
دَ جنازې دې پرې وکا - ترو دې ئې په ګور په لحد کښې
کیږدی - په خاورو دی ئې پټ کا - ترو ګور دې ئې روغ کا
مسلمانان - ترو یه ئې زه عذابوم په دوزخ کښې له کافرانو -
او بایزیدا - زه یه نه عذابوم بې خبره دَ هرې زمانې ادمیان -
زه دَ رښتنې لارې تښتن له کتابه سره وراستوم چې پکښې یه
کښلی وی دَ رښتیا دَ دروغ دَ حلال دَ حرام دَ کړه دَ نه کړه
دَ راحت او دَ عذاب بیان - هر چې باور که په ما او دَ لارې
په تښتن او چار کا زما په کتاب - وبه ئې باسم دَ دنیا په
ژوندون له تیرې و رڼا وته - ترو یه ئې ننه باسم له مرګه
پس په راحت دائم مدام -
هر چې باور نه کا په ما او دَ لارې په تښتن او چار نه کا
زما په کتاب نه یه ئې وباسم دَ دنیا په ژوندون له تیرې وَ
رڼا وته - ترو یه ئې ننه باسم له مرګه پس په عذاب تل دَ تله
مُدام -
ګوره دَ دغه زمانې سرېوته (۱۸۲) غواړی دنیا په مشغولی کا چې
پکښې دی ډیر ادمیان - یادوی او غواړی مال ملک کورونه اورتې

زهمن، څلور بول یا نور څیز ړنګارنګ له څنبه له اغستو له خوړو دَ اتام - څنې په بهنه دَ غلا یا دَ امید چې څه غواړی له ادمیانو. څنې په بهنه دَ کرنې یا دَ بازرګانی یا دَ پوندګلی دَ څناورانو یا په ترکش بندی دَ بادشاهانو یا په نورو چارو مال ګړدوی که حلال یا شبهات وی یا حرام - یا غواړی بهښت پرې مشغولی کا.هر چې پکښې وی لړ ادمیان. یادوی او غواړی حورې کورونه، هر چې پکښې دی (۱۸۳) څنبل او خوردن دَ اتام - یادوی او غواړی باغ ونې مېوې او نور نعمت چې عیان - (۱۸۴) څنې دَ نمانځه څنې دَ روژې یا دَ لوستن په بهنه چې دُعا، تسبیحات، استغفار په ژبه لولی په زبان - او پرېښې ئې دے زما طلب او مشغولی دیدار بیرون یو یو له ادمیانو (۱۸۵) چې زما طلب پرېږدی نور څه غواړی - زار دے دَ هغه کسانو - ګوره زما طلب، نغته، تسبیح، دیدن پېژندګلی او یاد بِه دے (۱۸۶) زما له واړه نعمته - ترو باور کره په دا کلام -

او بایزید - په تا فرض دی چې زما دَ پېژندګلی وته بولې ادمیان په پوهه دَ پېغامبرانو علیهم السّلام - او زما بې طلبه له نور څه ئې وجارباسې - هر چې بې ما نور څه غواړی. هغه دے نادان - عیان -

راوښیه وَ ما وته پوهه دَ پېغامبرانو په خپل فرمان او سبحان-

او بایزید - دَ شریعت دَ طریقت دَ حقیقت دَ معرفت دَ یګانګی پوهه مې دَ پېغامبرانو کړې ده - علیهم السّلام -

ګوره - دَ شریعت پوهه مې دَ پېغامبرانو ګفتار کړے دے او

بنیاد دَ اسلام۔ بنیاد دَ مسلمانئ (رمي) روا کلمه دَ شهادت کړې
وه چې رښتیا اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریك له واشهد
انّ محمداً عبده و رسوله وائي په ژبه په زبان عیان۔
او روا مونځ شپه ورځ پېنځه وخته دے دَ زړه په حضورې دَ
حنان۔ او روا روژه ده لکه روژه دَ انبیاؤ دَ اولیاؤ او چې دَ
دوئ دې پس روان روژه دَ ماهِ رمضان۔ او روا زکات دَ مال
دَ تن دے دَ ایمان۔ او روا حج چې زیات دَ خلیل دَ جلیل دَ کور
کا هر چې طاقت لرې۔ عیان۔ خلاص به يې شي دَ شریعت له
فرضو گردن يې (۱۸۷) هر چې زده کا او پرې چار کا په بنیاد
دَ اسلام۔
راوښـیه وَ ما وته روا کلمه دَ شهادت، مونځ، روژه، زکات
حج او احرام۔ او سبحان۔
او بایزید۔ کلمه دَ شهادت مې دَ هغو روا کړې ده هر چې يې
مونځ، روژه، زکوٰة روا دې له ادمیانو۔ مونځ، روژه، زکات، حج
عبادت مې دَ هغو روا کړې دې چې يې کا بې غفلته بې حرامه
چې يې زما په پېژندگلو په یاد دَ زړه په حضورۍ وې په
دین دَ اسلام۔
له حرامو سره عبادت مې چار کړې ده دَ شیطان۔ حرام مې کړې
دې اصول دَ دنیا او نغته دَ نوس و دَ شیطان په ادمیانو (۱۸۸)
گوره۔ تن دَ سړې په زهرو مرې او ایمان يې ومرې په حرامو (۱۸۹)
نه به وې دَ ادمیانو چې وژنې ایمان په چارو دَ حرام۔ زه
نه قبلوم بندگي له حرامو سره دَ ادمیانو۔ هر چې يې رضا

وي چې په رښتیا زما په بندګۍ کښېوځې ترو وَ دهٔ بویه چې په هر مقام کښې دې لرې اوسي له واړو حرامو۔

دَ نمانځهٔ دَ فرضو دَ واجبو دَ سنتو دے بیان (۱۹۰) اوبایزید۔ دَ فرضو رَده کول فرض، دَ واجبو واجب دَ سنتو دَ ادا کولو دَ پاره سُنت وي په ادمیانو۔ نمونځ بې اودسه او اودس بې استنجا روا نه دے۔ که دَ استنجا ځائې له درمه زیات پلیت وي عیان۔ له اودسه وړاندې استنجا فرض دهٔ او له نمانځهٔ وړاندې اودس فرض دے۔ بنه چار هغه دهٔ چې هره چار دَ هغې چارې په محل چار کا ادمیان۔ ترو بویه چې فرض واجب سنت دَ استنجا دَ اودس له فرضو له واجبو له سنتو له ادا کولو وړاندې ادا کا او مکروهات دې ئې مکروه لري او فرض واجب سنت دَ اودس دَ نمانځهٔ له فرضو له واجبو له سنتو له ادا کولو وړاندې ادا کا ادمیان۔

راوښیه وَ ما وته دَ استنجا فرض واجب سنت او مکروهي په خپل فرمان۔ او سبحان۔

اوبایزید۔ استنجا دَ ابو دَ خاورو دهٔ۔ استنجا دَ ابو فرض واجب سنت دهٔ عیان۔ که دَ استنجا ځائې له درمه زیات پلیت وي و له ئې فرض۔ که څو درم وي۔ وله ئې واجب۔ که له درمه کم وي وله ئې سُنت دي۔ او مکروهات ئې ناستے وَ کعبې ونه کاتهٔ وَ شرم ځائې وته۔ (۱۹۱) ونیل دَ قصې او دَ استنجا ځائې بې عذره په ښي لاس وله دي په ادمیانو۔ دَ زمکې استنجا په لوټه، په خاورو، په کاڼي دَ شړه په توکړې په زاړه څیز چې له جاریستلې دي، دَ لرګي په توکړې روا دي او په پنځه (۱۹۲) خښتنه

په هلا په نرغنه وابنه په غشایه په سکاره په بنیبنه
روا نه دی- په تا دې وی اعلام- که هغه څیز نه موهی چې
پرې روا وی دَ هغه پسه به دا څیز هم دَ ضرور دَ پاره پرې
روا وی او په خوړنې څیز استنجا ده حرامه-
ړاوبنیه وَ ما وته استنجا، اودس غسل شرائط احکام ارکان دَ
واړو مقامو او سبحان-
او بایزید- استنجا دَ شریعت وله دی په لاس په ابه چې دَوله
وی(۱۹۳) له پلیتیړ او له جنابته- عیان- او استنجا دَ طریقت فهم
درله دَ شرم ځائې دی له کاسیرړ له هغه چې پر دوی وی
حرام- او اودس ئې دَ چار کړه دی زما په فرمان په اندام
او هتیاطی ده له حرامو او غسل ئې دے چار دَ پیغامبرانواونغته
دَ فرښتګانو او نه نغته دَ شیطان دَ لښکرو- چار دې کادَپیغامبرانو
له چارې دَ هغه پورې څو پاکی بیا موهی ادمیان-
او استنجا دَ حقیقت فهم درله دَ شرم ځائې له غفلته- نزدیکی ده
که له حلالو سره وی عیان- (۱۹۴) او اودس ئې چار ده زما
په یادو په هر دم (۱۹۵) او دَ زړه فهم درله دی له اند ښنې
دَ شیطان- او غسل ئې یقین دے په پټ ذِکر چې نه ګنی
هیڅ څیز له ما ګوښے هر چې شته په دواړه جهانه- دَ هغه
پورې څو صافی بیا موهی زړونه دَ ادمیانو له بده ګمانه-
او استنجا دَ معرفت فهم درله دَ روح دی له خطراتو په حال
دَ نزدیکړ عیان- او اودس ئې چار دَ اندام وه زما په حضوری
زما په دیدن- په تا دې وی اعلام-

او غسل ئې بې ما دَ نور څهه سول دی پهه نور دَ معرفت. زما دیدان بې رنګ دے دیدار دے پهه پتې دَ زړهه دَ لیدهه او تجلیه دَ روح دَ ادمیانو. او بایزیدا. شرطونه او حکمونه دَ نمانځهه یو دی عیان. (۱۹۶).

ګوره. پاکی دَ تن دَ جامې دَ ځائې لهه شرطونو لهه حکمونو دَ نمانځهه دے پهه شریعت کښې او پهه طریقت کښې وی لهه حرامو او پهه حقیقت کښې لهه حلالو سره پهه غفلت نژدې کېدهه بې یاد دوام او پهه معرفت کښې بې ما دَ نور څهه ګنهل وی او دروغ ګمان.

ګوره (۱۹۷) پټول دَ شرم ځائې شرط او حکم دے پهه شریعت کښې او پهه طریقت کښې فهم درلهه دَ شرم ځائې لهه کاسیری لهه هغه چې پهه دوی وی حرام او پهه حقیقت کښې لهه حلالو سره پهه غفلت نژدې کېدهه بې یاد مدام او پهه معرفت کښې بې پېژندګلی او بې حضوری زما نژدې کېدهه دَ ادمیان.

ګوره. پېژندګلی دَ نمانځهه دَ وقت شرط او حکم دے پهه شریعت کښې او پهه طریقت کښې پېژندګلی دَ طاعت دَ وقت ده او دَ ګناهان. او پهه حقیقت کښې پېژندګلی دَ فائدې (۱۹۸) دَ دایئم یاد دے او دَ زیان او پهه معرفت کښې پېژندګلی دَ وارو سپرو او چار دَ وارو سپرو ده او دَ هر مقام.

ګوره. دَ مخ جاریستل دَ نمانځهه دَ پاره وَ کعبې وته شرط او حکم دے پهه شریعت کښې او پهه طریقت کښې دَ زړهه دَ مخ جاریستل دی پهه اخلاص دَ ورمندان دَ اسلام او پهه حقیقت کښې دَ زړهه دَ فهم جاریستل دی وَ ذِکر خفی و فکر دائم مدام او پهه معرفت

کښې جاریستل دَ روح دی زما وَ یګانګې وته وَ قرارۍ وَ راحت وته دَ ادمیانو۔

ګوره۔ نیت دَ نمانځه شرط او حکم دے په شریعت کښې۔ او په طریقت کښې دے دَ چارو دَ پیغامبرانو او چار دَ پیغامبرانو رنګارنګ ښکره ده او احسان او په حقیقت کښې نیت دے دَ حال دَ پیغامبرانو او بیا به موجی زما دَ هستۍ دیدن دیدار په حال دَ پیغامبرانو ادمیان۔ او په معرفت کښې نیت دے وَ اسرار دَ پیغامبرانو خلاصیږی له ښکاره له پټه شرکه او له بده ګمانه په اسرار دَ پیغامبرانو ادمیان۔ او ننوځی زما په خوئ۔ زما خوئ راحت دَ روح دے عیان۔

ګوره۔ دَ شریعت له ارکانو (۱۹۹) په نمانځه کښې وړمے (۲۰۰) تکبیر دے چې له نیته پس الله اکبر وائی عیان۔ او دَ طریقت له ارکانو زما دَ سترګی یادول دی په ژبه په زبان۔ او دَ حقیقت له ارکانو پټ ذِکر دے په هر دم مدام او دَ معرفت له ارکانو وینا ده چې وائی زما دَ هستۍ په دیدن په فهم هره وینا کلام۔

ګوره۔ دَ شریعت له ارکانو په نمانځه کښې دے قیام۔ او دَ طریقت له ارکانو چار ده زما په فرمان په هر ځائ په قیام او دَ حقیقت له ارکانو ذکر دے مدام په هر حال کښې په قیام او دَ معرفت له ارکانو په هر څه کښې زما دیدن دیدار دے په زړه کښې په هر حال کښې په قیام۔

ګوره۔ دَ شریعت له ارکانو په نمانځه کښې لُستن دی له قرآنه۔ او دَ طریقت له ارکانو رښتیا وینا دَ کلام او دَ حقیقت له

ارکانو بلل دی پهٔ ژابه و ذکر دائم مدام او دَ معرفت لـهٔ ارکانو دَ یګانګئ وېنا دَ کلام -

ګوره دَ شریعت لهٔ ارکانو رکوع دے پهٔ نمانځهٔ کښې عیان۔ او دَ طریقت لهٔ ارکانو خدمت او سرکوزے دے دَ پیر تمام او دَ حقیقت لهٔ ارکانو رکوع دے پهٔ یاد مدام او دَ معرفت لـهٔ ارکانو رکوع دے زما پهٔ توفیق زما پهٔ دیدان پهٔ زړهٔ کښې چې وهېروالی پهٔ تا دې وی اعلام۔

ګوره دَ شریعت لهٔ ارکانو سجده ده پهٔ نمانځهٔ کښې عیان۔ او دَ طریقت لهٔ ارکانو سجده ده چې حرام او دَ حقیقت لهٔ ارکانو سجده ده دَ ذِکر پهٔ یقین، پهٔ ترکولو (۲۰) دَ ګمان او دَ معرفت لهٔ ارکانو سجده ده زما پهٔ حضوری او دَ وجود پهٔ ورکولو دَادمیان۔

ګوره دَ شریعت لهٔ ارکانو پهٔ نمانځهٔ کښې وسترے (۲۰۲) ناستے دے څو التحیات ولولی تمام - او دَ طریقت لهٔ ارکانو قراری ده لهٔ واړه حرام - او دَ حقیقت لهٔ ارکانو قراری ده لهٔ غفلته زما پهٔ یاد - دَ زړهٔ پهٔ حضوری مشغولی ده او فکر دائم مدام او دَ معرفت لهٔ ارکانو قراری دَ روح ده زما پهٔ قرارئ کښې راحت دَ روح زما پهٔ قرارئ کښې دے - او عذاب ئې خوی دَ نن دے بې ګُمان -

فرض واجب سنت مستحب مکروهات دَ اودس راوښیه وَ ماته پهٔ خپل فرمان او سبحان -

او بایزید - دَ مخ ولهٔ دَ سر لهٔ وېښتو دَ ژنې دَ کښېنئ، دَ غوږهٔ لهٔ بله غوږه پورې دواړه لاسه لهٔ څنګلې سره ولهٔ - دَ سر لهٔ

څلورمې بخرې مسح او له ښنګرې سره د دوارو پښو ولهـ - د ګمنې
بزيرې مسح د لاس په انګشتان - دا په اودس کښې فرض دى
په ادميانو - ګوره ابهـ و شونډو و بانهـ و سترغلى وته رسول
په پاکې ګواهى د زړهـ ابهـ په اودس کښې بې اسرافه خرڅول
او د زړهـ فهم درلهـ لهـ اندېښنې د شېطان - دا په اودس کښې
واجب دى عيان -
ګوره - لاس لهـ مروندهـ پورې ولهـ او زما نوم هسې يادول وئيلى
بويه " په نامه د خدائې چې ستر دے - په سترو ستر دے (٢٠٣)
د خدائې په دين د اسلام - اسلام رښتيا دے - کفر دروغ دے "
په تا دې وى اعلام -
ابهـ په خلهـ ايستل په غابښ د مسواک مښهـ ، په خلهـ د اُبو
کوزول د غرغرې کول ، په پوزه د اوبو نيستل او درې وارې
ولهـ د هر اندام عيان (٢٠١) خلال د بزيرې دننه ، د ورحيښې (٢٠٥)
خلال د ګتو تمام - دا په اودس کښې سنت دے - په تا دې
وى اعلام -
ګوره د اودس نيت ، ترتيب ئې فهم درلهـ - لهـ اندامه په نانونه
باندې نوندول ، مسح د سر تمام - دا په اودس کښې مستحب دى
عيان -
ګوره - ابهـ بې عذره په کېڼ لاس په خلهـ کښې ابهـ کر (٢٠٦)
په ښى لاس بې عذره د پوزې پاکيزول - ابهـ و مخ وته په
زور اچول په ابو کښې توکل عيان - دا په اودس کښې مکروه
دى په ادميانو -

دَ غسل دے بیان۔ (۲۰۷) او بایزید۔ غسل فرض واجب سنت مستحب
دے په ادمیانو ترو بویه چې تن دې په غسل پاک کاجنبان عیان۔
دَ وارهٔ غسل فرض واجب سنت مستحب ټې راوښیه وَ ما وته
په خپل فرمان او سبحان۔

او بایزید۔ دَ منی په وتل، په حیض په نفاس، دَ منی په وتل
په ننوتل دَ اندام (۲۰۸) کافر که په حالت دَ جنابت شی مسلمان۔
دا غسل فرض دے په ادمیانو۔ غسل دَ مړی واجب دے او که
کافر بې جنابته شی مسلمان۔ دَ ادینې دَ دوه و عیدو دَ عرفې
سنت دے او چې وتړی احرام۔ دَ برات دَ شپې غسل مستحب
او وړکے (چې) بالغ یا دَ پنځلسو کالو شی تمام۔

کوره ابه په خله په پوزه کښېښنل او تمام تن وته رسول دا
په غسل کښې فرض دی په ادمیانو۔ هتیاطی او استنجا او بیره
کره (۲۰۹) دَ پلیتی وله له وارهٔ تنه له اندامه دا په غسل کښې
واجب دی په تا دې وی اعلام۔

اودس هتیاطی دَ غوږو دَ سترګې دَ نامه دَ شرم ځائې دا په
غسل کښې سنت دی۔

خلال دَ غابن دَ نوک په لاس په ابه ښښول دَ هر اندام دا
په غسل کښې مستحب دی عیان۔

دَ تیمم دے بیان (۲۰۷)

او بایزید تیمم په هغه سړی فرض دے چې ابه ورڅخه نه
وی یو کروه لاس وی دَ ده او دَ ابو په میان۔ درې کروهه
یو فرسنګ دے او کروه دے څلور زرهٔ کامونه۔ یا ابه وی دَ

رنځ په بهنه (مُضرې) (۲۱۰) یا دَ دښنه یا دَ لېوه ډار وی (۲۱۱) یا دَ کوهي ابه وی کالی ورځه نه وی چې ابه پرې کاږی۔ په دهٔ فرض دی چې تیمم دې کا تمام۔

تیمم په جنب په حائض په نفسا باندې هسې روا دے چې په اودس ماتی کسانو۔ تیمم په ځمکه او دَ ځمکې په ځنس روا دے لکه په رېګ یا په کاڼی په ګرد یا په ګرد الودهٔ جامه یا په نور هسې شکل په ادمیانو۔ دَ زمکې ځنس هغه دے چې نه سوځی نه ولېږی او چاپه نه اخلی۔ عیان۔

دَ تیمم فرض او ماتونی یئ او نمونځ چې پرې روا وی راوښیه وَ ما وته په خپل فرمان او سبحان۔ (۲۱۲)

او بایزید۔دَ پاکیزهٔ خاورو غښته او نیت هسې وئیلے بویه "نیت مې وکه چې تیمم به کړم چې بې اودسی له ما واخسته شی یل نمونځ په ما روا کا سبحان"۔

دوهٔ وارې دَ لاسو وهل په ځمکه یا دَ زمکې په ځنس په تیمم کښې فرض وی۔ وړے دَ مخ دووم دَ لاسو دَ پارهٔ په ادمیانو۔

تیمم په هغو مات شی چې اودس پرے مات شی بیرون چې ئې په ابه شی توان۔ په تیمم دې هومرهٔ نمونځ کا چې ئې رضا شی دَ اودسی نمونځ په تیمی پسې روا دے په تا دې وی اعلام۔

تیمم دَ جنازې دَ عید دَ نمانځه دَ پاره که ابه وی او وخت تنګ وی هم روا دے۔ دَ فرض دَ قضا او دَ ادینې دَ نمانځه دَ پارهٔ روا نه دے په ادمیانو۔

دَ اودس دَ ماتوونی دے بیان۔ (۲۰۷) په کوم څیز اودس مات

شي راوښیه وَ ما وته په خپل فرمان او سبحان-او بایزید- په متیازو په هوس اُبی په سپړوبې، په مني، په کم کاڼي(۲۱۳) په استحاضه په دا مات شي په وړاندې اندام-په وه، په غلو په ججي په دا مات شي په وستر اندام- په وینه-په زوه په زیرې، په ډکه خله چې واچوی په لبونتوب، په مستئ په .بې هوښئ، په قهقهه خندا په نمانځه کښې مات شي یا په خوب که تکیه ئې په څه لګولې وی دَ ادمیانو-

<u>دَ پاکو ابو دے بیان</u>-(۲۰۷) راوښیه وَ ما وته پاکې ابه چې اودس پرې روا دے دَ ادمیانو-او سبحان-

او بایزید دَ جوهړ، دَ دریاب دَ رود دَ چینې دَ کوهی اُبه پاکې دی او دَ اسمان-(۲۱۴) عیان-روا نه دے (اودس) په هغه ابو چې له ونې له میوې نښتېځلی وی په هغه چې نور څه پکښې ډېر شی چې دَ ابو له صفته ئې وباسی لکه شربت یا سرکه یا دَ ګل ابه یا دا نور هسې شکل پکښې ډېر شی چې اودس کاادمیان اودس روا دے په هغه ابه که پاک څیز ورسره ووځی چې یو صفت دَ ابو وجارباسی لکه تیز بی یا لړې پئ (۲۱۵) یا زمئ یا صابون ورسره ووځی یا زعفران-

که په لږ ودرولې ابه کښې پلیتی پرېوځی اودس پرې روا نه دے فهم درله دَ لږ ودرولې ابه فرض دے په ادمیانو-که په روانو ابو کښې پلیتی پرېوځی اودس پرې روا دے که دَ پلیتئ اثر پکښې لیداه نه شی یا په هغه جوهړ چې یو رخ ابه ئې وکوړوی او بل رخ ئې نه کوړی که په یوه رخ ئې پلیتی پرېوځی په

بل رخ ئې اودس روا دے دَ هغه ادمیانو۔
که دَ کوهی یا په لرګ ابه کښېږي هغه څيز ومری چې روانه وينه نه لری لکه ملخ یا مچ یا غمبسې یا لړم یا نور هسې شکل ومری ابه پرې ورانې نه شی یا هغه په ابه کښېږي ومری چې ژوندون ئې په ابه وی لکه کب یا چنګښ یا کونی کبر یا نور هسې زنده ګان په هغه ابه (اودس) روا دے۔په مستعملو ابو اودس روا نه دے عیان۔که په کوهی کښېږي پلیتی پریوځی هغه ابه چې پکښې وی دَ ابو دَ پاکۍ دَ پاره دې وکاږی۔که په کوهی کښېږي مږک۔مرغۍ یا نور هسې شکل ومری له هغه کوهی دې شل په ډول له دېرشو پورې وکاږی که کوتره یا چرګه (۲۱۶) یا نور دا هسې شکل ومری له هغه دې څلوېښت له شپېتو پورې په میانو ډول دې ابه راوکاږی۔په تا دې وی اعلام۔که په کوهی کښېږي سپے یا نالت یا نور دا هسې لبوه پرېوځی یا پسه یا ستور یا سړے پکښې ومری هر چې پکښې وی واړه ابه دې راوکاږی۔کم یا ستر پکښې وپړسیږی یا بوئی ناک شی له ځناورانو۔که کوهے چینه دار وی واړه ابه ئې وکښے نه شی واجب دی چې پکښې وی هومره یا سل په ډول له تیرسو پورې دې ابه راوکاږی۔
عیان۔(۲۱۷)

که په کوهی کښېږي مږمږک یا مرغۍ یا نور څه هسې موهی پړسولے، بوئی ناک نه وی او نه ئې ږده وی چې کله پرېوتلے دے۔دَ یوې شپې ورځې نمونځ دې وجارباسی۔که پړسولے یا بوئی ناک وی دَ درې شپې ورځې نمونځ دې وجارباسی ادمیان

هر چې ئې اودس پرې کړے وی یا پرې څه بل وس ولے وی هغه دې پریوینځی عیان-(۲۱۸)

پریښون دَ سړی دَ حلال څیز پاک دے او پریښون دَ نالت دَ سپی دَ نور لیوه پلیت دے په تا دې وی اعلام-او پریښون دَ پیشئ (۲۱۹) دَ چرګې دَ نیوونی مرغه او چې په کور کښې وی لکه مږک یا مار یا دا نور هسې شکل مکروه دی- دَ خره دَ قچر مشکوک دی- که نورې ابه نه مومی په هغه ابه دې اودس کا تیمم دې هم کا هغه ادمیان-

بیان دَ پلیتئ او پاکیزه ول ئې (۲۲۰) راوښیه وما وته په خپل فرمان او سبحان-

او بایزید- که تن یا جامه په درنه پلیتئ له درمه زیاته پلیته شی نمونځ پرې روا نه دے- وله ئې فرض دی- که څو درم وی- نمونځ پرې روا دے وله ئې واجب دی- که له درمه کمه وی وله ئې سنت دے په ادمیان-

که په سپکه پلیتئ له نیم لستوڼی زیاته پلیتی وی نمونځ پرې روا نه دے-وله ئې فرض دی-که نیم لستوڼے په اټکل وی نمونځ پرې روا روا دے-وله ئې واجب دی که له نیم لستوڼی کم وی وله ئې سنت دی عیان-

کوره- درنه پلیتئ متیازې غل وینې زوه ده او هر (۲۲۱) چې راووځی دا هسې له ادمیانو- شراب، متیازې، غل یا هر چې له هغه ښاروی له مرغه چې الوزی چې غوښه ئې ده حرامه غل دَ هغه مارغه چې حلال وی پاک وی له چرګه پس چې غل ئې مغلظ وی او غوښه ئې حلاله ده په تا دې وی اعلام-

سپکه پلیتی ، متیازې ، غشوې ، وینه ، هر څه چې له هغه څلور بوله ووځي چې غوښه یې حلاله ده - عیان-

پړښتون او خوله دَ سړی دَ جنب دَ حائض دَ نفسا پاکه ده - کافر (۲۲۲) یا که وی مسلمان - هسې لکه پړښتون او خوله دَ حلال حیوان - که هغه پلیتی وی چې څرګندېږی لکه وینه یا زوه، غل په لرې کول یې پاک شی عیان - بیرون چې اثر یې پاتو وی نه پرې کېږی - (۲۲۳) یا هغه پلیتی وی چې نه څرګندېږی لکه متیازې یا شراب یا په نورې هسې پلیتی پلیت وی په درې واره ولله پاک شی یا یې هومره پرېوځي چې زیات ګمان دَ پاکی پیدا شی دَ ادمیانو - که پلیتی په موزه یا پېزار وته څو درم (۲۲۴) ورسی که وچه شی په ځمکه یې ومږی - نمونځ پرې روا دے دَ ادمیانو (۲۲۵) که لرګین یا خاورین کالے، پوزے یا پلاس یا نور هسې کالے پلیت شی، په درې واره هسې ولله پاک شی چې په هر وارې څاڅکی ودری - عیان - که اسپرین یا سرولین یا دا هسې نور کالی یا تیغ پلیت شی که یو وار یې پرېوینځي پاک شی په خاورو یا په ایره یې ومږی - په تا دې وی اعلام -

که جامه له څلورمې بخرې کمه نمازی وی دَ ادمیانو نمونځ یې پرې روا دے (۲۲۵) که نورې جامې نه وی یا ابه هم نه وی چې جامه یې پرېوینځي عیان -

که جامه نه موهی نمونځ (۲۲۵) (دې) بربنډ کا په ولاړې یا په ناستې - ولې په ناستې بِه دے چې په اشارت یې کا برمنډا کسان -

منی پلیته ده - واجب دی چې ئې لونده پرېوینځی (۲۲۶) که په جامه پورې وچه شی که ئې ومږی نموځ پرې روا دے (۲۲۵) که ږمکه پلیته شی په نمر یا په وه وچه شی او اثر دَ پلیتۍ لیں نه شی نموځ پرې روا شی دَ ادمیانو-(۲۲۵) راوښیه (۲۰۷) وَ ما وته شرطونه او حکمونه دَ نمانځه په خپل فرمان او سُبحان -

او با یزید - پرهیزګاری له ګناهانو (مې) شرط کړے دے دَ ایمان (۲۲۷) دَ درستوالی دَ پاره پاکی دَ تن دَ جامې دَ ځائې له پلیتۍ شرط دے دَ نمانځه دَ درستوالی دَ پاره په ادمیانو-همره اتکل چې سجده کا او پرې کېږدی اقدام - که واړه ځائې پلیت وی بیرون هومره ځائې چې پښې پرې کېږدی یا سجده کا ترو بویه چې پرې کېږدی اقدام - که واړه ځائې پلیت وی، نمازی څخه که تِه جامه وی ترو دې ئې لاندې کا تر اقدام (۲۲۸) که ځائې پلیت نوژن وی، وچ ځائې نه موهی - که په هغه ځائې جامه واچوی یو ځ ئې په نو شی- نموځ پرې روا دے (۲۲۵) که بل رخ ئې هم په نو شی نموځ پرې روا نه دے (۲۲۵) عیان - که پاک او وچ ځائې نه موهی نموځ (۲۲۵) دې په کامی یا په لرګی یا په نور څه باندې په اشارت کا تمام -

ګوره ژغوره (۲۲۹) دَ تن دَ اندام دَ ایمان دَ درستوالی دَ پاره شرط دے له حرامو، دَ شرم ځائې پټول په حق دَ نمانځه دَ درستوالی دَ پاره شرط دے په ادمیانو-

دَ مېړه شرم ځائې دَ نوم او دَ زنګانه پورې دے - ږنګون

دے له شرم ځاۍ سره او نوم ۍ له شرم ځائے سره ګنلے نه دے۔ وَ شرم ځاۍ وته دې نه ګوری چې په ده روا نه وی عیان۔ دَ اورتې شرم ځاۍ تن دے تمام۔ ولې مخ لاس او پښې دَ نمانځه په حق دَ شرم ځاۍ نه دے۔ دَ شهوت په حق حکم ۍ دَ شرم ځاۍ دے۔(۲۳۰) دَ شرم ځاۍ وته په شهوت کاته په نا محرمانو دے حرام۔

دَ وینځې شرم ځاۍ له زنګانه دَ ګردته پورې دے ولې سر لاس پښې پنډۍ دَ شرم ځاۍ نه دے۔

که څلورمه برخه دَ شرم ځاۍ په تمام نمانځه کښې برهنه وی نمونځ (۲۲۵) پرې روا نه دے عیان۔ دَ طاعت دَ ګناه دَ وخت پېژندګلی شرط دے دَ ایمان دَ درست والی دَ پاره چې به حذر کا په وخت چې ۍ توان شی له ګناهونو۔ او په وخت دَ طاعت دې کا چار دَ احسان۔

ګوره دَ نمانځه دَ وخت پېژندګلی دَ نمانځه دَ درست والی دَ پاره شرط دی په ادمیانو۔ دَ صباح وخت صبح صادق دے۔ هغه سپېدۍ ده چې څرګندېږی په غاړه دَ اسمان۔ باقی وی څو نمروخېژی عیان۔ وخت دَ نمازپښین هغه دے چې نمر وګرځی او دَ هغه پورې باقی وی چې دَ هر څه سیورے بې اصلی سیوری یو په دوه شی۔ اصلی سیورے دَ نیمې ورځې دے په تا دې وی اعلام۔

ترو وخت دَ نمازدیګر شی دَ هغې پورې باقی وی چې نمر پټ شی تمام۔ ترو وخت شی دَ نماښام۔ باقی وی څو شفق پټ شی۔ شفق دَ سرخۍ له پسه سپېدۍ ده (۲۳۱) ترو وخت دَ نمازخفتن شی

دَ هغې پورې باقي وي چې صباح ړښتيا شي۔ عيان۔
ګوره دَ زړه دَ مخ جاريستل وَ کعبې وته دَ نمانځه دَ درستوالي دَ
پاره شرط دی پهٔ ادميانو۔ بېرون چې (دَ) دښمن يا دَ لېوه ډاړ
وی ترو دې نمونځ کا پهٔ هغه لوری چې ئې رضا وی دَ هغو ادميانو۔
که ورسی يو دَ هغه ځائې وته چې دَ کعبې رخ ئې نهٔ زده وی
وَ ده بويه هر چې ورڅخه وی (۲۳۲) هغه دې وپښتی نمونځ
پرې ړوا نهٔ دے بې پښتنې۔ پهٔ تا دې وی اعلام۔ که څوک ورڅخه
نهٔ وی پهٔ هغه لورې دې نمونځ کا چې ئې دَ زړه باوړ شی۔ که
زړه ئې باوړ نهٔ کا نمونځ دې وَ هر لوری وته کا عيان۔
روا نهٔ دے فرض نمونځ بې نفلو پهٔ سورلونی باندې بې عذره۔
روا نهٔ دے دَ فرضو دَ نمانځهٔ نيت بې نفلو دَ کعبې بې رُخه
پهٔ سوړلونی باندې که ډاړ وی هم ړوا نهٔ دے۔ که ډاړ وی
وَ سواره بويه چې مخ دې وَ کعبې وته کا دَ فرضو نيت دې وکا۔
هر لوری وته چې ځی نمونځ دې پهٔ اشارت کا تمام۔
ړوا دے نمونځ پهٔ بېړۍ کښې پهٔ ناستې يا پهٔ ولاړې ئې کا۔
که بېړۍ لهٔ کعبې لهٔ ړُخه وجاروځی نمونځ کړونے دې هم
وجاروځی مخ دې و کعبې وته کا۔ بې دَ مخ دَ جاريستلو وَ کعبې
وته نمونځ ئې روا نهٔ دے۔ عيان۔ بې جاريستلو دَ زړه دَ مخ وَ
اخلاص وته درست ئې نهٔ شی ايمان۔
ګوره دَ نيت کړه وَ ښکړې وته شرط دے دَ ايمان دَ درستوالي
دَ پاره او نيت دَ نمانځهٔ دَ درستوالي دَ پاره شرط دے پهٔ ادميانو۔
ښکاره درلهٔ دَ وخت دَ ړړه فرض دی (۲۳۳) او مستحب دے دَ

زبان - هسې دې وائي نيت مې وکړ چې لمونځ به کړم د خدائې د پاره دوه رکعته د دغه صباح په سنت د رسول عليه السلام (۲۳۳)-
د فرضو د پاره دې وائي د خدائې فرض د دغه وخت - مخ مې و کعبې وته کړ - مقتدي دې هسې دا هم وائي - تنوتم په لمانځه د دغه امام - ترو دې الله اکبر وائي - عيان -
دجمعې د لمانځه د جمعې د عيد د عيد، د وتر وتر، د نفل نفل د تراويح تراويح، د جنازې جنازې هسې د نور لمانځه د پاره دې هم نيت کا ادميان - که د لمازي يقين وي چې لمونځ د پښين کړم په ژبه بل وخت ووائي لمونځ پرې روا دے د زړه د نيت په بهنه - د زړه (نيت) بِه دے د ژبې له نيته چې دے زبان -
شرطونه او حکمونه د لمانځه يو دي په تا دې وې اعلام - ۰
د لمانځه رکنونه تکبير د تحريمه دے - ولاړه، لُستن، رکوع، سجده ناستے څو التحيات ولولي - په تا دې وي اعلام -
ګوره تکبير تحريمه حراموي په لمونځ کړونې بې د کبريا له يادو او ولاړې ليږي وَ نبي چار وته په هر ځائې چې وي او منع کوي ئې له ګناهانو او لُستن ليږي د تسبيحاتو د ژبې وَ نبې وېنا ته او منع کوي ئې له بدو کلامه او رکوع ليږي وَ خدمت و نغتې د پير تمام او منع کوي له نغتې د پيرناتمام په تا دې وي اعلام - او سجده ليږي وَ کهترې وته د زغملو، هتياطي له ګناهانو او قعود ليږي چې کښېني قرار دې شي له هغه سفره چې وي د حرامو - په ناستې دې سفر د زړه کا د هغه پورې

چې پریکا منزلونه دَ هر مقام۔

بیان دے دَ مکروهاتو دَ نمانځه او دَ جماعت (۲۰۷) راوښیه وَ ما وته په خپل فرمان او سبحان (۲۳۵)

او بایزیدا۔ مکروهات دَ نمانځه لوئې دی له تنه له جامې سره (۲۳۶) او اروهی، دَ گُتو تړکول، دَ نکیې کړه، وَ ښی وَ کیڼ لوری وته په نمانځه کښې کتل، دَ سپی په دود یاپه پلتۍ (۲۳۷) بې عذره کښیناستنه دی په ادمیانو۔ په پلتۍ ناستے په تمکک کښې روا دے (۲۳۸) که په ظاهره نمانځه کښې نه وی مکروه دے چې رکوع یا سجده کا یا سر وړاندې هسک یا کوږ کا له امامه۔ یا ئې دَ وړاندې صورت وی دَ حیوان یا ځائې برابر نه وی یا په سپکه (۲۳۹) وچه پلیتی پلیت وی یا که ځائې وی گورستان۔ عیان۔

گوره جماعت سنت موکده دے په ادمیانو۔ که یو مقتدی وی سم دې ودری په ښی لوری له امامه۔ په کیڼ لوری مکروه دی یا که له ده وړاندې شی امام۔ د اورتې امامتی مکروهه ده عیان۔ روا نه وی چې امامتی کا معذوران چې ئې وینه یا وه یا متیازې روانې وی چې دروله ئې نه شی (۲۴۰) عیان۔ نه بویه چې په هغو پسې اقتدا کا۔ هسې نه بویه چې دَ فرضو تښتن اقتدا کا په متنفلانو ادمیانو (پسې)۔ دَ ناستو امامتی روا ده دَ عذر په بهنه چې ئې کا دَ ولاړو کسانو۔ روا ده په گُډ پسې لکه روا دے نمونځ په هغو پسې چې وی متیمی ادمیان۔

بیان دَ هغو فرضو دَ واجبو دَ سنتو چې په نمانځه دَ دې په رُکن کښې وی۔ (۲۰۷) راوښیه وما وته په خپل فرمان۔او سبحان۔

او بایزید - زما دَ هستئ، دَ سترو وی په زړه یادول فرض دی چې
له یګانګئ پس حاصل دے دَ ایمان او زما دَ نامه دَ سترویٔ یادول
فرض دی په قیام - هغه چې له نیته پس وړے تکبیر دے بهتر
دے چه وائی الله اکبر عیان - که له تکبیره په بدل ئې الله
اجل، یا الله اعظم یا وائی رحمٰن - نموځ پرې روا دے - یا که وائی
معنیٰ ئې په هره ژبه ادمیان - ولاړاستل (۲۴۱) او لُستله دَ
سورت یا دَ درې ایته له قرانه - ګوره بلل او دَ لاړې وښول زما
وَ پېژندګلئ وته په قرآن واجب وی دَ ایمان او هغه واجب چې
دی په قیام لُستنه دَ الحمدُ ورسره لُستل (۲۴۲) دَ سورت دَ یوه
یا دَ درې ایتو له قرآنه چې په دهٔ وی اسان - (۲۴۳) ښکاره درله
دَ لُستو په وړمی دوه رکعته په څلور یا په درې رکعته فرض
نمانځه کښی او لُستنه دَ اللهم په وستری رکعت وتر کښې او
بې وړمی تکبیرونو دَ دوو عیدو دی عیان - په زوره لُستن په
صباح، په خفتن، په نماښام او ورو لوستن په پښین، په نمازدیګر
هم واجب دی په امام -

ګوره هغه سنت چې دی په قیام - برمنډ هسکول دَ دوو لاسو
له وړمی تکبیره سره له غوږو پورې - په ارتې ګُتې - ښے لاس
په کیڼ لاس په نامه یا ترې لاندې ترینه (۲۴۴) اوړتینه دې
په سینه کیږدی عیان - نظر دې دَ سجدې و ځائې وته کا - پښې
دې څلور ګُتې مقدار ارتې کیږدی - ترو سبحانك اللّٰهم دَ لااله غیرك
پورې ترو اعوذ بالله من الشیطٰن الرجیم ترو بسم الله الرحمٰن الرحیم
و لا الضالین پس (۲۴۵) امین پورې وائی (۲۴۶) ادمیان -

ګوره فرض دَ ایمان مې اخلاص دے او واجب ئې ادب دے سنت ئې ښښکړه دَ رنګارنګ الوان۔
دَ رکوع فرض رکوع دے واجب ئې قرارے دے سنت ئې چې دَ رکوع په وخت دې تکبیر وائی وَ پښو وته دې ګوری۔(۲۴۷) په دوه لاسه دواړه زنګونه په ارتې ګوتې ونسی سبحان ربی العظیم دې درې واره وائی ترو دَ رکوع پس دې قرار ودری په قیام۔ سمع الله لمن حمده دې وائی امام۔ ربنا لك الحمد دې وائی مقتدیان پس له امامه۔
ګوره کهتری حلیمی عاجزی نیکخوئی فائده ده دَ ایمان۔
فرض دَ سجدې سجده ده۔ قراری او ترتیب دَ نمانځه په سجده کښې واجب دی عیان۔ سنت ئې چې دَ سجدې په وخت دې تکبیر وائی او سجده دې کا په اووه اندامه په لاس په پښې په زنګون په ځ ادمیان۔ دوه لاس دې سجده کښې له غوږه سره سم کېږدی دَ ګتو سرونه دې قبلې وته کا۔ په سجده کښې دې درې واره سبحان ربی الاعلیٰ وائی۔ ورنونه دې له ګېډې پستنه لری۔ عیان۔ وَ پوزې وته دې ګوری۔ قرار دې کښېنی دَ دوو سجدو په میان ادمیان۔ ګوره قرارے په دوه حاله ښښکړه ده دَ ایمان چې قرار دې شی په ورځی حال له ګناهانو او په وستری حال له خوئی دَ ادمیانو۔ او وسترے ناستے فرض دے ورے ناستے او دَ التحیات لُستل په دواړو ناستو (۲۴۸) کښې واجب دی له نمانځه وتل په سلام۔
ګوره په ناستی کښې سنت دے چې کینه پښه خملوی۔ ښی

دې دَ ګټو پـه سینه ولاړه لری- دوه لاسه دې پـه ورنونو باندې کیږدی عیان - دَ ګټو سرونه دې وَ قبلې وته کا- خپسر(۲۴۹) وته دې ګوری- صلوٰة پـه التحیات پسې پـه وستری ناستی کښې دې لولی- وړمبے وَښی دَ پسه وکیڼ رخ وته دې لی سلام-

اوبا یزید- هرچې ئې رضا وی چې پـه نمانځـه ننوځی لـه ادمیانو ترو بویه چې لـه نیته وړاندې دې اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ لـه اخره پورې پـه ژبه وائی پـه زبان-(۲۵۰) او انی وجهت او سبحان الله دې اخره پورې ولولی تمام- دغه پسه دې نیت کا دَ نمانځـه- ترو دې تکبیر وائی لـه تکبیرة پسه دې سبحانك اللّٰهم ترو اعوذ بالله عیان- او بسم الله دې اخره پورې وائی ادمیان- دَ هغه پسه دې الحمد لله ولولی ترو لـه ولا الضالین پس دې پـه ورو امین وائی پـه تا دې وی اعلام-(۲۵۱) ترو دې سورت یا یو وړد ایت یا درې یا زیات لـه قرانه ولولی هغه چې پـه دهٔ وی اسان-(۲۵۲)

دَ ولاړې دَ فرضو دَ واجبو دَ سنتو لـه ادا کولو پس دې تکبیر وائی- ترو دې رکوع کا دَ هغه پورې چې پـه رکوع کښې قرار شی دَ هغه پسه دې تکبیر وائی (۲۵۳) سر دې هسک کا دَ هغې پورې څو قرار ودری پـه قیام- ترو دَ رکوع دَ فرضو دَ واجبو دَ سنتو لـه ادا کولو پس دې تکبیر ووائی -(۲۵۳) ترو دې سجده کا- پکښې دې قرار شی- پـه تا دې وی اعلام- ترو دې تکبیر ووائی او سر دې هسک کا ترو دې کښېنی دَ دوو سجدو پـه میان- ترو دې تکبیر وائی ترو دې بله سجده کا دَ هغې پورې څو پکښې قرار شی عیان-(۲۵۴) ترو دَ سجدې دَ فرضو دَ واجبو دَ سنتو لـه ادا کولو

پس دې ولاړ شي-(۲۵۵) ترو دې دوه وم رکعت هم هسې وکا-ترو دې تکبیر وائی- ترو دې کښیني التحیات دې ولولی عیان-زبات دې نه لولی په وړمی ناستی کښې ادمیان-چې په وړمی واړ هسې دې په وستری نمانځه کښې التحیات ولولی دَ پسه دې صلوٰة لولی تمام-په واړه نمانځه کښې دې زړه وما وته حضور لری او ما دې یاد لری لکه مخلصان ادمیان-او پستنه دې اوسی له نمانځه دَ منافقانو-زه په هغه لعنت کړم چې تن ئې زما په بندګۍ ولاړ وی په زړه کښې ئې زما طلب تسبیح، حضور، پېژندګلی او یاد نه وی او بندګی ئې په سستۍ په رسم په عادت وی او بې ما په نور څه مشغول وی په پنځې ور په عیان-

دَ ناستې دَ فرضو واجبو سنتو له ادا کولو نه پس دې له نمانځه راووځی په سلام-وړمے دې وَ ښی لوری وته وائی السلام علیکم ورحمة الله دَ پسه وَ کیڼ رخ وته ادمیان-

هر کله (۱۳۷) الحمد او سورت په وستری رکعت په وتروکښې ولولی ترو دې تکبیر وائی دَ هغه پسه دې اللّٰهم انّا دَ اخره پورې و لولی عیان-ترو دې تکبیر وائی رکوع او سجود دې وکا ترو دې نمونځ کا تمام-

بیان دې دَ هغو چارو چې سجده پرې واجبه شی (۲۰۷) راوښیه وَ ما ته په خپل فرمان او سبحان-او بایزید سجده واجبه شی چې دَ دعا په ځائې قرأت یا دَ قرأت په ځائې دعا لولی-چې دَ په زوره لُست وخت وی په وروچې دَورو وخت وی په زوره ئې لولی امام-چې دَ ناستی په ځائې ولاړ شی یا کښیني په ځائې دَ

قیام۔ چې الحمد پهٔ ورو وړمی رکعتو پهٔ څلورو فرضو کښې بې سورته لولی یا چې ئې الحمد پهٔ دوو وسترپو رکعتو کښې وهېره شی پهٔ نا دې وی اعلام۔ یا چې اللّٰهم انا پهٔ وترو کښې وهېره شی یا دَ دواړو عیدو تکبیرونه ئې وهېر شی یا چې نمونځ ئې تمام کړے نهٔ وی سلام لی یا چې ئې تمام کړے نهٔ وی نهٔ لی سلام۔

او با یزیدا۔ هر چې پهٔ رکوع کښې بیا مومی امام ترو بویه چې لهٔ رکوعه وړاندې وی تکبیر پهٔ ولاړې ووائی کهٔ تکبیر پهٔ ولاړې ووائی او پهٔ رکوع کښې نهٔ مومی امام نمونځ دې ورسره وکا ولې هغه رکعت دې نهٔ ګڼینه لهٔ امامه۔ یو دې بل کا تمام۔

ګوره بیان دَ قضا چې ئې وهېره شوې وی۔(۲۵۷) او ترتیب دې ئې فهم لری تر هغه پورې چې شپږ وقته تیر شی تمام بیرون چې وقت تنګ وی ترتیب ساقط شی چې ډېر قضا شی یا چې وقت تنګ وی یا چې ئې وهېر شی پهٔ نا دې وی اعلام۔ او حد دَ ترتیب هغه دے چې شپږ وقته تېر شی دَ هغې پس دې چې ئې رضا وی وختی دې قضا کا ادمیان۔

ګوره دَ هغه وخت چې نمونځ مکروه دے هوی دے بیان۔ لهٔ صباحه۔(۲۵۸) پس څو نمر وخیژی، پس پهٔ نیمه ورځ دَ نمازدیګر پس مکروه دے څو شی نماښام (۲۵۹) بیرون کهٔ هغه قضا کا چې ترتیب ئې ساقط نهٔ وی۔ دَ تلاوت سجده هم روا دهٔ پهٔ ادمیانو۔

ګوره دَ سنت مؤکده دے بیان۔ (۲۰۷) دوه رکعته دَ صباح لهٔ فرضو وړاندې وی او شپږ دَ پیښین۔ څلور لهٔ فرضو

وړاندې او دوه دَ پسه وي - دوه رکعته دَ نماښام (۲۵۹) له فرضو پس وي او دوه رکعته دَ نمازخفتن له فرضو پس وي - (۲۶۰) عیان -

ګوره چې فرض دَ نمانځه ترک کا نمونځ ئې مطلق روا نه دے - چې واجب په زده ترک کا نمونځ پرې شینه ناتمام - چې واجب ئې وهېر شي سجده پرې واجبه شي که سنت کا نمونځ پرې روا دے په ملامتې دَ ادمیانو -

ګوره دَ مسافر دَ نمانځه دے بیان (۲۰۷) که سړے وَ یو ځائې وته نیت کا چې دَ ده او دَ هغه ځائې په میان لار دَ درې منزلو دَ اتمې میاشتې بارداري اورتې تګ وي - چې له کوره ووځي مسافر شي - عیان - په څلورو رکعتو فرضو کښې دې دوه وکا - که ئې رضا وي روژه دې لری یا دې وخوری دَ رمضان - که مسافر په ښهر کښې دَ پنځلسو شپو ورځو نیت کا مقیم شي نمونځ دَ مقیمې کا - که بې ښهره نیت کا مقیمې نه شي - که په خیمه کښې وه بېګمان - که له مقیم ځائې وَ سفر وته ووځي سفری شي - مقیمی به ئې ولاړه شي - که بیا دَ هغه ځائې وته وجاروځي څو نیت دَ مقیمې نه کا مقیمی نه شي - بېرون چې ورشي وَ خپل ځائې وته عیان - که مسافر په ښهر کښې ننوځي او نیت دَ مقیمې نه کا - هسې وائي کانده یا بل ګه په ووځم (۲۶۲) که یو کال پکښې پاتو شي مقیمی نه شي په تا دې وي اعلام - که چا نمونځ په مقیمې کښې قضا کړے وي په سفر دې مقیمی قضا کا او که ئې په سفر قضا کړے وي په مقیمې دې سفریان قضا کا عیان -

نمانځه مکروه دی چې ئې اروی - ولې دَ خطبې په محل په غافل
روا دی په ذاکر روا نه دی چې لولی قرآن - (۲۷۰)

او دَ جمعې نمونځ روا نه دے په مسافر په اورته ، په رنځور
په بنده - که یو له دوئ حضور شی نمونځ ئې روا دے له
هغه جماعته سره فرض وختی روا دے له امامه - روا دی چې په
جمعه په امام پسې دې اقتدا کا او هر چې دَ نماز پېښېن (۲۷۱) په
خپل ځائې له امامه وړاندې وکا - نمونځ ئې په کراهیت شی په
تا دې وی اعلام - چې دَ ادینې نمونځ تمام کا ترو دې پر ږمکه
پرېشان شی ادمیان - له ما دې غواړی بښګړه احسان - ما دې ډېر
یادوی بل نیکوکار شی ادمیان -

<u>کوره دَ عید دَ نمانځه دے بیان</u> - (۲۰۷) په کم عید ثواب دے
چې له نمانځه وړاندې وخوری له اتامه - بنه یا پاکه جامه دې
واغندی چې لری - په تن او په جامه دې خوشبوی پورې کا هر
چې لری - عیان - مسواک او غسل دې وکا - سرسایه دې دَ عید
له نمانځه وړاندې ورکا - دَ عید دَ نمځدک په لار دې تکبیر
په زوره وائی عیان - نفل نمونځ (دې) دَ عید له نمانځه وړاندې
نه په کور نه په نمځدک (کا) (۲۷۲) دا ثواب دے دَ نمونځ کړونی
په تا دې وی اعلام -

دَ کم عید په نمانځه کښې یوولس تکبیرونه دی - شپږ په
وړمی رکعت او پنځه په دووم کښې - او واجب دی دَ ستر عید په
نمانځه کښې نه (۲۷۳) تکبیرونه دی پینځه دې په وړمی رکعت
وائی او څلور په دووم کښې عیان -

بیان دَ جُمعې دَ نمانځه دَ سرسائې او دَ دوؤ عیدو دَ نمانځه (۲۰۷) ړاوښیه و ما وته په خپل فرمان او سبحان۔

او بایزید دَ جمعې نمونځ په هغه ښهر فرض دے چې دَ جمعې (۲۶۳) پکښې قاضی ، امرا او دَ شریعت وی احکام۔ چې بانګ زن دَ جمعې بانګ لی بویه چې سودا دې پرېږدی دَ جهان۔ دَ غسل تابیا دې وکا۔ ترو دَ جمعې وَ نمځدک وته دې روان شی ادمیان۔

حکم دَ ادینې دَ نمانځه هغه دے چې دَ جمعې نمونځ دې په نمازېښین کا (۲۶۴) او له شرطو ئې چې خطبه دې له نمانځه وړاندې لولی۔ (۲۶۵) او نمونځ دې په جماعت کا او لږ حد دَ جماعت درې کسه دی بې امامه۔ امام دې دوه رکعته په زوره لولی ولې سورت پکښې نه دے عیان (۲۶۶) دَ جمعې دَ نمانځه په وقت دې دَ نمځدک ور نه ترې ادمیان۔

دَ جمعې نمونځ لس رکعته دے۔ څلور رکعته سنت دې دَ جمعې کا او دوه رکعته فرض دې دَ جمعې کا له امامه۔ بیا دې څلور سنته له الحمدُ له سورته سره کا او نیت دې هسې کا چې وَ ما وته نژدے دے عیان (۲۶۷)۔

هر چې معذوری ئې وی دَ جمعې نمونځ دې په جماعت نه کا۔ په ښاره (۲۶۸) یا په کلی کښې له جماعته سره دې دَ نمازېښین کا له امامه۔ هر چې په وسترۍ ناستی یا په سجده سهو (۲۶۹) کښې مومی امام۔ نمونځ پرې روا دے که له امامه سره دې موافق کا۔ ترو دې پاڅی خپل نمونځ دې کا تمام۔

چې خطیب خطبه لولی دَ دنیا کیس او نفل نمونځ بې قضا

دي هر چې دَ عيد په نمانځه کښېوځی تکبير تحريمه او دَ دې دَ پسه دې وائی(۲۷۴) لاس دې ځوړند لری شو تکبيرونه کا تمام۔ دَ پسه دې سبحانك اللّٰهم ترو اعوذ باللّٰه ترو بسم اللّٰه ترو الحمدُ دې له سورته سره ولولی(۲۷۵) ترو دې تکبير ووائی رکوع دې وکا۔(۲۷۶) ترو دې دَ دووم رکعت په لُستن اغاز کا چې له لُستن خلاص شی ترو دې درې وارې تکبير ووائی ترو دې څلورم تکبير ووائی په هغه دې رکوع کا او نمونځ دې کا تمام۔ هر چې په رکوع کښې بيا مومی امام او تکبيرات وئيلے نه شی وَ ده بويه چې تکبيرات دې په رکوع کښې قضا کا۔ تکبيرونه دې دَ رکوع له تسبيحاتو وړاندې لری عيان۔ که څوک په ولاړه کښې بيا مومی امام که ولاړه يا څنې تکبيرونه ئې وئيلی وی ترو بويه چې ئې قضا کا په قيام۔

گوره دَ عيد دَ نمانځه دَ وقت دے بيان (۲۰۷) اغاز دَ عيد دَ وقت چې نمر وخيژی دَ هغه پورې باقی وی څو چې وجاروځی عيان۔ چې وجاروځی ترو وخت ئې ووځی۔ دَ عيد نمونځ دَ پسه روا نه دے وَ ده بويه چې په دوه ومه ورځ دې ئې قضا کا۔ په دريمه روا نه دے بېرون دَ ستر عيد نمونځ دَ عذر په بهنه روا دے په تا دې وی اعلام۔

دَ عيد له نمانځه وړاندې خطبه روا نه ده بېرون دَ جمعې په ورځ چې له نمانځه وړاندې دې خطبه لولی۔ حکم دَ ستر عيد دَ نمانځه هسې دے چې دَ کم عيد وی احکام۔ دَ ستر عيد ثواب هغه دے چې دَ عيد له نمانځه وړاندې څه نه خوری نه وڅښی او ثواب دے چې خوری له قربان۔

پڅې راغلے وی پهٔ هغه لاړ دې نهٔ ځی پهٔ بله لاړ دې شی روان. هغه تکبيرونه چې لهٔ فرضو پس دی هسې دې وائی. الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله وَالله اکبر. الله اکبر. وَلِلّٰه الحمد. درې وارې عيان.

پاکی دَ حيض دَ نفاس. راوښيه وَما وته پهٔ خپل فرمان او سبحان (۲۰۷).

او بايزيد. کهٔ اورته لهٔ لسو شپو (۲۷۷) وړاندې پاکه شی نمونځ او صحبت لهٔ غسله وړاندې روا نهٔ دے. پهٔ تا دې وی اعلام.

ګوره دَ حيض دَ نفاس پهٔ حالت صحبت دے حرام. هرچې پهٔ غلطۍ يا دَ شهوت پهٔ هوس صحبت کا وَ هغه بويه چې ډير استغفار دې وائی. يو يا نيم دينار دې ورکا دَ ګناه دَ کفارت دَ پاره وَ فقيرانو. عيان. (۲۷۸).

اغاز دَ حيض مې لهٔ حوّا پيدا کهٔ چې پهٔ بهشت کښې ئې زما بېفرمانی کړه ځکه مې پهٔ دا عذر مبتلا کړه پهٔ تا دې وی اعلام کهٔ دَ اوو کالو يا دَ انو کالو نجل وينه ووينی هاله (۲۷۹) کښې اختلاف دے. کهٔ دَ نو (۲۸۰) کالو نجل وينه ووينی. هغه وينه دَ حيض ده. لږ مدت دَ حيض درې شپې ورځې دے او زيات ئې لس شپې ورځې دے عيان. هره وينه چې لهٔ درې ورځو وړاندې يا لهٔ لسو شپو پس ووينی هغه دَ استحاضې ده. پهٔ هغه حال کښې نمونځ، روژه، صحبت روا دے پهٔ ادميانو. لږ مدت دَ پاکۍ پنځلس شپې ورځې دے دَ زيات ئې (۲۸۱) نشته بيان. کهٔ لهٔ لسو شپو پس پاکه شی او لهٔ پنځلسو وړاندې بيا وينه ووينی هغه وينه

دَ استحاضې ده پهٔ تا دې وی اعلام۔

کهٔ عادت ئې لس یا اووهٔ شپې ورځې وی یو وار ئې وینه
پهٔ پینځهٔ یا پهٔ درې ورځو کښې ودری نو ئې بویه چې نمونځ دې
کا، روژه دې لری او صحبت دې نهٔ کا۔ دَ عادت دَ جاروتلو دَ پاره
دې بې عبادته ونه اوسی۔ دَ عادت جاروانهٔ یو وار بس دی عیان۔

گوره دَ نفاس دے بیان۔(۲۰۷) زیات مدت دَ نفاس څلویښت
شپې ورځې دے (۲۸۲) او دَ لږئې نشته بیان۔کهٔ دَ چا ځامن
وزیږی پهٔ هغه ساعت ئې وینه ودری حکم ئې دَ پاکئ دے۔
کهٔ دَ څلویښتو ورځو پس بیا وینه ووینی هغه وینه دَ استحاضې
ده (۲۸۳) پهٔ تا دې وی اعلام۔

کهٔ لهٔ څلویښتو شپو وړاندې وینه ودری نمونځ دې کا
روژه دې لری لهٔ میړهٔ سره دې نزدیکی نهٔ کا۔ بې عبادته
دې نهٔ اوسی څو څلویښت شپې ورځې ووځی۔ تمام

هر چې ئې دوه ځامن وزیږی هغه وینه لهٔ وستری زامنه
پس ووځی دَ نفاس پهٔ حساب دې ئې گڼی۔ عیان۔

بیان دَ معذور دَ بانگ دَ جنازې۔راونسیه وَما وته پهٔ
خپل فرمان او سبحان۔ (۲۸۴)

او بایزید چې ئې وینه یا وهٔ یا متیازې روانې وی یا هغه
چمجے چې ووځی دَ دهٔ بې اختیاره لهٔ وستری اندامه، هغه معذور
دے عیان۔ کهٔ پهٔ هر وقت اودس کا نمونځ پرې روا دے
کهٔ پکښې جراحت وی روان۔ پهٔ تا دې وی اعلام۔

چې وقت ووځی اودس ئې مات شی و ادا کونی بویه (۲۸۵)

چې په ورځې وقت دې ادا کا - کاهلي دې نه کا ادمیان -

کوره بانګ نماز سنت موکده دے دَ پینځه وقتو او دَ جمعې دَ پاره - دَ عید او دَ جنازې دَ پاره روا نه دے په ادمیانو که پریږدی بانګ قامت ښهریان واجب دی په بادشاه چې ورسره ونښلی له هغو ښهریانو سره دَ قامت دَ بانګ دَ پاره چې دے اذان -

هر چې بانګ نماز په ځدک کښې وائی او ګوک ئې په خپل کوز واروی ویل ئې په ده بانډې بیا روا دی - که نه وائی بزه کاز نه شی - په تا دې وی اعلام -

دَ قضا نمانځه دَ پاره ، دَ ورځې نمانځه دَ پاره بانګ قامت روا دی - دَ نور نمانځه دَ پاره اختیار لری - له وقت وړاندې بانګ روا نه دے بیرون دَ صباح - عیان -

دَ بانګ وئیل مکروه دی په ړانده ، په کوچي (۲۸۶) په ناپوه په بنده ، په هرموني ، دَ وقت په ناپېژندوني په جنبان - په اودس ماتی روا دے ولې قامت وربانډې مکروه دے - بانګ او اقامت دې درست وائی موذنان هسې شکل الله اکبر دَ اخره پورې تمام - په صباح دَ فلاح پسې الصلوٰة خیر من النوم دې دوه وارې ووائی (۱۸۷) لکه بانګ هسې دې قامت وائی - له فلاح پس دې دوه وارې قد قامت الصلوٰة هم وائی په تا دې وی اعلام (۲۸۸) .

تلوار دې نه کا په قامت کښې او نه دې کا په بانګ چې بانګ قامت وائی مخ دې کعبې وته کا - دَ محلت دَ ځدک دَ بانګ ځواب واجب دے - هر چې بانګ زن بانګ وائی اروېدونی

دې هم هسې وائی عیان - بانگ زن چې صلاة فلاح وته ورسی ځ
دې وَ ښی و کیږ رخ وته وگرځوی بې اقدامه - چې ئې اروی هغه
دې هم وائی لا حول دَ عظیم پورې تمام -

قرار دې شی دَ دنیا له وېنا او له چارې ئې هرچې اروی
بانگ چې دے اذان - ځواب دې وائی یا دې نه وائی بیرون دَ
خپله ځمځدک هر چې اروی په وقت چې لولی قرآن - (۲۸۹)

گوره فرض دوه لونه دے - فرض عین او کفایت دے عیان
فرض عین فرض وقتی دے او فرض دائم مدام - فرض وقتی
بنیاد دَ مسلمانۍ دے او چې زده کوی پوهه دَ پیغمبرانو -
فرض دائم چې ما ډېر یادَوی په پټې په هر حال په ځائې
ادمیان - په ادا کولو دَ فرض عین گردن خلاص شی دَ ادمیانو -
فرض کفایت که یو له جماعته ادا کا گردن ئې خلاص شی دَ
نورو کسانو عیان -

فرض کفایت علمِ فقه، نمونځ دَ جنازې، له درې ورځو پس
دَ رنځور پُښتنه ځواب دَ نږی دے او سلام - دَ نږی تښتن دې
الحمد لله رب العلمین وائی - اروېدونے دې یرحمك الله وائی -
دَ سلام ځواب چې مُسلمان وائی السّلام علیکم چې ئې اروی
هغه دې وائی علیکم السّلام -

نیت دَ جنازې دې هسې کا - نیت مې وکه چې نمونځ
کړم په څلور تکبیره نمونځ دَ جنازې، ستود دَ خدائې، رحمت
په مصطفیٰ، ثواب دَ دغه مړی ځ مې وَ کعبې وته ترو دې
الله اکبر وائی عیان - ترو دې سبحانك اللّهم ولولی - بیا دې تکبیر

وائی ترو دې صلوٰة دعا (۲۹۰) ولولي له مجیده پورې عیان۔
ترو دې تکبیر وائی ترو دې دعا ولولی۔ ترو دَ څلورم تکبیرہ پس
دې لی سلام۔

بیان دَ روژے او کفارت ئې راوښيه وَما وته په خپل
فرمان او سبحان۔ (۲۹۱)

او بایزیں۔ روژه دَ رمضان له نیته سره فرض ده که
عاقل بالغ وی، په امتی دَ محمّد علیه السّلام۔ روژه روا ده په
نیت دَ شپې که ئې وهېر شی۔ نیت ئې روا دے پخوا چې نمر
وچاروځی عیان (۲۹۲)

وَ ما وته دې له نیته وړاندې هسې وائی (۲۹۳) یا خدایه
روژه مې درله تا لره توکل باور مې په تا دے او ستا په رزق
روژه کښایم ترو دې څه وڅښې یا و دې خوری له اتامه۔
له کښائیلو پس دې نیت کا چې ګانده به فرض روژه لرم
که خواست وی دَ سبحان۔

روژه له خوړو له څښو له سره وطی (۱-۲۹۳) منع کا چې
شپې ادمیان۔ ماته نه شی فرض روژه نه نفل که په وهېره
څه وخوری یا وڅښی یا صحبت کا یا واچوی بیرون په قصد۔
نه چې ئې غلط کا شیطان۔ چې په قصد واچوی روژه ئې ماته
شی یو دې قضا ولری ولې کفاره پرې واجبه نه شی۔ په تا
دې وی اعلام۔

په روژه دَ سترګو تورول (۲۹۴) دَ دنیا دَ ښائسُت دَ پاره
بیرون دَ دارو۔ دَ ناروا کښلول، دَ لوبې کړه له هغه مکروه دی

په ادمیانو - که روژه دار له خپلې اورتې سره لوبې کا - منی یې ووځی (۲۹۵) روژه یې ماته شی - یو دې قضا ولری کفاره پرې واجبه نه شی - که منی یې نه ووځی روژه یې ماته نه شی - عیان - که دَ روژه دار کم کاڼے یا دَ اسپنې خزرے یا هډوکے یا نور دا هسې ونغړ شی روژه یې ماته شی - یو دې قضا ولری کفارت پرې واجب نه شی په تا دې وی اعلام - روژه ماته شی په بې عذاره ، په قصدا خوارهـ ، په څښه ، په صحبت ، کفارت پرې واجب شی بې ګمانه - کفاره دَ روژې ازادول دَ برده دی زما په لاره که توانګر وی - تمام - او که پار دَ برده دَ ازادی نه لری دوه میاشتې دې پیوست روژه لری نه دې خوری په ورځ په دا میان - هر چې وخوری (۲۹۶) له سره دې یې کښی - په تا دې وی اعلام - که دَ روژې پار نه لری - دَ هرې روژې دَ پاره یو یو په اوړې وربشې یا نیم نیم په اوړې یا بها دې ورکا وَ شپیته فقیرانو یا دې وخروی دوی په اتام - (۲۹۷)

نه بویه وَ روژه دار چې په غوړو غوړ وڅخوی یا په پوزه ابه وښی یا غرغرې کا یا ګتهه غړوی په اندام - له استنجا دې هومره نه پاڅی څو په څیز ومړی اندام - بل ابه نه ننووځی په اندام دَ ادمیانو -

دَ روژې ماتول په مسافر په باردارې اورتې (۲۹۸) چې دَ روژې په بهنه یې دَ تن یا دَ ځامن دار وی او په رنځور چې دَ روژې په بهنه یې رنځ زیات شی عیان - روژه په حائضې په نفسا باندې ده حرامه - په قضا درله دې بیره

کا صدقه پهٔ دوی نهٔ ده - عیان - که هسې زوړ وی چې روژه درلے نهٔ شی روژه دې ماته کا - دَ هرې روژې (۲۹۹) دَ پاره لکه کفارت هسې دې ورکا وَ فقیرانو اتام - که ومری میراث خوړ دې ورکا دَ ده لهٔ غلې دَ هرې روژې دَ پاره دَ کفارت پهٔ نیت که وصیّت ئې کړے وی - بې وصیته پهٔ ده لازم نهٔ دی - عیان -

که وړوکے بالغ شی یا کافر مُسلمان شی پهٔ رمضان - دغه پسه دې روژه لری او قضا دې نهٔ لری لهٔ هغه وړاندې چې ئې خوړلی وی پهٔ رمضان - هر چې بې هوښه یا لیونے شی پهٔ رمضان هغه روژه چې لیونتوب بېهوښی ورغلې وی قضا دې ولری ور دَ هغې پس او نهٔ دې لری پخوا چې ئې خوړلی وی ادمیانو - (۳۰۰)

که څوک دَ سحر یا دَ ماښام پهٔ بهنه څهٔ وخوری که ګوری صباح وی یا نهٔ وی ماښام یوه روژه (دې) دَ هغې پهٔ ځائې قضا ولری او کفارة پرې واجب نهٔ شی - عیان -

مکروه دی چې پهٔ ژبه څهٔ وڅبښی یا ژاوله ژوی یا دَ وړکی دَ پاره وژوی لهٔ اتامه یا کبنل کا یا ورسره لوبې کا لهٔ هغو چې ناروا دی پهٔ ادمیانو -

وَ سړی بویه چې پهٔ نوښتمه شپه هر یو لهٔ عاقلو میاشت وته دې ګوری پهٔ شعبان - که څوک ئې ووینی روژه دې ولری که ئې نهٔ ووینی روژه دې نهٔ لری دَ هغې پورې څو مدت تمام شی دَ شعبان - که یو کس ووینی میاشت دَ رمضان ګواهی دې ئې قبوله کا دَ عدل دَ پاره امام که علت

وی په اسمان کښې۔ عیان۔ په دیدن دَ میاشتې مېرهٔ یا اورتهٔ ساوو یا بندهٔ سم وی په تا دې وی اعلام۔ که علت نه وی په اسمان ګواهي دې نه قبلوی امام بیرون دَ ډېرو ادمیانو۔ که دَ کم عید میاشت یو کس وویني روژه دې نه کښائی که علت وی په اسمان (کښې) عیان۔ ګواهي دې نه قبلوی امام بیرون که دوه مېرهٔ یا یو مېرهٔ دوه اورتی وی په تا دې وی اعلام۔ که علت نه وی په اسمان (کښې) ګواهي دې نه قبلوی امام بیرون دَ ډېرو ادمیانو۔

ګوره دَ زکوٰة او دَ توانګرانو دے بیان (۲۰۷) راوښیه وَ ما وته په خپل فرمان او سبحان (۳۰۱) او بایزید۔ زکاة فرض دے په هر توانګر چې ازاد، عاقل، بالغ وی له مسلمانانو چې زکاة دې وباسی دَ مال دَ تن دَ زړهٔ دَ ایمان۔

که دَ ده له دوه سوه درمه له خرڅه زیات وی یا ښلوېښت خرنده پسونه یا دېرش خرنده غوا یا پینځه خرنده وی اوښان۔ یا اس یا اسپې یا کالی دَ بازرګانۍ وی چې دَ دوو سوو درمو ئې بها وی او کال په دوئ تېر شی تمام هغه توانګر دے عیان۔

نشته په ورکی نه په لبونی نه په مال ازاد شوی بندګانو۔ حسیب دې نه کا په مال کښې کور نه جامه دَ اغُستن او نه دَ تیغې خریان نه کیږدی، نه لیږدی نه دَ ژواک بندګان۔ په تا دې وی اعلام۔ نه دَ اورتې پسول (۳۰۲) بیرون له اوربهٔ دَ زېرو یا دَ سپینو زرو نه وسله دَ مېرهٔ۔ نه لږ مات زېړ

سپین زر پهٔ نظر دَ اوولې جامه او نشته زکاة دَ لوښي پهٔ ادمیانو۔

ګوره دَ زېړو دَ سپینو زرو دَ زکات دے بیان۔ (۲۰۷) دَ زېړو زرو لهٔ شلو نیم مثقال دے او دَ سپینو زرو شلوېښتم مثقال دے۔ (۳۰۳) روا دی چې ورسره کا بها دَ کالی چې ئې دَ بازرګانی وی لهٔ زېړو لهٔ سپینو زرو سره ادمیان۔

ګوره دَ کرلې دَ میوې دَ زکات دے بیان (۲۰۷) هر چې لهٔ زمکې را ووځی لسمه ئې واجب ده چې ئې وباسی کهٔ پهٔ نورو ابو پېدا شی یا پهٔ ابو دَ اسمان کهٔ مېوه ئې دَیو کال پوره وی تمام (۳۰۴) بې لرګیه بې نله بې وښو بې زرغنکی عیان۔ کهٔ مېوه پینځهٔ باره شی بار شپیتهٔ پهٔ اوړی وی دَ نبی پهٔ اوړی علیه السّلام او اوړی اتهٔ پهٔ سېر دے او هر سېر پهٔ درنوالې دوه شلې ستارې دی۔ پهٔ تا دې وی اعلام۔

لهٔ هغه چې دَ کوهی پهٔ ابو پېدا شی او شلمه دې وباسی لهٔ پومبې کهٔ دَ پینځهٔ خرواره غلې ئې بها شی لسمه دې وباسی هم کهٔ پینځهٔ پهٔ من شی لهٔ زعفرانه (۳۰۵)

دَ ګبینهٔ دې لسمه وباسی کهٔ پهٔ عشری زمکه وی اوړی دَ مټ پهٔ حسیب۔ مټ شپږ دېرش پهٔ سېر دے (۳۰۶)۔

ګوره دَ پسو دَ زکاة دے بیان (۲۰۷) کهٔ شی څلوېښت څرنده ګان کال پرې تېر شی تمام۔ یو دې ورکا دَ سلو شلو پورې۔ کهٔ یوزیات شی دوه دې ورکا کهٔ دوه سوو پورې پهٔ تا دې وی اعلام کهٔ یو زیات شی درې دې ورکا کهٔ څو تېر سونه نوی شی۔ کهٔ څونسوشی څلور دې ورکا تر و پهٔ هر و سلو پسې یو یو پسه دې ورکا۔ دَمېنې دَ وزې زکاة همان دے پهٔ ادمیانو۔

ګوره زکاة دَ غوبنو دے بیان - (۲۰۷) که دېرش څاروی شي هاله کښې زاړے دے که کال پرې تېر شي تمام۔دَڅلوېښتو بوارے دے۔ دَ شپېتو دوه زاړی وی په توانګرانو۔له اویاوُ زاړے او بوارے۔ له اتیاؤ دوه بواری دی۔له نوی درې زاړې دی۔او له سلو دوه زاړی یو بوارے دے۔ترو په هرو لسو زاړے بوارے واجب شي۔

دَ غوا دَ مېښې زکاة یو شکل دے په ادمیانو۔زکاة نیوونے دې میان ونسی له څناورانو۔

که زیات شي له کاله وړاندې مال دَ توانګرانو۔په هغه ځنس دې له ماله سره وګڼی زکاة دې وباسی یا هغه چرندګان چې ئې زیات کاله یو نه تېر شي ورسره دې وګڼی۔که دَ چا مال له زکاته وړاندې یا پس (۳۰۷) ورک شي ګردن ئې خلاص دے عیان۔

ګوره دَ اوښانو دَ زکاة دے بیان (۲۰۷) له پینځو کښته نشته۔بیان (۳۰۸) که پینځه شي چرندګان کال پرې تېر شي تمام۔ یو (پسه) دې ورکا په لسو کښې وَ دوه پسونه دی په پینځلسو کښې درې دی څلور دې ورکا که شل اوښان شي تمام په پینځویشت کښې زاړے دے۔په شپږ دېرش کښې بوارے دے په شپږ څلوېښت کښې دوه غاښے دے۔په یو شپېته کښې څلور غاښے دے په شپږ اویا کښې دوه زاړی وی په یو نوی کښې دې دوه، دوه غاښی ورکا دَ سل شل پورې۔ترو دې ګڼی چې روا دی په ادمیانو۔

گوره زکاة دَ اس دَ اسپې دے بيان -(٢٠٧) که څوک اس اسپې لری کال پرې تېر شی تمام تبنتن ئې اختيار لری چې يو دينار دې ورکا دَ هر خريان يا دی ئې بها کا له دوه سوو درمو دې پينځه ورکا تمام -په تا دې وی اعلام- نشته زکاة دَ اس نه دَ قچر نه دَ خر بيرون که دَ بازرګانی وی عيان-

گوره چې زکاة پرې روا دے او پرې ناروا دے دَ هغو دے بيان (٢٠٧) روا دے پر هغوی چې لږ لری پر هغوی چې نه لری پر هغو چې لږ خواړه ورکړی وی دَ ديو بادشاهانو- پر هغو چې په مال ئې ازاد کړی وی په هغو بنده ګانو، پر هغوچې پوره وړی وی پر هغو چې دَ کور له ماله ګوښې وی- ترو بويه وَ توانګر چې زکاة ورکا(و) هر يو چې مې ياد کړے دے -عيان- نه دې ورکا و هندو، نه دې پرې روغوی ممځدک- نه دې پرې کفن کا وَ مرده ګان- نه دې ازادوی برده نه دې ورکا وَ توانګرانو- نه دې ورکا وَ پلار وَ نيکه او نه په پورته نه وَ زامن نه وَ نمسی نه په کښته، نه مېره و اورته نه اورته وَ مېره وَ نه تبنتن چې په مال ئې ازاد کړی وی هغه بنده ګان نه پر برده نه پر کم زامن دَ توانګرانو په تا دې وی اعلام- نه دې ورکا وَ هاشمی چې هغه آل دَ علیؓ دَ عباسؓ دَ جعفرؓ دَ عقيلؓ دَ حارثؓ دی چې زامن دَ عبدالمطلب دی عيان- (٣٠٩)

که څوک زکاة دَ هغو ورکا چې ګمان ئې دَ فقيری وی ترو خبر شی چې توانګر دے يا هاشمی يا کافر يا پلار يا ئې

زوئ دے بیا دي نه ورکا بیرون چي بنده یا په مال ازاد وی
بنده کان په تا دي وی اعلام۔
مکروه دی چي زکاة استوی له ښهره وَ بل ښهر وته
په ادمیانو بیرون چي هسي قرابتی وی کم توانه اوکنگالان عیان۔
کوره سرسایه دَ روژے واجبه ده (۲۰۷) پر توانگرانو چي ئ
وباسی دَ ځان دَ کم زامن دَ برده وُ دَ پاره په تا دي وی اعلام۔
نه دي وباسی دَ اورتي نه دَ ستر زامن نه دَ هغه برده
چي ئ په مال ازاد کړے وی نه چي دَ بازرګانۍ وی نه دَ
هغه برده چي شریک وی په میان دَ ادمیانو۔
سرسایه یو په اوړی وربشي یا نیم غنم یا بها دي ورکا
وَ فقیرانو۔ اوړی اته سېره وی په سېر دَ عراق۔ عیان۔
سرسایه په نمر وخاته واجبه ده چي ئ وباسی ادمیان۔
هر چي له دغه وړاندي ومری یا وزیږی یا شی مسلمان سرسایه
پري واجبه نه شی په تا دي وی اعلام۔
ثواب دے چي سرسایه دَ عید په ورځ وباسی له هغه
وړاندي چي دَ نمانځه وَ ځائ وته ووځی ادمیان۔ که له هغه
وړاندي وباسی روا دی او که ئ پستنه وباسی کردن ئ
خلاص نه شی او ویستل ئ واجب دی په ادمیانو۔ (۳۱۰)
کوره دَ حج دے بیان (۲۰۷) دَ حج کناروں واجب دی پر
ازاد پر عاقل بالغ چي ښوری، تبځونے، دَ کاله خرڅ لری ورد
لاري وی امان۔ (۳۱۱)
نه دي کناری حج اورتي بیرون چي ورسره وی محرم ادمیان۔

روا نه دی ګناوون بیرون پچې ورسرهٔ وی محرم دَ منديني عيان - (٣١٢) دَ حج پهٔ لاردې چار کا پچې مې امر کړے دے پهٔ ادمیانو - هرڅې دَ کعبې پهٔ لاره خبر اروی دَ پیر تمام تړو ئې بویه پچې ور واوړی دَ نبی دَ علم زما دَ پېژندګلی دَ پاره وَ پیر تمام - کعبه مې دَ خلیل کوره کړے دے (٣١٣) او خپل کوره مې کړے دے زړه دَ پیر تمام - زما کور بِه دے دَ خلیل لهٔ کورهٔ پهٔ تا دې وی اعلام - نه حصلیږی زما پېژندګلی پهٔ کعبه کښې، حصلیږی زما پېژندګلی لهٔ تمامه پیره وَ ادمیان - (٣١٤)

دَ طریقت دے بیان - (٢٠٧) او بایزید دَ طریقت زده او چاره وکښه - زده او چاره دَ طریقت دَ شریعت لهٔ زده لهٔ چاره بِه ده پر ادمیانو - (٣١٥)

راوښیه وَ ما وته زده او چاره دَ طریقت پهٔ خپل فرمان او سبحان !

او بایزید - شریعت وښا او طریقت چار دَ پیغمبرانو ده زما رحمت پهٔ دوئ او سلام (٣١٦) ننغته دَ نوس ده او دَ شیطان - او نغته دَ زړه دَ روح چاره دَ پیغمبرانو ده عیان - (٣١٧)

راوښیه وَ ما وته نوس او خوئ ئې او پچې پکښې اوسی او دے دَ څهٔ څیز ځائې دے، پهٔ خپل فرمان او سبحان -

او بایزید - نوس امارهٔ، لوامه، ملهمه، مطمئنه لهٔ خویه سرهٔ دی پهٔ ادمیانو - امّاره ځائې دے پچې پکښې اوسی شیطان - او لوّامه ځائې دے پچې پکښې اوسی لښکرې دَ شیطان او

ملهمه ځائې دے چې پکښې اوسی فرښتګان او مطمئنه ځائې دے چې پکښې روح اوسی عیان۔

ګوره لاړ دَ شېطان دَ لښکرو زړه وته وَ کيڼ رخ وته ده۔ په زړه کښې وَ کيڼ رُخ وته ننوځی چې وسوسې کا په ادميانو لښکرې دَ شېطان۔ ور يادہ وی لذت شهوت هوس دَ نوس و ادميانو۔ په ښېګړې ور څرګندوی وَ دوئ وته شېطان۔وَ هغه چاړ وته به ئې لېږی لښکرې دَ شېطان۔دَ شېطان دَ لښکرو دَ نغتې په بهنه دَ کيڼ لوری په يارانوشی ادميان۔

ګوره پڅو ورياد وی لذت شهوت هوس دَ نوس دَ ادميانو۔ کشکی ډېر مال دَ خرڅې دَ پاره يا ډېر ملک دَ کښت دَ پاره يا وے ښائسته اورتې يا کوړ يا بردہ يا اس وے يا ځناوران يا نور څيز دَ دنيا له مائې ورياد وی وَ ادميانو۔

ګوره ښه اواز دَ غوږو، ښائست دَ سترګو، خوش بوی دَ پوزې او وَ خلې وته مزه دَ څښنو دَ خوړو دَ اتام۔ښه اغستن وسله او پسول ياد وی وَ تن وَ اندام له حلالو يا له شبهاتو يا له حرامو۔ وَ مېړه وته ښائست دَ اورتو، و اورتو وته ښائست دَ مېړه يا نورې چارې وَ ديو ته ياد وی چې په پته ئې کا ادميان۔ دروحی په تن کښې لکه روانه ويته۔دَ نهی له خويه ژر ننه باسی په زړه کښې وَ ادميانو۔په ښېګړې ورڅرګندوی وَ دوئ وته دا هسې چارې شېطان۔ترو ئې لېږی دوئ وَ طلب دَ هغه چارې وته لښکرې دَ شېطان۔ترو دَ نوس دَ شېطان په نغته دَ کيڼ لوری له يارانو شی ادميان۔

ګڼې چې شه کا په ګمان ولې نه ئې زده وی دَ نوس له بدیه او نه پوهیږی په مکر دَ شیطان سری زما له نغتې له بندګیه ووځی په دا بهته چې نغوړی دَ نوس او دَ شیطان۔

ګوره څو مکر کا شیطان چې لیږی و ډیر ملک و مال و اورتو وَ لښکرو وته او وهیروی عدل وَ بادشاهانو۔ لیږی دوئ او څنې ادمیان وَ هغې چار وته چې حاصلیږی (پرې) رنګارنګ ګناهان۔ لیږی وَ ډیرولو دَ مال وَ کرلې وَ بازرګانیه وَ پوندګلیه وَ ترکش بندیه یا وَ نورو چارو وته دَ نوس وَ ادمیان۔ ګوره نفس امّاره وَ حرامو، لوّامه وَ شبهې ملهمه وَ حلالو مطمئنه و پاکو وته لیږی ادمیان۔

او بایزید۔ وَ سری بویه چې وپیژنی شیطان۔ مکر او میرڅې ئې۔ مشغولی دې کا دَ ده په ښتنه (۳۱۸) تل دَ تله مدام۔ ګوره چې وائی وَ څنې بازرګانو وته باک ئې نشته که دروغ وایئې په سودا (۳۱۹) او وائی وَ څنې عالمانو وَ شیخ زاده ګانو وَ حاجیانو وَ نا پیرانو وَ دا هسې نورو کسانو وته باک ئې نشته که څۀ و طمع وته او مال غواړئ له ادمیانو۔ دَ مال غښتنه له ادمیانو دی حرام۔ او وائی دَ غله وَ کاسیرو ظالم او په مانند دغو وته باک ئې نشته که دروځې (۳۲۰) وَ غلا دَ کاسبریه و ظلم وته۔ په غلا په کاسیریه په ظلم په دا هسې چارو حصلیږی ګناه وَ ادمیانو۔ (۳۲۱)

ګوره دا دی له مکره دَ شیطان۔ که سړے په مال توانګر وی یا زوروړ وی په عزیزانو۔ وَ ډیر ښه وَ اغستن

وته ئې لېږی او چې خوری ډېر اتام تروکبر ظلم و شهوت و بې
شرمۍ و بد ادبۍ وته ئې لېږی او وَ چارو دَ گناهان - دَ کبر
پهٔ بهنهٔ به مسخرې کا - وَ سړی وته به هغه و ښا وائی چې وَ
ده وته قهر پیدا شی دَ ادمیانو - ترو دَ اروېدونی پهٔ زړهٔ
کښې دَ بدې وېنا غښتهٔ ننه باسی شېطان - ترو ئې لېږی چې
وَ ده وته هم غیبت بدهٔ خبرهٔ وائی (۳۲۲) یا ئې پهٔ بدهٔ
نامه سرهٔ لکه کبرژن لهٔ ده یا غیبت بدهٔ وېنا واروی یا
بد نوم - قهر ئې وَ ده وته زیات شی عیان (۳۲۳)

بیا وَ کبرژن وته به هسې وائی شېطان چې وَ تا وته دَ
ژوی پهٔ حضور هسې ئې وویل پهٔ څهٔ ئې ووهه کهٔ ئې نهٔ ووهې
پهٔ تا پورې به خاندی ادمیان - هر کله (۱۳۷) ئې ووهی تروخوږ
شی یا پرهار پرې وشی ترو خوږ شوی و پرهار ژلی وته به
هسې وائی شېطان - دے هم هسې ووهه چې ئې تهٔ وهلے یئې
فلان - کهٔ ئې نهٔ ووهې ستا شرم دے عیان (۳۲۴) هرکله (۱۳۷)
ئې ووهی بیا وَ کبرژن وته به هسې وائی شېطان - دا شرم به
لهٔ تا دَ ده ځې مرگه پس نهٔ ځی کهٔ ئې نهٔ وژنې لهٔ
ژوندونه دې مرگ به دے پهٔ نظر دَ ادمیانو - هر کله (۱۳۷)
ئې ووژنی ترو مېرځی شی دَ هغه پسه ورانے پهٔ ورانی زیاتیږی
پهٔ میان دَ ادمیانو - ترو به عذاب ابدی تل دَ تله موهی پهٔ
هغه جهان عیان -

گوره دا دی لهٔ مکره دَ شېطان چې لېږی ځنی ادمیان
و زورکارۍ وته چې څهٔ راشی لهٔ کمزورانو او ځنې و غلا وته

چې غلا کا له ادمیانو، ځنې وَ کاسیرۍ وته چې کاسیری کا له هغو چې په دوئ دی حرام او ور څرګندوی ئې وَ دوئ وته په ښېګړه دا هسې چارې شېطان - ترو به کمزوری وته وائی شېطان مه پرهېږده خپله مایه و زور ور وته، نه وَ غله وَ کاسیر وته شرم ستا دے چې وَ دوئ وته (۳۲۵) پرهېږدې عیان - ترو مېړځی کا په دا بهنه په میان دَ ادمیانو- یا به ئې لېږی چې یادوی بدی پسی‌شا (۳۲٦) دَ نورو کسانو چې له ده نور سړی واروی - ترو وَ دوئ وته به وائی شېطان چې ورته وایه په تا ئې هسې بد وئیل فلان - چې ځنې واروی ترو په دا بهنه کینه ننوځی په زړه دَ ادمیانو-

ګوره دا دی له مکره (۳۲۷) دَ شېطان که څوک ورورسوی دَ ده وَ تن یا وَ مال یا وَ اورتو یا وَ عزیزانو وته دَ ده په پتې زیان (۳۲۸) ترو په دا بهنه ننه باسی شېطان دَ سړی په زړه کښې بدګمان چې فلان به کړی وی یا فلان (۳۲۹) نه پوهېږی په مکر دَ شېطان په هر زمان بېرون یو یو له ادمیانو-

ګوره پڅو له ښېګړې سړی باسی شېطان - دَ لوبو په بهنه ورکی له لُستنی دَ ګناه په بهنه له توبې ځنې ادمیان- دَ دنیا دَ خبرو چارو په بهنه له بندګۍ دَ ژبې له لُستنې- دَ دنیا دَ خبرو دَ ژبې دَ لُستنې په بهنه باسی له دائمه یاده مدام - (۳۳۱) هسې په نورو بهنو له ښېګړې باسی ادمیان - په تا دې وی اعلام - او نه پوهیږی دَ ده په مکر په هره زمانه بیرون یو یو له ادمیانو-

ګوره دَ نوس دَ شېطان نغته ده زيان دَ ايمان -نه بويه وَ سړی چې زيان کا دَ ايمان په نغته دَ نوس دَ شېطان-

ګوره په حجاب په پرده به پاتو شي زما له پېژندګلی دَ شپېږو تپو عالم وَ شپېږو چارو په بهنه دَ هرې زمانې ادميان، دَ علم په بهنه څنې عالمان- دَ پښت په بهنه څنې ادميان- دَ زهد په بهنه څنې زاهدان، دَ عبادت په بهنه څنې عابدان، دَ ناتمام پير دَ نغتې په بهنه څنې طالبان، دَ نعمت په بهنه څنې توانګران يا په نورو بهنو څنې ادميان- په ښېګړې څرګندوی وَ هر ګروه ته خپله چاړ شېطان وَ منع کوی ئې له نغتې دَ پيرتمام څکه چې حاصله نه شي له ده پوهه دَ نبی، پېژندګلی او حاصل دَ ايمان وَ ادميانو-(۳۳۲)

په کومه چاړ به سړے پناه مومی دَ نوس له بدی دَ شېطان له مکره راوښيه وَ ما وته په خپل فرمان او سبحان-

او بايزيد- هرچې دَ نوس له بدی پناه غواړی ترو ئې بويه چې دَ نوس هوس دَ عقل په رڼا فهم لری-دَ نه نغتې دَ مشقت په تېغ دې ووژنی عيان- هرچې دَ شېطان له مکره پناه غواړی ترو ئې بويه چې راونسی وسله له شېطانه- دَ ده په مېړځی دې تېينګ شي ادميان-

ګوره که ياده کا شېطان وَ ادميانو وته بدی دَ نورو ادميانو ړښتيا دې زده وی چې دا مکر دے دَ شېطان- دا مکر دې وچارباسی په ياد کړه دَ ښېګړو دَ هغو ادميانو

او په ایت دَ قرآن - عیان -

راوښیه وَ ما وته وسله دَ شیطان په خپل فرمان اوسبحان -

او بایزید - بدگمان لیندہ ، غیرت ئې ژی دَ بدې وښا غښته غشې او قهر دے زور دَ شیطان او هغه وښا چې قهر پیدا کیږی (؟) ویشته ، ورانے دَ هغه وښا په خله تل او اندوه دَ سری خوښی ده دَ شیطان (۳۳۳) فرض مې کړے دے پر ادمیانو چې (په) پرهیزگاری بدگمان - غیرت په ښکړې دَ بدې وښا غښته زما په فکر ، قهر په قوت دَ زغمل هغه وښا چې قهر پرې پیدا کیږی په پته خله ، ورانے په قراری دَ اندام اندوه په صبر دې جارباسی ادمیان - هر چې هسې کا ، لوئ له وریده له خپلې لویئ په ښکړی په عزیزی پناه به ئې کړم دَ نوس له بدی او له مکره دَ شیطان ، له زواله دَ ایمان ، بدی به ئې په نیکی عذاب به ئې په راحت بدل کړم عیان - (۳۳۴) هر چې هسې نه کا پناه به ئې نه کړم دَ نوس له بدی او نه له مکره دَ شیطان نه له هغې پچې زوال دے دَ ایمان - بدی به ئې په ښکره عذاب به ئې په راحت بدل نه کړم دَ گناهگارو ادمیانو -

خوئ دَ زړه راوښیه (۳۳۵) وَ ماته په خپل فرمان اوسبحان (۳۳۶)

او بایزید - په زړه کښې دولس ځایونه دی - شپږ (اشپږ) وکیڼ و ښی رخ وته - (۳۳۷) مطمئنه ځائې دَ روح او ملهمه ځائې دے دَ فرښتگانو - ترو ننوځی په زړه کښې وَ ښی رُخ وته فرښتگان دَ زړه دَ روح دَ نغتې دَ پاره او دَ نه نغتې

دَ نوس دَ شیطان - دَ فرښتو پهٔ نغته دَ ښې لورې لهٔ یارانو شې ادمیان - ترو به هسې وائی وَ ده وته چې هوس دَ نوس او لذت ستا دَ نوس دوه څانګونه دی دوئی ترهٔ دَ همّت پهٔ تېنګه ویاسته هله به دې نهٔ والوزوی ګناهان. دَفرښتو پهٔ نغته پهٔ نهٔ نغته دَ شیطان دَ ښې لورې لهٔ یارانوشې ادمیان - (۳۳۸)

او بایزید - ما زړهٔ دَ سړی کړے دے ځائې دَ دارو دَ کرلې دَ ایمان - نهٔ بویه وَ سړی چې دَ دارو پهٔ ځائې وکری زهر دَ ایمان (۳۳۹)

راوښیه وَ ماته دارو او زهر دَ ایمان - کومه چار وَ تا وته پهٔ نژدیکې بهه ده پهٔ ادمیانو او سبحان -

او بایزید - ښهٔ چار مې دارو او ګناه مې کړے دے زهر دَ ایمان - وایه وَ سړی وته چې لهٔ زړهٔ دې وباسی دَ زړهٔ پهٔ خوئی خوئی دَ نوس ، دَ فرښتو پهٔ نغته نهٔ نغته دَ خناس پهٔ نغته دَ روح نهٔ نغته دَ شیطان - هله دَ ښې لورې سرهٔ وګانهٔ شی ادمیان -(۳۴۰) بهترینه چار وَ ما وته پهٔ نزدیکې هوی ده هرچې چار کا پهٔ دا کلام - فرض مې کړی دی پر ادمیانو چې زما دار زما دَ عذاب پهٔ یاد زما او زما دَ محبت زما دَ نعمت پهٔ یاد پهٔ زړهٔ کښېباسی او پستنه دې اوسی زما دَ دار پهٔ بهنه پهٔ هتیاتی لهٔ وارهٔ حرامو او چار دې کا دَ ښکړې زما دَ محبّت پهٔ بهنه او اوسی دې دَ ډار او دَ امېد پهٔ میان - ادمیان - لهٔ هغه پیره دې واوړی چې دَ ښی لهٔ

پوهې او زړه له پېژندګلۍ خبر نه وي که زاهد تارک بشر(۳۴۱) یا عابد بې خبر یا عالم بې عمل یا سيّد له اولاده دَ نبي مرسل وي عيان. فرض مې کړی دی په ادمیانو چې طلب دې کا دَ پير تمام دَ انبیاؤ دَ پوهې او زړه دَ پېژندګلۍ دَ پاره که يې ځائې وي په حين په عجم يا په شام. په ده دې يقين کا. پر لاس دې يې توبه کا دَ ده په نغته دې چار کا. خدمت دې يې ډېر کا په مال ور په ځان. هله به يې زياته شي له ده پوهه دَ نبي (دَ) لارې او ايمان. (۳۴۲)

فرض مې کړی دی په ادمیانو چې ما دې په پټې ډېر یادوي په ذکر مدام خله پټه او لرې دې اوسي له غافلانو ادمیانو. ښه دې لږ په نرمه وائي بد دې نه وائي کلام.

فرض مې کړی دی په ادمیانو چې اندوه په صبر وجارباسي چې يې څو وشي زيان. قهر دې په زغمل وجارباسي له هغه چې يې په ړانيول وي توان. خوری دې له حلالو (۳۴۳) چې په خوردن يې توان وي لږ اثام. په لږو کښې دې بې اسراقه ورکوي وَ هغه چې دَ ده په ورکړه زړه خوښي وي او خوښي دَ ښو ادمیانو.

فرض مې کړی دی په ادمیانو چې زړه په قضا دې راضي شي زړه په بلا دې صبر کا زړه په نعمت دې شکر کا زړه په ورکړه دې قناعت کا. تل دې لرې اوسي له هغو چې زيان وي دَ ايمان.

فرض مې کړی دی پر ادمیانو چې قرار دې نه شي هر

یو زما له طلبه دَ هغه پورې چې مې په یکانګړ وپېژنې او چې بیا موهې واړه مقامه، زما له خویه دې ونسی او پرې دې بدې خوئ دَ ادمیانو۔ چار دې کا له سړی سره لکه (۱۳۷) سړی له خدائ سړی سره لکه (۱۳۷) خدائ کسان۔

فرض مې کړی دی پر ادمیانو چې باور او چار دې کا په دا بیان۔ هر چې باور او چارې کا (۳۴۴) په دا بیان پناه به ئې کړم دَ دنیا په ژوندون دَ نوس له بدی او له مکره دَ شیطان نه به ئې عذابوم په عذاب دَ ځان کندن نه دَ ګور نه دَ قیامت نه دَ اور چې سیزونے دے سوزان۔

ترو به ئې ننه باسم په پائنده راحت او په ځائې دَ امان۔ (۳۴۵) وی به پکښې ده سره هغه چې ئې رضا وی او ژوندون به ئې باقی وی او دائم۔

هر چې باور او چارې نه کا (۳۴۶) په دا بیان۔ پناه به ئې نه کړم دَ دنیا په ژوندون دَ نوس له بدی او له مکره دَ شیطان۔ عذابوم به ئې په عذاب دَ ځانکندن او دَ ګور او دَ قیامت دَ اور سوزان۔ نه به ئې ننه باسم په پائنده راحت نه په ځائې دَ امان۔ نه به موهی تل دَ تله امان۔

ترو وایه وَ هغه سړیو ته چې باور نه کا په دا کلام چې راوړی له خدایه بهتر له دغه کلامه که یو یاست (۳۴۷) له رښتني ادمیانو۔

راوښیه وَ ما وته بخره دَ فائدې په خپل فرمان او سبحان۔ او بایزید۔ فائده دَ رښتني طالب له تمامه پیره له

ما ده عیان۔ گوره هغه بخره چې له طالبه دَ یقین نغته ده ته باور کړه په دا کلام۔ او هغه بخره چې له کامله پیره ده بلنه ده زما وَ پېژندګلي وته، دَ رښتني لار څرګندول دی په تا دې وی اعلام۔ او هغه بخره چې ئې له ما ده هغه کښائښ او جزا ده دَ ادمیانو۔

او هسې دَ روژې دَ زکاة دَ حج په طریقت کښې حکم دے چې سړے دې دائم لرې اوسی له حرامو، په حقیقت کښې له غفلته، په معرفت کښې بې ما له نور څه په تا دې وی اعلام۔

او بایزید۔ زه دَ طریقت وَر وَ هغه وته پرانیځم چې دَ شریعت په علم چار کا وَ هغه پس وَ ده وته دَ طریقت پوهه ور وبخښم۔ دَ حقیقت وَر وَ هغه وته پرانیځم چې دَ طریقت په علم چار کا۔ دغه پسه ئې دَ حقیقت له پوهې خبر کړم۔ دَ معرفت وَر وَ هغه وته پرانیځم چې دَ حقیقت په علم چار کا۔ دغه پسه دَ یګانګړ پېژندګلي وروښیم۔ عیان۔

او بایزید۔ زه لیرونے زما دَ لارې بې کړدې (۳۴۸) له مقامه نه رسوم و بل مقام هسې چې له ځایه وَ بل ځائې وته بې تله نه رسوم سړی نه چارپایان۔

دَ زړه مثل راوښیه وَما وته په خپل فرمان او سبحان۔

او بایزید۔ زړه دَ مړی او زړه دَ رنځور او زړه دَ غافل او زړه دَ ترسګار او زړه دَ جاروتلی او زړه دَ سالم او زړه دَ ذاکر او زړه دَ شهید او زړه دَ مخلص په قرآن کښې دے

عیان-کوره زړه مې دَ محبت ځائې کړے دے دَ ادمیانو- په هر زړه کښې چې دَ دنیا محبت دے هغه زړه په مانند دَ ښارې (۳۴۹) دے چې پکښې رنګارنګ غله او نور څیزوی ورځناوران- په هر زړه کښې چې دَ بهښت محبت دے هغه زړه په مانند (دَ) باغ دے چې پکښې رنګارنګ دَ بهښت نعمت وی فریوان- په هر زړه کښې چې زما محبت دے هغه زړه په مانند دَ لوئې عرش دے-عیان- ګوره هر سړے چې دَ بادشاه پر تخت څلور بول وتړی یا پلیتی وربانده‌ې واچوی یا ئې وران کا کهٔ باغ وی کهٔ بوستان (۳۵۰) ترو به وَ ده وته پیدا شی قهر دَ بادشاهانو ترو کومه سزا پر ده روا شی وهل کهٔ نه موت یا هر شے چې ادم ئې نهٔ پسندوی (۳۵۱) پهٔ تا دې وی اعلام- هسې هر چې دَ دنیا یا دَ بهښت محبت په زړه کښیباسی قهر مې پیدا شی وَ دیو به راحت نهٔ بخښم په عذاب به ئې خوار کړم عیان-

دَ حقیقت دے بیان- (۲۰۷) او بایزید- وکښه زده او چار دَ حقیقت -کوره زده او چار دَ حقیقت دَ طریقت له زده او له چار به دے په ادمیانو-

راوښیه وَ ما وته زده او چار دَ حقیقت په خپل فرمان او سبحان-

او بایزید- حقیقت دے حال دَ پیغامبرانو او چار ئې پټ یاد وی او فکر مدام-

ذِکر دائم دَ زړه ذکر په ساه دے او فکر ئې هغه

دے چې رښتیا یقین کا ذاکران په ذِکر مدام - نه دې ګڼي
له ما ګوښې هر چې شته په دواړه جهانه - عیان -
کړے مې دے دَ ښېګړې نه دَ بدی دَ فرمان بردارۍ
نه دَ ګناه دَ بندګۍ نه دَ نعمت دَ یاد نه دَ غفلت دَ فکر
نه دَ شېطان دَ اندېښنې دَ پاره عمر دَ ادمیانو - ترو بویه
چې تېروی په ښېګړه نه په بدی، په فرمان بردارۍ
نه په ګناه، په بندګۍ (۳۵۲) نه په نعمت، په یاد نه په
غفلت، په فکر نه دَ شېطان په اندېښنه کښې عمرَ ادمیان -
ګوره عمر دَ ادمیانو په بېړه ځی له ادمیانو په دیدن
دَ ادمیانو -
ښه عمر مې دَ سړی په عمر کښې هغه کړے دے چې
زما په یاد زما په نغته کښې ئې تېروی ادمیان - بد عمر
مې دَ سړی په عمر کښې هغه کړے دے چې زما بې یادو
زما بې نغتې ئې تېروی ادمیان - (۳۵۳)
ترو بویه وَ سړی چې نظر دې کا خپلې چارې وته
چې څه چارې کا په دا عمر - ښېګړه که بدی، نغته که
ګناه - ښه او بده چار دې په رښتیا په زړه کښې حسیب
کا - خپله چار به وفائي کا له ادمیانو (۳۵۴) - ترو به دَ
خپلې چارې جزا بیا مومی په تا دې وی اعلام په زیاتولو
دَ ښېګړې دَ بدی مې اختیار ورکړے دے وَ ادمیانو - (۳۵۵)
ترو بویه چې له تیاره وَ رڼا وته ووځی ادمیان -
راوښیه و ما وته تاریکي روښنائي له معنی په خپل

فرمان او سبحان۔

او بایزید۔ کم عقلی ، منکری ، گناه ، غفلت ، جاهلی ، نادانی مې له خپلې تاریکۍ کړی دی ۔ عقل ، ایمان ، جاروانه ، نغته او یاد او علم مې له خپلې روښنائی کړی دی عیان۔

گوره عقل دَ ژواک دَ نفس او زیان کار دَ شیطان ، ناتمام دَ زړه ، تمام مې دَ روح کړے دے په ادمیانو۔ گوره ایمان معصوم دے دَ پیغامبرانو دَ تپې ، رحمت دې وی دَ دوئ په ځان ، مقبول دَ مؤمنانو دَ تپې ، موقوف دَ منافقانو دَ تپې او مردود دے چې تپه ده دَ شیطان ۔ متبوع دَ وړکیو دَ تپې تفریق دَ فرښتگانو دَ تپې دے او مجموع مې کړے دے دَ مسکینو دَ تپې ایمان ۔ عیان۔

زه وکښم (۳۵۶) له تپې سره په چار دَ خپلې تپې ادمیان۔ گوره دَ پیغامبرانو دَ تپې له خوی هوی دے چې سړے له ده لار مومی چې ئې موند له پیغامبرانو مرسلانو عیان۔ نښانه ئې هغه ده چې دَ طمع دَ پاره به وَ مخلوقانو وته نه شی روان ۔ دَ دنیا له ماله به ئې نه غښتته له ادمیانو۔ بولی سړی زما وَ پېژندگلی وته زما دَ کتاب په نغته دَ گناه په بهنه به زما له عذابه ویرول ۔ زما دَ نغتې په بهنه به ئې دَ راحت زېرے کا په ادمیانو۔

گوره دَ مؤمنانو دَ تپې له خویه هوی دے چې ورکړه نه ورکړه محبت غیرت یا نوره چاره به ئې زما دَ خوښی دَ پاره کړه۔ په تا دې وی اعلام۔ زما په نعمت به شکروار

پهٔ ورکړهٔ قناعتي، پهٔ بلا صبور پهٔ قضا پهٔ کړهٔ راضي وهٔ عيان۔

دَ مؤمنانو دَ تپې لهٔ خويه هو(ی) دے چې وی به ترسنده پرهيزګاران او فرمان برداران او رښتني ذاکران او توکلي مخلصان او محبت به ئې کهٔ يو حُبله اولېږل به ئې و ښبګړې وته او لهٔ ګناهه به ئې منع کول ادميان۔ او چار به ئې پهٔ مصلحت پهٔ منصفي کړهٔ زما پهٔ نغتهٔ دَ ايمان دَ ايمان دَ فائدې دَ پاره دَ ادميانو۔

ګوره دَ منافقانو دَ تپې لهٔ خويه هوی دے چې ايمان به ئې راوړهٔ وَ ما زما وَ فرښتګانو وَ پېغمبرانو وَ کتاب دَ زړهٔ بې باوره پهٔ ژبې به ئې راوړهٔ ايمان۔ پهٔ دا به مومن نهٔ شهٔ عيان۔ دَ منافقانو دَ تپې لهٔ خويه هو(ی) دے چې زما او زما دَ پېغمبرانو دَ کتاب حکم به ئې (پهٔ) وېنا قبلاوهٔ او پهٔ کړده به منکر وهٔ۔ دَ نبي علم به ئې نهٔ غښت حتيٰ طي به ئې نهٔ کړهٔ لهٔ غفلته لهٔ ګناهانو (۳۵۸) وَ ګناه ته به ئې لېږل نور ادميان او منع به ئې کړهٔ دوئ لهٔ ښېګړې او لهٔ ياد مدام۔ دَ منافقانو دَ تپې لهٔ خويه هوی دے چې به ئې وئېل فحش پهٔ دروغه بېهوده ډېره وېنا، خواړهٔ، څښهٔ اغستهٔ به ئې ډېر کے وهٔ لهٔ حلالو يا لهٔ شبهاتو يا حرامو۔ او زما بندګي به ئې کړهٔ پهٔ سستۍ پهٔ ديدن دَ ادميانو۔

ګوره دَ شيطانانو دَ تپې لهٔ خويه هوی دے چې حرصي طمعدار دروغژن، غافل، ناپوهه، مشرک، ګناهګار وو عيان۔ خپسر به (ئې) دَ پښت يا دَ علم پهٔ بهنه ښهٔ ګانهٔ۔ پهٔ دروغ به

ئې وئيل چې زه پير يم دَ ادميانو. زما پلار نيکه هسې نه وو بزرګان- هيڅوک به ئې نه کړه له دروغو- په تا دې وی اعلام - بيا به ئې په دروغه ورته وئيل هر چې زما په لاس توبه کا ، زما نغوړی- دوئ به زه يا زما پلار نيکه ورانديني له عذابه وَ راحت وته وباسی- په عذاب به نه وی مدام- ترو هر سړے چې وعده ونسی له مشرکانو سره ترو بيزار شی له ما او زما له پيغمبرانو په تا دې وی اعلام.
په دا هسې چارو له واره بې پروائی له فرمان بردارئ وګناه او له لارې وَ ګمراهی وته له روښنائی وَ تاريکی وته رسوی له ادميانو- دَ رزق دَ مال دَ طمع دَ پاره وَ مخلوقاتو وته به ستر (۳۵۹) وائی- دَ دنيا له ماله به ئې څنې غښته- هيڅوک به ئې نه کړه له حرامو وئيل به ئې وَ دوئ وته که واوړئ له پير تمامه تاسی به زه قبول کړم له واړه ګناهه سره- عيان- خپسر او خپله چار به ئې له نورو سړيو بِهه ګڼله په ګمان ولې دے او دَ ده چار بدتر وه له نورو مخلوقانو او دے به نه پوهيږی عيان-
ګوره په کومه چار له ما بخشائش غواړی- دَ لُستنې په بهنه يا دَ نمانځه په بهنه يا دَ عبادت په بهنه يا دَ کښلو دَ ديدان په بهنه - يا دَ علم په بهنه ، يا دَ پښت په بهنه يا دَ زهد په بهنه يا دَ شفاعت په بهنه څنې ادميان - زه به نيامرزم دَ واړو کتابو دَ لُستنې په بهنه چې چار پرې نه کا يو له ادميانو- نه دَ هغه نمانځه په

بهنه چې دَ زړه بې حضوری ئې کا ادمیان - نه دَ هغه عبادت پهٔ بهنه چې دَ یکانګی بې پېژندګلی وی عیان - نه دَ کښلودَ دیدن پهٔ بهنه چې زما دَ نښانی بې دینه بې پېژندګلی ئې وینی ادمیان - نه دَ زهد پهٔ بهنه چې دَ یکانګی بې پېژندګلی وی پهٔ تا دې وی اعلام - نه دَ هغه علم پهٔ بهنه چې کړده پرې نه کا - پهٔ تا دې وی اعلام - نه دَ ښت پهٔ بهنه بې نبې چارې عیان - نه دَ پېغامبرانو دَ شفاعت پهٔ بهنه چې چار نه کا پهٔ نغته دَ پېغامبرانو -

دَ وړکیو دَ ټېې خوی هوی دے چې زیات وړکی دَمور دَ پلار پهٔ خوی کښېوځی کهٔ کافر یا هندو وی یا مسلمان -

دَ فرښتو دَ ټېې خوی هوی دے چې لهٔ هرڅهٔ سره موکل وی (۳۶۰) پهٔ تسبیح پهٔ بندګی سستی کاهلی نه کا فرښتګان -

دَ مسکینو دَ ټېې خوی هوی دے چې لهٔ ما سره یګانه قرار شوے وی مدام - زما لهٔ خوی او قرارئې موندلې وی - (۳۶۱) پهٔ تا دې وی اعلام -

دَ قرارئ مقام مې لهٔ هره مقامه بِه کړے دے - دَ قرارئ لهٔ مقامه پهٔ پورته نشته هیڅ مقام - مسکین یو دے هر یو محتاج دَ ده دے -

ګوره توبه مې فرض کړې ده پهٔ ادمیانو چې لهٔ ناپوهئ و پوهې وته لهٔ کفرهٔ وَ ایمان وته لهٔ ګناهه و فرمان بردارئ وته لهٔ غفلته دې وجاروځی وَ یادِ مدام -

له پندوالی وَ لیدلو وته له کتوالی وَ اروېدلو وته له جدائۍ وَ پیوستون وته او له شرکه وَ یکانګۍ وته له نفاقه وَ اخلاص وته دَ تن له خویه زما وَ خوی وته دې وجارووځي دَ هغې پورې چې بیا موهې زما قواری عیان.

ذکر مې دَ تن دَ ژبې دَ زړه دَ سهې کړے دے عیان. دَ تن ذکر هغه دے چې تن وجارباسی له واړو حرامو. دَ اندام ذکر هغه دے چې عبادت او یاری دَ ښېګړې کا له ادمیانو. دَ ژبې ذکر هوی دے چې کتاب تسبیح پرې لولی او چې پر وائۍ ښه کلام. دَ زړه ذکر هغه دے چې پکښې نه باسی(۳٦۲) زما فکر او ځنې وباسی اندېښنه دَ شېطان. دَ سهې ذکر هوی دے چې نه باسی او وباسی زما په یاد هره ساه په هر حال په هر ځائې چې وی ذاکران ادمیان.

ګوره زده کړه دَ نوس دَ شېطان دَ زړه دَ روح په ځان دَ ادمیانو (۳٦۳) دَ نوس زده کړه دَ دنیا وَ چارو وته لېږی دَ شېطان زده کړه لېږی وَ چارو دَ ګناهانو. دَ زړه زده کړه دَ بهښت وَ چارو وته لېږی دَ روح زده کړه وَ یکانګۍ وَ پېژندګلۍ وته لېږی. په تا دې وی اعلام. زه دَ نوس په نغته په تاریک عذاب نه باسم، په نغته دَ شېطان په عذاب دَ اور دَ زړه په نغته په راحت دَ بهښت دَ روح په نغته په راحت دَ یکانګۍ نه باسم ادمیان.

راوښییه وَ ما وته ستا دَ ناهې او ستا یاد په خپل فرمان او سبحان.

او بایزید- هر چې ما نه وینی هغه مې نه پېژنی او هر چې ما نه پېژنی هغه مې نوم یادوی او هر چې ما وینی دَ زړه په دید هغه ما پېژنی او هر چې ما پېژنی هغه ما یادوی- نه یادېږی دَ سړی هیڅ بې لیداه بې پېژندګلی له نامه پس په تا دې وی اعلام-

ګوره زه نه کړم په ږده کړه دَ حرف دَ لفظ بې چارې دانا له یګانګی ولی په ږده په چارو په یګانګی دانا کړم ادمیان- تمام نه شی له چارې په تش زده بې چارو- نه په چارو بې زده- تمام شی په زده په چارو چار دَ ادمیانو-

ګوره- سړے مشتاق دَ علم دے او علم مشتاق دَ بندګی دے او بندګی مشتاقه دَ ذکر ده او ذکر مشتاق دَ ذکر خفی دے او ذکر خفی مشتاق دے دَ دوام-

ګوره هر عبادت تسبیح او ذکر دَ ژبې پرېکړے شی لکه مونځ روژه زکات حج یا نور هسې شکل له ادمیانو بېرون دائم ذکر له هغه نه پرېکېږی چې په خپل ذکر فهم لری مدام-(۳۶۴)

ګوره ما په بهښت کښې ډېرې مېوې کړی دی چې مزې ئې تل وی نه پرېکېږی نه لرې کېږی هغه سړی لره چې ما په پټې ډېر یادوی او هتیاتی کا له وارو حرامو-

ګوره دَ ژبې ذکر په ورو یو وار له اویا زره واره په زوره ذکره بِه دے- دَ زړه ذکر په سا یو وار له اویا زره واره دَ ژبې له ورو یاده بِه دے دَ فائدې دَ پاره دَ ادمیانو-

راوښیه وَ ما وته ستروی دَ فرښتو دَ ادمیانو او پښو

حاصله شی ستا پېژندګلی وَ ادمیانو او سبحان (۳٦۵)

او بایزید - فرښتې مې پیدا کړې لـه عقله بې دَ نوسـه لـه هوسه - سړی مې پیدا کړه لـه عقله دَ نوسه لـه هوسه بې عقله دَ نوسه لـه هوسه مې پیدا کړه څناوران - ترو هر سړے چې دَ عقل پـه نغته دَ نوس پـه نـه نغته چار کا هغه بـه وی لـه فرښتګانو او هر سړے چې دَ نوس پـه نغته دَ عقل پـه نـه نغته (۳٦٦) چار کا هغه ګمراه تر دے لـه چارپایانو - حاصله شی زما پېژندګلی وَ ادمیانو، دَ ژبې پـه پُښتنه دَ پښو پـه تلـه، پـه رښتنی یقین، پـه چارو دَ اندام پـه ذکر مدام پـه ترکولو دَ ګمان او نیک خوئ دَ ادمیانو-(۳٦۷)

ګوره دَ ژبې پُښتنه هغه ده چې پښتنه کا لـه کامله پیره دَ هغه پورې شو لار بیا مومی پـه تا دې وی اعلام (۳٦۸) دَ پښو تلـه هغه دی چې روان دې شی پیر تمام وته کـه ئې ځائې لرې وی عیان - رښتنے یقین هغه دے چې یقین دَ رښتیا کا پـه پیر تمام پـه نغته دې ئې چار کا خدمت دې ئې ډېر کا پـه مال ور پـه ځان - هله بـه ئې لـه ده زیاته شی پوهه دَ نبی دَ لارې ور ایمان (۳٦۹) -

چار دَ اندام هغه ده چې زما بندګی پرې کا او چار دَ بنګړې پرې کا - لـه حرامو دې هتیات لری وارۀ اندام -

ذکر دائم هغه دے چې زما نوم پـه پټې ډېر یادوی مدام دَ هغې پورې شو ما یاد کا ادمیان یقین دې پـه خپل ذکر کا - نـه دې ګنی هیڅ لـه ما ګوښې هر چې شته پـه دوارۀ

جهانه دَ هغې پورې څو ذاکران شی عارفان - عیان -

دَ معرفت دے بیان (۲۰۷) او بایزید وکښه زده او چارې دَ معرفت - ګوره زده او چارې دَ معرفت دَ حقیقت له زده او له چارې به دی په ادمیانو -

راوښیه وَ ما وته زده او چارې دَ معرفت او هرچې پکښې دی مقام دَعارف طاعت او ګناه ئې په خپل فرمان اوسبحان -(۲۷۰)

او بایزیدا - دَ معرفت زده دَ یګانګۍ زده او چارې هغه دی چې هره چار زما په حضوری کا ادمیان - ګوره په معرفت کښې مقام دَ قربت دَ وصلت دَ وحدت دَ سکونت دے په تا دې وی اعلام - او عارف واجد (۳۷۱) مقرب، واصل، موحد، مسکین وی عیان - نه به موهی زما پېژندګلی بېرون چې په ورمندنه چار کا او بېرون چې پستنه اوسی له ګناهه دَ هر مقام ادمیان -

ګوره دَ شریعت ورمندن ګفتار دَ پېغامبرانو دے اوچار ئې دَ پېنځه بنیاده دَ مسلمانۍ دی په ادمیانو - او ګناه دَ شریعت نه نغته دَ شریعت ده او نغته دَ نوس اودَشېطان چې لېږی ئې وَ بې شریعت وته او بې شریعته لکه لېوه دی چې پکښې قرار دی هغه هسې دی لکه څناوران - ګوره دَ لېوه نخښه هغه ده چې په شپه ډېر ګرځی دَ نوس په هوس په طلب دَ مردارې یا دَ څناورانو یا دَ نور څيز دَ پاره چې دَ دوئ خوردن وی عیان - هسې چې په شپه ډېرګرځی فرمان بردار دَ شېطان عیان - دَ نوس په هوس دَ غلا دَ کاسیرۍ دَ پاره یا دَ نورو حرامو - زه به عذابوم ادمیان په نغته دَ

نوس (۳۷۲) دَ شیطان پهٔ عذاب دَ اور چې دے سوزان۔

ګوره نخښنه دَ ځناورانو هغه ده چې پهٔ ورځې به ډېر ګرځېده دَ نوس پهٔ هوس پهٔ طلب دَ واښهٔ دَ ابو او هر چې خوردن دی دَ ځناورانو۔ پهٔ شپه به پهٔ غفلت ډک ځملاست نهٔ به ئې رساوه و نور چا وته زیان هسې چې پهٔ شریعت کښې قرار وه دَ نوس پهٔ هوس به پهٔ ورځ ډېر ګرځېده ډېر به ئې خوړه ځنبهٔ اغستن وئیل۔ پهٔ شپه به پهٔ غفلت ډک ځملاست لکه دَ ځناوران چې نهٔ به ئې رساوه نور چا وته زیان۔ عیان۔

هسې چې پهٔ شریعت کښې قرار شی لهٔ طریقته به پهٔ حجاب شی۔ نهٔ به موهی خوئ دَ فرښتګانو۔ عذابوم به ئې دَ نوس دَ هوس پهٔ بهنه پهٔ تاریک عذاب کښې چې نهٔ به موهی نهٔ به وینی زما پیژندګلی پهٔ تا دې وی اعلام۔ (۳۷۳)

ګوره ورمندان پهٔ طریقت کښې پهٔ لیرونی هغه دے چې مشغولی ئې وی پهٔ رکوع پهٔ سجود پهٔ قعود پهٔ قیام پهٔ روژه پهٔ تسبیح پهٔ تحلیل پهٔ چارو دَ پیغامبرانو۔ تل دَ ژبې پهٔ لُسننه چې دے زبان۔ او زړهٔ دې ژغوری لهٔ اندابښنې دَ شیطان۔ ترو پهٔ بهنه دَ زړهٔ دَ نغتې او پهٔ نهٔ نغته دَ شیطان بیا به موهی پاکی دَ تنې (۳۷۴) پهٔ تا دې وی اعلام۔ پهٔ راحت به ئې کښېباسم کهٔ ومری زما پهٔ طلب کښې ادمیان۔

ګوره دَ طریقت ګناه پهٔ لیرونی مخالفت دَ زړهٔ دے دَ فرښتګانو دَ پیغامبرانو (۳۷۵) او نغته دَ نوس او دَ شیطان۔

ترو بویه چې په طریقت کښې ئې ورمندان وی په هغو ترو بویه چې چار کا او پستنه دې اوسی له گناهانو. هر چې په طریقت کښې ئې قرار شی له حقیقته به په حجاب شی. نه به مومی بخره دَ دائم یار. په تا دې وی اعلام.

گوره دَ حقیقت ورمندان په ذکر دائم دَ روح دے اودائم یاد چې یادوی زما نوم ډېر په پټې په زړه کښې دائم مدام. په شپه په ورځ په خشکۍ په دریاب په کور په سفر په توانګرۍ په کمدارۍ په تندرستۍ په رنځورۍ په پټې په ښکاره او رښتنې یقین دے او ترک کول دَ ګمان (۳۷۶).

گوره سرے هر څه له ما گوښی کنی په ګمان. ترو بویه چې لرې دې کا دا ګمان په هغه دائم یادېچې ورک کا مانه پس او نه دې یادوی شریک له ما یوه ذره ذاکران ادمیان. (۳۷۱) ترو به ئې ننه باسم دَ روح دَ نختې په بهنه په خپلې پېژندګلۍ ترو به ئې زړه مومی صافی و دائم یاد دَ رښتنې یقین په بهنه او په ترک کول دَ ګمان. ور به کرم وَ ده ته په اخرت کښې راحت دَ هغې مهوې چې مزه ئې تل وی مدام. دَ اواز راحت به ئې دَ غوږو، دَ دیدن راحت به ئې دَ سترګو او دَ خوش بوئۍ راحت به ئې دَ پوزې وی دَ اغُستن راحت به ئې دَ تن او دَ خلې راحت به ئې دَ څښنو او دَ خوړو دَ اتام. اروی او وینی اغندای مومی به هغه چې په دنیا ئې (۳۱۸) اروېدلی لیدلی اغستلی مندلی نه وی غوږ سترګې، تن، پوزې، خلې دَ ادمیانو.

گوره په حقیقت کښې گناه په ذاکر غفلت دے. ډېر وئېل

هغه لوستن چې زما پېژندګلي يُې نه حصليږي (۳۷۹) او نغته دَ نوس دَ شيطان۔ ترو بويه چې دَ حقيقت پهٔ نغته دې چار کا لهٔ ګناهه دې پستنه اوسی دَ هغه پورې څو ذاکر عارف واجد شی۔ عيان۔ (۳۸۰)

ګوره پهٔ معرفت کښې پهٔ عارف واجد دا ورمندان دے چې هيڅ لهٔ ما شريک نهٔ ګڼی هر چې شته پهٔ دواړه جهانه پهٔ هر نظر دَ زړهٔ پهٔ سترګو (۳۸۱) دې و ما وته نظر کا پهٔ هر څهٔ کښې (۳۸۲) دې زما هستی بې رنګه وينی لکه ليدهٔ عارفانو۔ زما اواز دې اروی لکه اروېدهٔ سامعانو ادميانو۔ او خوښ دې اوسی پهٔ دا پهٔ هر حال پهٔ هر ځائې مکان۔ نښان دَ عارف واجد دا چار دهٔ پهٔ تا دې وی اعلام (۳۸۳)

ګوره هر علم زما لهٔ علمه دے۔ هر نوم زما لهٔ نامې دے، هر زور زما لهٔ زوره دے۔ هر اواز زما لهٔ اوازه دے۔ هر رنګ زما لهٔ رنګه دے هره سترولی لوئی (۳۸۴) زما لهٔ لويی دے۔ هر بنا ئُست زما لهٔ بنا ئُسته دے هره تياره زما لهٔ تاريکی دهٔ۔ هره روښنائی زما لهٔ روښنائی دهٔ۔ هر قهر زما لهٔ قهره دے هر رحم زما لهٔ رحمته دے۔ زهٔ لهٔ هر څهٔ سره يو يم پهٔ تا دې وی اعلام۔

ګوره ګناه دَ معرفت پهٔ عارف واجد هغه دے چې لهٔ ما سره څهٔ شريک ګڼی يا پهٔ هر نظر دَ زړهٔ پهٔ سترګو (۳۸۱) وَ ما وته نظر نهٔ کا۔ پهٔ هر څهٔ کښې زما هستی نهٔ وينی چې يُې نهٔ ليدهٔ کافرانو او منافقانو يا زما وَ افريدهٔ وته ناحق

رسوی زیان (پهٔ) نغته دَ نوس او دَ شیطان (۳۸۵) ترو دَ یقین پهٔ رنا، دَ زړهٔ پهٔ سترګو (۳۸۱) پهٔ هر څهٔ کښې دې زما هستی بې څهٔ شکله وینی چې لیدهٔ عارفانو. زما اواز دې اروی چې اروېدهٔ سامعانو پهٔ تا دې وی اعلام. او نهٔ دې رسوی ناحق زما لفریدهٔ وته زما دَ خوښې دَ پاره زیان عیان.

پهٔ بهنه دَ ګمان دَ ترک والی دَ یقین دَ رڼا پهٔ بهنه به ورکړم وَ دهٔ پهٔ اخرت کښې راحت دَ دیدان راحت دَ سترګو (۳۸۱) هغه دید به وینی چې پهٔ دنیا ئې سترګو (۳۸۱) لید لے نهٔ وی. پهٔ تا دې وی اعلام. (۳۷۷)

دَ حضوری راحت دَ زړهٔ دے. مومی به هغه حضوری چې نهٔ وی موندلی پهٔ دا جهان زړهٔ دَ ادمیانو. دَ اغستن راحت دَ تن دے. هغه جامې به واغندی چې ئې اغستې نهٔ وی پهٔ دا جهان ادمیانو.

ترو بویه چې دَ معرفت پهٔ ورمندان چار کا. پستنه دې اوسی لهٔ ګناهانو. ترو دې یاد دَ نیستی پرېږدی یادوی دې هستی زما پهٔ یاد دَ اثبات چې دَ غوږو پرده ئې لرې شی تهغې (۳۸۶) پورې څو واجد (۳۸۷) عارف مقرب شی عیان. دَ مقرب نخښه هغه ده چې هر اواز زما اواز ګڼی دَ تسبیح لهٔ پوهې پهٔ تا دې وی اعلام.

ګوره پهٔ څو مکر کا پهٔ عارف ناتمام شیطان. ګمراهوی ئې چې ورته وائی. واړه لهٔ خدایه دی. دَ ټوی مال دَ خدائې دے دَ خدائې مال روا دے پهٔ عارفانو. یو شکل وی وربانډې

آمر نهی ، حلال وړحرام - ترو چار کا عارف ناتمام دَ نوس پهٔ هوس پهٔ نغته دَ شیطان - وېٔ باسی زما لهٔ نختې کښې ېٔ باسی پهٔ ګناهانو-

ګوره عارف ناتمام نهٔ پوهیږی دَ نوس پهٔ هوس نهٔ پهٔ مکر دَ شیطان خوښی ېٔ دَ ژوی پهٔ مال وَ خوښ دي اوسی عارف زما پهٔ پېژندګلۍ زما دَ پېژندګلۍ خوښی دي نهٔ بدلوی دَ مال پهٔ خوښۍ ادمیان (۳۷۷) -

راوښیه وَ ما وته خپله ستروی ، ستا هستی پخو نژدې ده وَ ادمیانو وته او سبحان -

او بایزید - زهٔ پهٔ اعلی پهٔ دریاب رحمت ، پهٔ عرش پهٔ کرسۍ پهٔ لوح پهٔ قلم پهٔ بهښت پهٔ زمکه کښې یم ور پهٔ اسمان-پهٔ تا دې وی اعلام - پهٔ دوزخ پهٔ اسفل کښې هم یم- ورزما هستی شته دَ اعلی دَ اسفل پهٔ میان ور لهٔ هر څهٔ سره ده- پهٔ تا دې وی اعلام- ګوره هوېٔ څیزونه او واړه څیزه (۳۸۸) مې پهٔ اټکل کړی دی- کم ، میانه ، لوېٔ ، رنګارنګ دَ دیغو څیزو پهٔ مانند دَ څرګند دے حد پایان- زهٔ لهٔ هر چا سره پهٔ هر څهٔ کښې یم- نشته څرګند زما دَ لوېٔ حد پایان عیان-

ګوره - ادمیان زما پهٔ هستۍ کښې دی زما هستی ده پهٔ ادمیانو- لکه کبونه پهٔ ابو او ابهٔ پهٔ کبو کښې لکه کبونه پهٔ ابو ژوندی وی هسې پهٔ ما ژوندی دی ادمیان پهٔ تا دې وی اعلام- (۲۷۷) کب چې پهٔ ابو کښې ګرځی څځ ېٔ وَ ابو وته شی- هسې هر لوړ وته چې وجاروځی څځ ېٔ وَ ما وته شی دَ ادمیانو-

دَ عارف واجد دا فکر بس دے که یٔ یقین وی تمام۔

ګوره په قربت کښې په عارف مقرب دا ورمندن دے چې هر اواز زما له اوازه ګڼی په تسبیح دی فهم لری۔ په وخت دَ خوارهٔ تسبیح دَ اتام۔ په وخت دَ تلو په تسبیح دَ پښو، په وخت دَ چار تسبیح دَ اندام۔ پیدا نه شی اواز له څیزه بې کوریداه (۳۸۹) او نه کوړی څیز بې زما له قوته۔ هر اواز زما تسبیح وائی۔ نه پوهیږی بیرون له شنوا خوښیږی په تسبیح و سرود۔ عیان۔ (۳۹۰) تسبیح و اواز زما و شنوا په میان پټه چار ده۔ دَ پټو چارو وته په ژبه نه بویه بیان۔ (۳۹۱)

ګوره ګناه دَ قربت په عارف مقرب دا دے چې زما اواز نه ګڼی تسبیح مې۔ فهم نه لری په وخت دَ اروېداه نه په تسبیح دَ پښو نه دَ اندام نه په وخت چې خوری اتام۔ اونغته دَ نوس دَ شیطان۔ ترو بویه چې دَ قربت په ورمندن چار کا او پستنه دې اوسی له ګناهه دَ هغې پورې څو مقرب عارف واصل شی۔ عیان۔

ګوره۔ ورمندن په وصلت کښې پر واصل وینا او چار دَ پیوستون دے چې هره چار په ما کا۔ زما اواز دې په ما اروی۔ ما دې زما په سترګو (۳۸۱) وینی۔ زما هستی دې زما په هستئ وپیژنی عیان۔ یادوی دې زما هستی په هغه یاد چې دَ دهٔ هستی زما په هستئ کښې ورکه شی او ورک دې کا ګمان۔ ګمان دے وجود دَ ادمیانو۔

ګوره زهٔ یم په وینته په پوست کښې دَ ادمیانو، په

وینه په غوښه دَ ادمیانو- په رګ په پله دَ ادمیانو، په هډو
په ماغزه دَ ادمیانو- په هر څه کښې یم چې څه شته دَ
سری په ځان- تحقیق وه زما هستی له هره څیزه سره لګه
ده له ادمیانو- زه یم په ادمی کښې زما هستی په چارسو
دَ ادمیانو- زه نژدے یم وَ ادمیانو وته له ځانه-

ګوره ګناه دَ وصلت په عارف واصل وېنا او چار دَ جدائۍ
ده چې هره چار په ما نه کا زما اواز په ما نه اروی ما
زما په سترګو (۳۸۱) نه وینی- زما هستی زما په هستۍ نه
پېژنی په تا دې وی اعلام- زما هستی په هغه یاد (نه یادوی)
چې دَ ده هستی زما په هستۍ کښې ورکه شی او نه ترکوی ګمان
نغته دَ نوس ده او دَ شیطان- (۳۷۳)

ګوره ما هر څیز له خپلې هستۍ دَ خپلې هستۍ دَ پاره
یو یو کړے دے په هر یو کښې زه یو خدائې یم بې ګمان- ترو
بویه چې ما دې په یګانګۍ یاد کا هر یو چې ووینی ادمیان- نشته
جدائۍ زما (او) دَ ادمیانو په میان- پخپله عزیزۍ کو زما
هستی یوه ده له هستۍ دَ ادمیانو عیان-

ترو بویه په عارف واصل چې په وصلت کښې ورمندان
دې په چار کا- له ګناهه دې پستنه اوسی دَ هغې پورې شو
واصل عارف موحد شی عیان- (۳۷۳)

ګوره ورمندان په عارف موحد هغه دے چې خپسر له
یګانګۍ پس ترو خلاص وینی له بندګۍ ور له ګناهانو- په بندګۍ
زما په نظر مشرک شی په پرېښول ئې کافر شی په نظر دَ

ادمیانو - موحد که غواړی هغه طاعت چې نه پرې. مشرک نه پرې کافر شي ترو ئې بویه چې دَ ادمیانو دَ وړاندې دې مشغول کا په عبادت تن ور اندام چې دَ ده په بهنه زما له عبادته نه ووځی ادمیان (۳۹۲) او روح دې مشغول لری زما په خوی. زما خوی راحت دے دَ روحانو. ترو دې خپسر یادوی لکه یاد شوی دی او خپسر دې بې شریکه یو گڼی .ور وینی ځکه چې شرک په .بوه کښې دے حرام - ودې نسی زما خوئ پرې دې بڼدی خوئ دَ ادمیانو - هتیات دې اوسی له شرکه په وېنا ور په چار - وېنا دې زما وائ چار دې زما کا چې ما وئیل هغه دې وائ هسې دې نه وائ لکه وائ مشرکان ادمیان. ولې ښکاره دې نه کا زما پټ وَ غافلانو - روا ده زما وېنا او چار په یکانه - روا نه ده په مشرکانو ادمیانو.

گوره گناه په وحدت کښې په عارف موحد پټ شرک دے او خوی دَ ادمیانو نغته دَ نوس ده او دَ شېطان. ترو .بویه په عارف موحد .چې په وحدت کښې ورمندن دې پر چار کا پستنه دې اوسی له گناهه دَ هغه پورې شو یکانه قرار شي عیان.

گوره په عارف یکانه پڅو مکر کا شېطان. گمراهوی ئې چې ورته وائ یکانه بادشاه تښتن دے - هر څه دَ ده دی تمام. روا دے په تښتن مال دَ بندگانو یا که وخوری حرام یا ډېر اثام. یو شکل دے په ده طاعت گناهان. حلاله ده په ده چار دَ حرامو. ترو چار کا عارف یکانه په نغته دَ نوس دَ شېطان.

وئ باسی زما له خویه - کښې ئې باسی په خوئ دَ ادمیانو -
او بایزیده - یاده کړه ادمیانو وته قصّه دَ ادم علیه السّلام -
کوره زما په روح ژوندے صفی مسجود وه دَ فرښتګانو
له نامو اګاه شوے په بهښت ننوتلے دَ بهښت دَ نعمت دَ
درجې تښتن شوے نبی مرسل اولوالعزم وه - عیان - (۳۹۳) منع
کړے مې وه دَ ونې له نزدیکړ او له نغتې دَ شیطان - چې
یوه بې فرمانی ئې زما وکړه ترو مې ګمراه کړه ومې ویست له
بهښته دَ یوې ګناه په بهنه په نغته دَ نوس او دَ شیطان -
هسې مې اګاه کړه ادمیان چې زما پیژندګلی دې غواړی
له هغه چې پیروی تمام - دَ هغې پورې څو ما په یګانګی وپیژنی
حلال دې خوری - پستنه دې اوسی له حرامو دَ نوس له هوسه
له نغتې دَ شیطان -
کوره دَ ادم مېرڅے شیطان وه - دَ بنیٔ ادم مېرڅے هغه وی
چې له حقې لارې ئې جارباسی - عیان -
هر چې چار کا دَ نوس په هوس او په نغته دَ شیطان -
ترو به ئې ګمراه کړم لکه مې ګمراه که ادم علیه السّلام - ترو
بویه وَ ادمیانو چې اقتدا کا په ادم پسې چې وجاروته زما
وَ نغتې وته له ګناهانو - ترو مې قبول که اولاد مې ورکړه او
پناه مې که دَ نوس له هوسه او له مکره دَ شیطان -
هسې هر چې وجارووځی زما وَ نغتې وته پس له ګناهانو -
قبول به ئې کړم لاړ به ورکړم پناه به ورکړم دَ نوس له هوسه
له مکره دَ شیطان (۳۷۳) -

راوښـبه و ما وته خپله حياتي بقائې مال ملک عزيزي
علم چار قراري خوئ راحت په خپل فرمان او سبحان.

او بايزيد. دَ هر څه دے اغاز پايان اتکل ويښوالے له
خوبه ژوندون له مرګه، بقائې له فنا او هستي ئې وی ناتمامه(۳۹۴)
نشته زما په هستۍ کښې اغاز پايان نه اتکل. نه دے زما
ويښوالے له خوبه، زما ژوندون بې مرګه دے بقائې مې بې
فنايته ده زما هستي ده بې نقصانه.

ګوره دَ هر څه هستي تن روح لري څيز په څيز کښې
ننوځي يا ووځي پيوند يا ګوښې شي مال ملک زياتيږي کميږي
دَ ادميانو. نشته زما دَ هستۍ تن روح، هيڅ څيز (۳۹۵) له ما
نه ووځي نه راننوځي نه پيوندنه ګوښې شي زيات کم نه شي
مال ملک زما لکه زيات کم شي دَ ادميانو (۳۷۳)

ګوره دَ سرې عزيزي له داره له اندوهه سره ده. داريږي
له مرګه له مخلوقانو. زما عزيزي (۳۹۶) بې داره بې اندوهه ده
داريږي له ما مرګ ور هر څه. عيان.

ګوره واړه علم زما دے بې وهپروالی له خپله عِلمه اګاه
يم په تا دې وی اعلام. ورکړے مې دے علم په اتکل وَهر
يوه له وهپروالی سره نه دی اګاه زما له واړه علمه ادميان.

ګوره زه هغه بې پروا يم چې هره چار تل بې شريکه
بې مله بې کالی کړم. نشته زما محتاجي شريک و مل و کالی
وته لکه دَ ادميانو. (۳۹۷)

ګوره چار کا بيا سست او وزګار او قرار شي له خپلې چارې

نه کا چارِ تل تتله ادمیان - زه نه سستېږم نه خلاصېږم له خپلې چارې نه قرارېږم هېڅکله او چار کړم په خپل خواست په خپل قدرت دائم مدام -

نور دَ هر څه دَ هستۍ دے رنګ، مانند، برابري، ځنس بې ګمانه ځنې له وړاندېنو سره وو نه له وستږینو سره، له ښکاره سره (۳۹۸) نه له پټه سره - بدلیږي اونور نور کېږي حال دَ مخلوقانو عیان زما هستي رنګ مانند برابري ځنس نه لري - زما هستي له وړاندېنیو سره ور له وسترنیو سره له ښکاره ور له پټه سره ده - زما حال نه بدلیږي لکه بدلیږي حال دَ مخلوقانو - عیان -

ګوره دَ هر څیز وړاندې وسترے بنے کیږې لاندې پاس شته هر یو په ځائې کښې دے عیان - نشته زما وړاندې وسترے بنے کیږې لاندې پاس نه ده زما هستي په ځائې په مکان (۳۷۳)

ګوره هر څه محتاج دی وَ ادمیانو وته او هر څه محتاج دی وَ ما وته له ادمیانو -

زما خوښي ده چې مې په یګانګۍ وپېژني لکه مخلصان ادمیان بې دَ نوس دَ هوسه دَ نغتې دَ شېطان - (۳۹۹) ګوره زما خوښي ده چې مې په یګانګۍ وپېژني چې پېژني بیا موهی زما حیاتي بقائي مال ملک توانګري عزیزي قراري خوئ راحت ترو به مسکین شي عیان -

ګوره ورمندن په سکونت کښې په عارف مسکین هغه

دے چې له غښتې قرار اوسی ـ نه دې غواړی زیات زما له حیاتی له بقائی له ماله له ملکه ـ نه دې غواړی بِه زما له توانګری له عزیزۍ له قرارۍ زما له خویه له راحته که غواړی هیڅکله نه به مومی ـ ته باور کړه په دا وینا چې دے کلام ـ

ګوره دَ مخلوقاتو قراری له تلله له الواته له کوږېداه له بهېداه سره ده ـ نشته زما په قرارۍ کښې تله، نه الواته نه کوږېداه نه روانی (۴۰۰) زه قرار یم نه غواړم له خپلې حیاتۍ نه له بقائۍ زیاته حیاتی بقائی نه مال ملک نه غواړم دَ خپلې توانګرۍ بِه عزیزۍ قرارۍ خوئ راحت ـ زما هستی بې پروا ده ـ عیان ـ

ګوره زما په هستۍ کښې کوږی، ځی، الوځی هر شیز چې کوږی یا ځی یا الوځی ـ زما هستی دَ هر ځائې ځائې ده بې ګمانه ـ زه فارغ یم له خوړو له څښو له طاعته له ګناهه ـ له قیامه (۴۰۱) له رکوعه، له سجوده، له ناستې، له پرېواتِه له خوئ دَ ادمیانو ـ

ګوره حال دَ مخلوقاتو بدلیږی نور نور کېږی زما حال نه بدلیږی نه نور کېږی ـ لکه دَ مخلوقاتو عیان ـ نشته زما پلار زما زامن، نه خور ورور، زما هستی له یوه زیاته کمه نه شی ـ په یوه کښې ګڼدار تحقیق دے حرام ـ (۳۷۳)

ګوره دَ مسکین ګناه په سکونت کښې مخالفت دَ سکونت دے او دَ روح کوږېداه (۴۰۲) او خوئ دَ ادمیانو او نغته دَ

نوس دَ شېطان۔ ترو بویه چې پهٔ سکونت کښې ورمندن دې پهٔ
چار کا۔ لهٔ گناهه دې پستنه اوسی تمام دَ هغې پورې چې پهٔ
کړه ئې توان وی عیان۔

گوره کهٔ زده وی دَ ادمیانو دَ دنیا چار او چار پرې
نهٔ کا پهٔ تش زده به دَ دوئ چار نهٔ شی تمام۔ هسې(کهٔ)
هر فرض واجب سُنت ئې زده وی دَ هر مقام۔ څو چار پرې
نهٔ کا گردن به ئې خلاص نهٔ شی لهٔ فرضو لهٔ واجبو لهٔ سُنتو
دَ هر مقام۔ (۴۰۳)

تمام به نهٔ شی هیڅ چار پهٔ زده بې چارې، بې زده پهٔ
زده، پهٔ چار هره چار شی تمام۔ گوره کړے مې دے خیرالبیان
پهٔ څلور ژبې موافق لهٔ قرآنه۔ پکښې دے بیان دَ رښتیاو دَ دروغو
دَ حلالو دَ حرامو او بیان دَ کړهٔ دَ نهٔ کړهٔ دَ هر مقام۔ پهٔ تا
دې وی اعلام۔ گوره کړے مې دے خیرالبیان کتاب ټینگ دارو
دَ دین، تندرستی دَ ایمان او چراغ دَ ادمیانو۔ چار کړه پهٔ قرآن
پهٔ خیرالبیان او پهٔ هغه کتاب چې موافق دے لهٔ قرآنه۔ دَ
تندرستی دَ پاره دَ زړهٔ دَ روح دَ ایمان۔ او کهٔ چار پرې نهٔ
کړې بخره دې نشته پهٔ خیرالبیان۔ ترو دې شرمېږی لهٔ
ما چې پند ورکوی وَ ادمیانو بې کړدې دَ خیرالبیان۔(۳۷۳) ترو
پند ورکړه پهٔ دا لهٔ کړو پس وَ هغو ادمیانو چې دې نغوږی
پند دې پهٔ چار کښېباسی او ویرېږی لهٔ ما پهٔ پټې او لهٔ
عذابه دَ اور چې دے نیران (۳۷۳)

گوره هر چې لولی خیرالبیان او پرې چار کا ور و به بښیم

وَ دہ وته ځلور ژبې - خبر به ئې کړم دَ کړه دَ نه کړه له چارې دَ هر مقام - پناه به ئې کړم دَ دنیا په ژوندون دَ نوس له بدئ دَ شیطان له مکره له ورکوالی دَ ایمان - (۳۷۳) ترو به ئې وباسم له منکرئ وَ باور وته له ګناهه ورمندن وته له غفلته وَ یادِ مدام (وته) (۴۰۴) له .بې راهئ وَ لار وته ، له ناپوهی وَ پوهې وته ، له راندہ والی وَ لیدہ وته له کاڼهوالی وَ اروېدہ وته (۴۰۵) له جدائئ وَ پېوستون وته او له شرکه وَ یکانګئ وته له نفاقه وَ اخلاص وته دَ سرې له خویه زما وَ خوئ وته ادمیان -

ګوره په بهښت کښې (مې) سرایونه باغونه کړی دی په ګنډار دَ پیری وَ ادمیانو - په هر سرائې کښې زما راحت دے - ژر به ئې ننه باسم له مرګه پس دَ هغه سرائې په راحت چې غواړی کهِ هغه څیز زما دے ترو به په رښتیا دَ دہ وی په تا دې وی اعلام زما حیاتی بقائی مال ، ملک ، عزیزی قراری ، خوی ، راحت او هر څیز چې (مې دے .بې (۴۰۶) شکه به دَ دہ وی - ته باور کړہ په دا کلام -

ګوره هر چې لولی خبرالبیان او چار پرې نه کا ورو به نه نبیم وَ دہ وته ځلور ژبې او خبر به ئې نه کړم دَ کړه دَ نه کړه له چارې دَ هر مقام - ولې پناه به نه موی دَ دنیا په ژوندون دَ نوس له بدئ نه له مکره دَ شیطان - او ژوندون به ئې وی له ګناهانو ترو به بیا موی عذاب دَ ځانکدن دَ ګور دَ قیامت دَ اور او عذاب رنګارنګ عیان -

# نوټونه

۱- عکسی نسخه کښې "بسم الله الرحمٰن الرحیم" لیکلې نه ښکاري.

۲- عکسی او چاپي نسخو کښې هم داسې دے.

۳- چاپي نسخه کښې "اتمام" دے.

۴- چاپي نسخه کښې دَ اضیح په ځائې یضیح دے.

۵- چاپي نسخه کښې ان یکتبون دے.

۶- چاپي نسخه کښې "تحزبون" دے.

۷- چاپي نسخه کښې "په ښه درست" او په عکسی نسخه کښې هم په دغه شکل لیکلے شوے دے خوشاید چې په عکسی نسخه کښې حرفونه "حرفون" لیکلے شوے دے.

۸- چاپي نسخه کښې دَ "هیغو" نه پس په لیندیو کښې "هغو" لیکلے شوے دے او دَ "بیا ئې ورانوی" په ځائې "بیا ورانوی" دے او حاشیه کښې ئې ښئیلی دی چې عکسی نسخه کښې "بیا ئې" دے.

۹- لهٔ دې نه پس عکسی نسخه کښې غټ تور داغ دے. ځکه تو دَ چاپي نسخې تتبع وشوه

۱۰- لهٔ دې نه پس ته عکسی نسخه دَ لُستو ده.

۱۱- دلته لکھیں دے خو دَ جملې په ابتدا کښې "لک کتاب الخ" لیکلے شوے دے.

۱۲- عکسی نسخه کښې دَ "که" په ځائې "کے" دے.

۱۳- دَ چې په ځائې عکسی نسخه کښې "چی" دے.

۱۴- لهٔ دې نه پس "اقرا وربك الاکرمُ الذی علم بالقلم علم الانسان ما لم یعلم. قرآن میں ہے (کا عیان) لیکلے شوی دی چې مونږ ته الحاق ښکاره شو ځکه چې دَ پښتو او فارسی حصو کښې نه وه. دَ هندی لهٔ دې حصې نه پس په عکسی نسخو کښې دا عبارت دے.

"من کتب بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم فجودّه تعظیمًا للّٰه تعالیٰ غفر اللّٰه ما تقدم من ذنبه قال النبی صلی علیه السلام - چاپي نسخه کښې، قال النبی علیه السلام ليکلے شوی او حاشيه کښې دَ عکسی نسخې عبارت ته اشاره شوې ده -

۱۵- دَ چاپي نسخې تتبع وشو - عکسی نسخه کښې عبارت په دې شکل کښې غلط ښکاری" اکتب حروف الذی ان یقرون لکل لسان -

۱۶- عکسی نسخه کښې دَ "انت عالم" نه پس "حروف القرآن" ښکاری نور عبارت دَ يو تور داغ لاندې پټ دے - دَ چاپي نسخې تتبع وشو -

۱۷- کتب الحروف الخ - عکسی نسخه -

۱۸- عکسی نسخه کښې صفا نه ښکاری - دَ چاپي نسخې تتبع وشو -

۱۹- عکسی نسخه کښې عبارت دَ لغوی غلطيو نه ډک دے - ځکه نو دَ چاپي نسخې نه نقل شو - معنیٰ ئې دَ فارسی، پښتو او هندی عبارت نه واضحيږی -

۲۰- هم داسې دے - دَ چاپي نسخې فاضل حاشيه کښونکی هم هم دغسې پريښے دے - حالانکه "نشان دیگر" پکار وه -

۲۱- عکسی او چاپي نسخه کښې" لهٔ هرشیز" راغلے دے -

۲۲- متن دَ عکسی نسخې مطابق دے - چاپي نسخه کښې "وغون" او "وښول" په "اوغون" او "اوښول" بدل شوی دی - مونږ په 'ښوول' کښې دَ چاپي نسخې املا په خپل ځائې وساتله -

۲۳- عکسی نسخه کښې "حرفو" په ليندیو کښې نه دے - خدائې خبر چې دَ چاپي نسخې حاشيه نګار ولې دا تورے په ليندیو کښې راګير کړے دے -

۲۴- عکسی نسخه کښې دَ "لکهه" په ځائې "لک" دے -

۲۵- چاپي نسخه کښې دا تورے سبحان (س ب ح ا ن) دے خو په عکسی نسخه کښې سجان (س ج ا ن) دی چې معنیٰ ئې ده پوهيدونکے - عالم -

۲۶- دَ اوپر په ځائې په چاپي نسخه کښې "اور پر" غلط دے۔

۲۷- عکسی نسخه کښې دَ تاتا په ځائې تاتا لیکلے شوے دے۔ او چاپي نسخې ورته اشاره کړے ده۔

۲۸- عکسی نسخه کښې هم داسې وه او چاپي نسخې هم ورته په متن کښې (کن ا) لیکلے دے۔

۲۹- دلته په عکسی نسخه کښې تقدیم و تاخیر ښکاری۔ دَ خیرالبیان دَ عام طرز مطابق دَ "په تا دې وی اعلام" جمله دَ "پیجانهن تون جان" نه پس راتلل پکار دی۔

۳۰- عکسی نسخه کښې ک دے خو چاپي نسخه کښې "که" لیکلے شوے دے۔

۳۱- متن دَ عکسی نسخې مطابق دے۔ چاپي نسخه کښې گ کا گه راغلے دے۔ او دَ چاپي نسخې حاشیه کښې دَ دې توری په دوه واره لیکلو دَ نه پوهېدو اعتراف شوے دے۔ عجیبه خبره دا ده چې په خیرالبیان کښې عام طور سره دَ گ په ځائې ک لیکلے شوے دے خو دلته ئې ځان له یو تورے گنلے دے او دَ ک سره دَ کښلې په ځائې یو ټکے لګولے شوے دے۔

۳۲- عکسی نسخه کښې هم داسې دے۔ چاپي نسخه کښې یفقه بها عاقلون انسان لیکلے شوے او حاشیه کښې ئې اصلاح ته اشاره کړې ده۔

۳۳- عکسی او چاپي نسخو کښې دَ سبحان په ځائې سبحان لیکلے شوے دے۔ وګورئ نوټ ۲۵۔

۳۴- دَ ن املا په عکسی نسخه کښې دَ چاپي نسخې نه بدله ده۔ چاپي نسخه کښې دَ ن دَ لاندې کښېږه ده خو په عکسی نسخه کښې دَ ن دَ لاندې نقطه ده۔

۳۵- چاپي نسخه کښې دَ ها په ځائې ها ها لیکلے شوے دے۔

۳۶- عکسی نسخه کښې دَ هر نه پس "لا" نشته۔ خدائې خبر چې دا تورے چاپي نسخه کښې څنګه راغلو۔

۳۷- له دې نه اګاهو دَ حضرت علیؓ یو قول درج دے او ورسره ئې رحمتی علیه لیکلے دے۔ دَ دې عبارت دا حصه په چاپي نسخه کښې نشته "صار باالله کل عمل والکلام قال هادی رحمتی علیه هذه الکلام موږ دا تول حصه الحاق ګڼو ځکه موږ ا ونه ړه۔

۳۸- عکسی نسخه کښې دَ يبدؤ په ځائې يبدی دَ اذا په ځائې اذ دَ يسبحُ په ځائې تسبحُ دَ "فتومن" په ځائې "فيومن" او دَ بِهٰذا په ځائې هٰذهٖ ليکلی شوی وو- عکسی نسخه کښې په "تسبيح" دَ نوټ نمبر ۱۸ ليکلے شوے دے خو نوټ نشته - لهٔ دې عبارت نه پس دَ "قال هادی" نه مخکښې کل شی قال تسبح الرحمٰن عبارت دې چې الحاق وګڼلے شو- وَ بهٰذا الکلام نه پس دَ قرآن کريم دَ يو ايت حصّه "تسبح له السموات السبع الخ راغلې وه چې متن کښې ځکه را نه وړے شوه چې دَ دې عبارت په فارسی ترجمه کښې دَ قرآن دَ دې عبارت په ځائې دَ سورهٔ بنی اسرائيل دا عبارت "وان من شیءٍ الا يسبح بحمده الخ" راغلے دے۔

۳۹- لهٔ دې نه پس دا عبارت دے "انظر قد جعل الله لکل شیءٍ قدراً" کان فی القرآن عيان - خو هر کله چې دَ فارسی دَ عبارت نه پس -

۴۰- دَ عکسی نسخې عبارت ګډوډ دے - دَ چاپي نسخې دَ عبارت تتبع وشوه-

۴۱- دَ ليندېو دننه توری عکسی نسخه کښې نشته- فاضل مرتب چاپي نسخه کښې دَ حاشيې سره راوړی دی-

۴۲- په عکسی نسخه کښې دَ ژبې ډېرې غلطۍ دی چې دَ چاپي نسخې فاضل مرتب ئې اصلاح کړې ده مونږ دَ چاپي نسخې دَ قرأت تتبع وکړو-

۴۳- په عکسی او چاپي نسخو کښې دا توری "اعلام" دے- خو دَ فارسی ترجمه کښې "توبدان" راغلے دے او مونږ دَ هغې ترجمه اِعْلَمْ وکړه حالانکه پښتو ترجمه کښې دا توری داسې ترجمه شوی دے "په تا دې وی اعلام"

۴۴- عکسی نسخه کښې دَ "وبشتی" او "مخلوقان" ترمنځه ليک دَ چاپي نسخې فاضل محشی "هر" لوستے دے خو عکسی نسخه کښې ليک مونږ و نهٔ لوستلے شو- او دَ "هر" نه بغير عبارت هم صحيح کېږی-

۴۵- عکسی نسخه کښې "انکه" راغلے دے- هم دغسې عکسی نسخه کښې "هستند" نشته-

دوارہ ځایه دَچاپي نسخې تتبع وشوه۔

۴۶۔ "عامی" دَ عربۍ دَ "رجل امی" او دَ فارسۍ دَ "مر رامی" ترجمه ده۔

۴۷۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "اوژغرل) دِ چې لا دیو پېدا شوی نه وو" دَ عکسی نسخې تتبع وکړے شو او دَ ژغرونه پس "دی" زیات کړے شو ځکه چې په زړه املا کښې دَ 'د' مکسور نښې شکل هم دا دے۔

۴۸۔ عکسی او چاپي نسخو کښې دا لفظ "کړندر" یا "کړندر" راغلے دے۔ خولکه چې څنګه عکسی نسخه کښې دَ بایزید دَ رسم الخط تتبع نه ده شوې (وګورئ هر ځائې دَ "ک" املا چې په ک لیکلے شوے دے) ځکه نوزمونږ په خیال دَ دې توری املا هم صحیح نه ده او شاید چې "کنړر" دَ "کنړل" حاصل مصدر وی۔

۴۹۔ عکسی او چاپي نسخو کښې "ستر ثنا" راغلی دی چې "سترې ثنا" هم لوستے شی۔

۵۰۔ دا لفظ توری دے چې صحیح تلفّظ ئې معلوم نه دے۔ که دا "تورے" یا "تورې" وی نو بیا پکار ده چې دَ "تمام" په ځائې "تمامه" ولُستلے شی۔

۵۱۔ چاپي نسخه کښې دَ "خاتم دَ انبیاء" په ځائې "خاتِم انبیاءً" دے۔ عکسی نسخه کښې دَ رسول کریمؐ دَ مبارک نوم نه پس دَ "علیه السّلام" الفاظ هم نه ښکاری شاید چې چاپي نسخه کښې دَ عکسی نسخې دَ "ع م" نه دا مطلب اخستے شوے وی۔

۵۲۔ "چې دې نغوړی" دَ عربۍ دَ "اتباعك" او دَ فارسۍ دَ "فرمان برادران تو" ترجمه ښکاری۔ که داسې نه وی نو بیا دَ عربۍ او دَ فارسۍ دغه ټکی بې ترجمې پاتې دی او دَ پښتو په متن کښې "چې دې نغوړی" نوی الفاظ دی۔

۵۳۔ له دې ځایه دَ پښتو خیرالبیان شروع شوے دے او دَ "او بایزید" نه پس ته نور عبارت دَ عربۍ او فارسۍ په حصّو کښې نشته۔

۵۴۔ "چې ئې لولی ادمیان" په چاپي نسخه کښې نشته۔

۵۵۔ عکسی نسخه کښې "چې ئې بنی لوست" ښکاری۔ چاپي نسخه کښې دَ سورت او

الرحمٰن ترمنځه " دَ " نشته۔

۵۶۔ چاپي نسخه کښې "(یا) جحتی کسان" دے۔

۵۷۔ "زما په لوستن پورې" چاپي نسخه۔

۵۸۔ دَ چاپي نسخې فاضل حاشیه لیکونکي دا نورے صحیح نه دے لُستلے اوشک ئې ښکاره کړے دے چې شاید دا "په ملک کښې" وی۔

۵۹۔ دې مقام کښې هرځائې چاپي نسخې دَ "مسخرې" په ځائې "مسخره" لیکلے راوړے دے۔

۶۰۔ چاپي نسخه کښې دَ "سود" په ځائې "سودا" ده

۶۱۔ چاپي نسخې دلته په لیندیو کښې دَ نعمت ئې نه پس "په بهانه" لیکلے دے خو زمونږ په خیال له دې نه بغیر هم مطلب واضحیږی۔

۶۲۔ دلته (او نورو د ېروځایونو کښې هم) چاپي نسخه کښې "گناهانو" راغلے دے۔ عکسی نسخه کښې "گناهان" دے چې گناهان او "گناهانو" دواړه لُستے شی۔

۶۳۔ " وَهغې چار وته مې لړی" عکسی او چاپي نسخو کښې عبارت داسې دے۔

۶۴۔ چاپي نسخه کښې "نفتې" دے۔ دَغسې دَ نوس په ځائې "نفس" دے او حاشیه کښې ئې دا تصریح کړې ده چې په عکسی نسخه کښې "نغښتې" "نوس" راغلے دے۔ مونږ خو دَ کابل عکسی نسخه کښې دَ "نغښتې" "غ" پیدا نه کړے شو۔

۶۵۔ چاپي نسخه کښې "په څه" او عکسی نسخه کښې "پسو" دے۔

۶۶۔ چاپي نسخه کښې "نه کښل" دے او حاشیه کښې وضاحت شوے دے چې عکسی نسخه کښې "نه ئې کښل" دے۔

۶۷۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے " راوښیه و ماته "

۶۸۔ دلته دَ چاپي نسخې فاضل حاشیه نگار دا عبارت داسې لوستلے دے "په کښې استوگ" او خیال ئې ظاهر کړے دے چې شاید دا عبارت " اس تاؤ کړه " (عنان قلم را بتاب) وی۔

۶۹- دَچاپي نسخې فاضل حاشيه ليکونکی" نه نغته " " نه نغوته" لُستی ده-

۷۰- چاپي نسخه کښې" دَ ادميانو" دے-

۷۱- " له دغه وړاندې الخ" چاپي نسخه-

۷۲- (دَ) انبياؤ اولياؤ الخ- چاپي نسخه- دا عبارت عکسي چاپي نسخه کښې دوه ځل راغلے دے او دواړه ځل انبياء او اولياء نه پس واو نشته- زمونږ په خيال دَ هغه دوړ دَ کلام طرز داسې نه وو- دَچاپي نسخې په ليکونکي بندا 'د' هم دَ مکررې املا په بنياد مونږ له ليکونکو ازاد وليکه-

۷۳- عکسی او چاپي نسخو کښې دَ " لاړ ښووني" په ځائې " لاړو ښووني" راغلے دے مونږ دَ لاړ نه پس ' و ' حذف کړو-

۷۴- " کومه ده" په چاپي نسخه کښې نشته-

۷۵- دا شعر (۹) عکسی نسخه کښې هرځائې هم داسې ليکلے شوے دے او چاپي نسخه کښې هرځائې دَ " ننگهان" په ځائې ناگهان ليکلے شوے دے- کېدے شي چې دا تورے اوس له استعماله پرېوتے وی- حالنامه کښې دَ نوی قبيلې له خوا په عربۍ کښې دا عبارت ليکلے شوے دے" ياتی الموت بغتةً علی الانسان ليس للانسان فی الدنيا مقام دائم المدام" (ص- ۲۸۵) چې هم دغه معنیٰ لری او هم دغسې دَ صراط التوحيد په ص- ۲۹ دَ نحوی غلطيو سره دا عبارت دَحديث قدسی په شکل کښې داسې ليکلے دے" ياتيه الموت بغتةً علی الانسان ليس للانسان فی الدنيا مقام دائم المدام"

۷۶- عکسی نسخه کښې دَ "پرې" په ځائې "دلې" دے- دَچاپي نسخې تتبع وشوه-

۷۷- چاپي نسخه کښې دَ لوټې په ځائې" لويه" غلط نقل شوے دے-

۷۸- چاپي نسخه کښې دَ "خوښی" په ځائې "خوشی" غلط ليکلے شوے دے-

۷۹- چاپي نسخه کښې" دَ قهر په راتل" غلط ښکاری- مونږ" راتلل" کړه-

۸۰- لیندیوکښې بندا توری په عکسی نسخه کښې نشته.

۸۱- له دې نه پس داسې ښکاری چې څنې پاڼې عکسی نسخه کښې نشته ځکه چې دَه اب وروستے لفظ "الجاهلون" دے او له دغه پسه لکه دَ نورو مخونو دَ راتلونکی مخ رکاب "یریداون" لیکلے شوے دے چې دَ چاپی نسخې حاشیه لیکونکی دَ متن حصه ګڼلې ده او "فی" ئې ورسره زیات کړے دے۔ چې دَ کابل په عکسی نسخه کښې نه ښکاری۔

۸۲- دَ اسراف په ځائې عکسی نسخه کښې "اسرف" دے۔

۸۳- عکسی او چاپی نسخو کښې" له نوس له شیطان" دے۔

۸۴- "روح یه ئې بوځی" عکسی نسخه۔

۸۵- چاپی نسخه دَ "کښلے" نه پس په لیندایوکښې "وی" راغلے دے چې څه ضرورت نه لری۔

۸۶- چاپی نسخه کښې عبارت داسې دے "چې یون ئې دے هر ګوره ګران"

۸۷- چاپی او عکسی نسخو کښې دَ ادمیانو په ځائې "ادمیان" دی۔

۸۸- چاپی نسخه کښې هم داسې دے لیکن عکسی نسخه کښې" ډیر بوی" دے چې "ډیر بویه" هم لوستے شی۔

۸۹- چاپی نسخه کښې دَ "هله" په ځائې "بل" صحیح نه ښکاری۔

۹۰- عکسی نسخه کښې هم داسې دے خو چاپی نسخه کښې دَ "خورندګان" په ځائې "خوزندګان" دے۔ شاید چې دَ چاپی نسخې فاضل حاشیه کښونکی دَ "دابه" معنیٰ کښې دَ "جنبنده" دَ لفظ استعمال نه دې غلطۍ ته رسیدلے وی۔ بهرکیف "خوزندګان" دَ فارسی توری نه دے البته که "خزندګان" وی نو امکان لری خو عکسی نسخه کښې 'و' ډیر واضحه دے او دَ "ر" دَ پاسه ټکے نشته۔

۹۱- چاپی نسخه کښې "سرے" دے۔

۹۲- چاپی نسخه کښې عبارت داسې دے" دَ زړه پرېشانی مې حرامه کړی (ده) دَ رزق

دَ پارهٔ " خو دَ عکسی نسخې عبارت " دَ زړه پرېشانی میحرام کړی دَ رزق دَ پاره "
زمونږ په خیال دغسې لوستل صحیح دی لکه چې مو په متن کښې راوړی دی۔

۹۳۔ متن دَ عکسی او چاپي نسخې مطابق دے۔ دا توری " ادمیانو " هم لُستے شی۔

۹۴۔ چاپي نسخه کښې دَ " په خوا " تکی پاتې شوی دی۔

۹۵۔ چاپي نسخه کښې " په سینه " دے۔ خو " پسینه " دَ " وخت نه پس " په معنٰی
کښې شاید چې زیات مناسب وی۔ والله اعلم بالصواب۔

۹۶۔ عکسی او چاپي نسخه کښې " دَ ادمیان " راغلے دے خو چاپي نسخه کښې پرې نوټ
هم شته چې دا دَ قواعدو خلاف دے۔

۹۷۔ دَ چاپي نسخې فاضل حاشیه لیکونکی دَ سر په ځائې په لیندیو کښې " هُکنا "
لیکلے دے شاید چې دَ هغوی په عکسی نسخه کښې دا توری وران شوے وه۔ یا
هغوی نه شو پاڅولے۔

۹۸۔ عکسی نسخه کښې دَ " دوی " په ځائې " دی " دے۔ چاپي نسخه کښې دَ " ځان " نه پس
" عیان " عکسی نسخه کښې نشته۔

۹۹۔ عکسی او چاپي نسخو کښې " هلکی " " بیفلکی " دے۔

۱۰۰۔ عکسی نسخه کښې دَ " دوئی " په ځائې " دَ دی " دے۔ دَ چاپي نسخې تتبع وشو۔

۱۰۱۔ چاپي نسخه کښې دَ " بل دَ اندام " په ځائې " بل اندام " دے۔

۱۰۲۔ دَ عبارت په سر کښې دَ " وَ سړی بویه " توری چاپي نسخه کښې " وَسړے بویه "
راغلی دی۔ دغسې عکسی نسخه کښې دَ " پېژند لی وو " په ځائې " پیژند لی وه "
او چاپي نسخه کښې دَ " کوره چې خوشو " په ځائې " کوره چې څه شو " راغلی دی۔

۱۰۳۔ عکسی نسخه کښې " هیغو " او چاپي نسخه کښې " هغه " دے۔

۱۰۴۔ چاپي نسخه کښې " رضا " او عکسی نسخه کښې " راز " دے۔

۱۰۵ دَ چاپي نسخې فاضل حاشیه نګار دا ځائې سم نه دے لُستے۔

۱۰۶ دَچاپي نسخې عبارت داسې دے " ته به باور کړه په دا کلام؟"

۱۰۷ چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې دے "هر چې محنت دَ بلا دَ فتنې له زیان کاږ-
له تاریک سرائې سره کا مبتلا به ئې کړم "

۱۰۸- چاپي نسخه کښې " ږوند والی" دے۔

۱۰۹- چاپي او عکسی نسخه کښې " پلیت" دے چې دَ سرائې دَ صفت په وجه " پلیتې"
ولیکلے شو۔

۱۱۰- "په مرداری" هم لُستے شی۔

۱۱۱- عکسی نسخه کښې هم داسې ښکاری۔ چاپي نسخه کښې قیاساً " په ضرور" لیکلے
شوے دے۔ " زړه وری" زیاته ښه معنیٰ ښندی۔

۱۱۲- چاپي نسخه کښې دَ " بقائی" په ځائې " بقا " دہ۔

۱۱۳- چاپي نسخه کښې دَ " بقائی" په ځائې "بقائے" دے۔

۱۱۴- چاپي نسخه کښې دَ " زښتی" په ځائې " زشتې" او دَ " ډېرې" په ځائې ډېره" دہ۔

۱۱۵- دَچاپي نسخې فاضل حاشیه کښونکی په " نان کوری" دا حاشیه لیکلې دہ " غالباً
چې دَ نانکورۍ مطلب دَ کبداې په غم کښې ږوند کوږ کرځېدل دی" مجمع اللغات
فارسی کښې دا تورے " نان کوری" او معنیٰ ئې " لالچی کمینه" لیکلې دہ۔ شتائن
گاس ئې معنیٰ " نمک حرامی" کړې دہ او برهان قاطع کښې ئې معنیٰ " کنایه از
حرام نمکی او بخیل کړې دہ چې ښاغلی رشاد تړې " اسی توب، کنسکی توب" کنجوسی او بخیلی معنیٰ
راخستې دہ۔

۱۱۶- چاپي نسخه کښې دَ " بد اولې" په ځائې " بی اول" دہ۔

۱۱۷- دا عبارت چاپي نسخه کښې داسې دے " .... غښتنه دَ بد دنیا پیدا کړم له بدگمان"
مونږ دَ عکسی نسخې " بد دنیا" او " ابد گمان" په ترتیب " بدې دنیا" او " له
بده گمانه" وُلستو۔

۱۱۸- دَ چاپي نسخې قرأت دا دے ''ما مينه دَ زيرړ دَ سپين زر، خريان، کرله، اورتي زامن دا هسې مشکل مې دَ دنيا مايه کړی دی اوخناوران'' دې عبارت کښې صرف دَ وړومبي توری ''دَ ميني'' په باره کښې فاضل حاشيه کښونکی وضاحت کړے دے چې دا دوئ دَ مطلب جوړولو دَ پاره بدل کړے دے۔

۱۱۹- دَ چاپي نسخې عبارت څه معنیٰ نه ښندای ځکه چې '' دی نوس'' په ځائې ''دَ نوس'' لُستے شوے دے۔ عکسی نسخه کښې دَ نوس اوهوس ترمنځه ''د'' واضحه نه دے خو دَ معنیٰ دَ جوړښت دَ پاره ضروری وو۔

۱۲۰- چاپي نسخه کښې دا عبارت دا سې دے ''حرص دې په صبر، اورد مهلت ..... ..... په چار دَ اسلام۔

۱۲۱- فاضل حاشيه کښونکی دَ عکسی نسخې ''ادب'' ''اوبه'' لوستی دی۔

۱۲۲- چاپي نسخه کښې دا عبارت دا سې دے '' او قهر په قوت په زغمل دَ عقل په رانا دَ وهشے نی بدګمان'' شايد چې دا وروستی ''غلطی'' ''وهشے نی ګمان'' دَ کتابت سهو وی

۱۲۳- چاپي نسخه کښې ''ستابويه'' دے -

۱۲۴- چاپي نسخه کښې ''ورمندنه'' ده۔

۱۲۵- چاپي نسخه کښې دَ ''مخلوقان'' په ځائې ''مخلوقا تو'' دے۔ خو دا صحيح ځکه نه دے چې له دې نه اګاهوهم خيرالبيان کښې ''مخلوقان'' راغلی دی او عکسی نسخه کښې دَ ''ن'' دائره بالکل واضحه ده -

۱۲۶- دَ ''خوبيولی'' په باره کښې دَ چاپي نسخې دَ فاضل حاشيه کښونکی توجيه صحيح وه په چاپي نسخه کښې دَ ''بېدارکا'' په ځائې ''بېدار'' دے چې صحيح نه دے -

۱۲۷- چاپي نسخه کښې ''نخښنه'' صحيح نه ښکاری۔ ځکه چې دَ ترسکاراتو او محبتی کسانو بېلې بېلې نخښې ښيئيلې شوی دی او دَ دوی دَ پاره دَ واحد صيغه استعمالول صحيح نه دی۔

۱۲۸- "دَ ترسکارانو نخښنه هغه ده" نه پس تر دې ځایه عبارت په چاپي نسخه کښې نشته-

۱۲۹- چاپي نسخه کښې "بل" دوه ځل راغلے دے-

۱۳۰- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "دَ هر مقام له واره حرام"

۱۳۱- "ځانګدن" په چاپي نسخه کښې اکثر ځنګدن راغلے دے-

۱۳۲- چاپي نسخه کښې وخت او عکسي نسخه کښې وقت دے-

۱۳۳- چاپي نسخه کښې "وکښلو" دے-

۱۳۴- عکسي نسخه کښې "وَ" واضح لیکلے دے خو چاپي نسخې نه پاتې شوے دے-

۱۳۵- چاپي کښې "له هغه پس" دے- مونږ په "س" پوه فتحه مقدره ولیکله-

۱۳۶- هم دغسې "بې نمازه تنه" په چاپي او عکسي کښې "بې نمازن تن" دے-

۱۳۷- دا لفظ څو ځایه عکسي نسخه کښې "هر یک" لیکلے شوے دے- دَ چاپي نسخې تتبع وشوه-

۱۳۸- متن دَ عکسي نسخې مطابق دے- چاپي نسخه کښې "په څه" دے-

۱۳۹- چاپي نسخه کښې دَ "کښې" ځائې خالي دے او صرف "چې په تا دے" لیکلے شوے دے-

۱۴۰- چاپي نسخه کښې دَ "بیا ئې مونده" په ځائې "بیا دې مونده" دے-

۱۴۱- چاپي نسخه کښې دَ "کا" په ځائې "کره" دے-

۱۴۲- چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې دے "…. دوه فرښتې دی چې ننوځی له دوه دَ خوی سره په زړه کښې دَ ادمیان" په حاشیه کښې فاضل مرتب خوی معنیٰ خوله یا خوله کړې ده- چې مطلب لا مشکلوی- زمونږ په خیال "خوئ" متن کښې دَ ارادې، نیت وغیره په معنیٰ کښې راغلے دے یعني منکر نکیر په دے اراده دَ دوئ زړه ته ورننوځي چې یا سزا ورکړی او یا نه یې-

۱۴۳- په چاپي نسخه کښې دَ "یا به دَ ده" په ځائې "یا به دے" لیکلے شوے دے-

۱۴۴- متن دَ عکسي نسخې مطابق دے- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "ژوندے به ئې کړم په دا عذاب به ئې عذابوی" عکسي نسخه کښې "عذاب وی" لیکلے دے چې

"عن ابوی" هم لیکلی شي لیکن متن کښې موتږ ځکه دا سې کړو چې د "عن ابوی" د واحد غائب د صیغې د پاره قرینه نه وه -

۱۶۵- عکسی او چاپي نسخو کښې عبارت داسې دے "اوچار دې نه کړه په دا ایت واعبدوا الله ولا تشرکو به شیئًا او نه په دا حدیث چې وئیلی دی سبحان" له دې نه پس یو عربي عبارت دے چې د چاپي نسخې حاشیه کښونکی د حاشیې مطابق ئې مطلب دا دے چې "چا زما معرفت حاصل نه کړو ابدی راحت ئې ونه مندلو" او محکښې ئې پرې دا تبصره کړې وه چې شاید دا عربي د بایزید په نزد الهامي وی - ځنې نورو ځایونو کښې چې د عربي عبارت کښې د حدیث په نوم لیکلی عبارت کښې د واحد متکلّم صیغه استعمال شوې وی نو بنا غلے حاشیه کښونکے دا گمان ځرگند وی چې شاید بایزید دا عبارت حدیث قدسی گڼی - دلته ئې داسې نه دی وئیلی - مونږ ته دا ټول عبارت الحاقی ښکاره شه ځکه چې هر څو که ایت کښې حکم شته خو "حدیث" داسې حکم نه لری چې "چار پرې کول پکار وو - بله دا که دا عربي عبارت د بایزید الهام وی نو بیا ئې ورته د حدیث نوم ولې ورکړے دے - په دې وجه زمونږ په خیال دا د نسخه لیکونکی غلطی ده چې اصلاح ئې وشوه -

۱۶۶- چاپي نسخه کښې "ترو به ئې عن ابوی" دے -

۱۶۷- دا تیکے د کاپل عکسی نسخه کښې "استی" ښکاری خو چاپي نسخه کښې ئې "استلے" لیکلے دے او په لیندیو کښې ورته کذا هم لیکلے دے نو شاید چې په اصل عکسی نسخه کښې هم "استلے" وی -

۱۶۸- دلته هم هغه اشکال را پیښیږی چې نوټ ۱۶۵ کښې پرې بحث وشو او دلته هم متن د الحاقی کیدو په وجه اصلاح غنیمته -

۱۶۹- له دې نه اگاهو د نوټ ۱۶۵ او ۱۶۶ ترمنځه عبارت کښې هم داسې مضمون کښې مونږ "حجت قطع شی" لیکلے دے چې عکسی نسخه کښې حجت کته شی" دے شاید چې هلته هم "کوته" وی -

۱۵۰- عکسی او چاپي نسخو کښې "لکه" دے.

۱۵۱- فاضل حاشیه کښونکی په حاشیه کښې دَ "همان" معنیٰ "هموار" کښلې دَه خو دا معنیٰ ئې مونږ په یو یو لغات کښې بیا نه موندَه. که دا لفظ "اکاهمان" وی نو دَ هغې معنیٰ یو شان دَه. دَ زړې املا له رویه "دامان" دَ "دهمان" لیکلے شو. نو دا تورے "دامانّ" هم کیدے شی.

۱۵۲- چاپي نسخه کښې دَ "هله ګوری" په ځائې "بلے ګوری" لیکلے شوے دے. دا تورے چې په عکسی نسخه کښې "بل" دے. "بل" هم لوستے شی خو مونږ په خیال دَ متن شکل دَ معنیٰ سره زیات مناسب دے.

۱۵۳- دا تورے په عکسی او چاپي نسخو کښې "لکه" دے. خو لهٔ دې نه اګاهو هم څو ځله عکسی نسخه کښې دَ هرکله په ځائې "هرلکه" لیکلے شوے دے. وګورئ نوټ ۱۳۷. ځکه زمونږ په خیال دلته دَ لکه په ځائې "کله" زیات مناسب دے.

۱۵۴- چاپي نسخه کښې دا تورے "بارغګران" لیکلے شوے دے او فاضل حاشیه کښونکی ورته په لیندیو کښې استعمالیه او دَ کُنا تورے لیکلے دے. "غه" دَ هغه مخفف او متبادل دے.

۱۵۵- دَ عکسی نسخې "دیوته" فاضل حاشیه کښونکی "دوئ وته" لُستلے دے.

۱۵۶- چاپي نسخه کښې دَ "قام دَ ذاکرانو" په ځائې "دَ ذاکرانو" دے یعنی "قام" ترې پاتې شوے دے.

۱۵۷- چاپي او عکسی نسخو کښې دَ "ځیر" په ځائې "زهیر" دے چې دلته معنیٰ نه ورکوی ځیر دَ ښا په معنیٰ کښې استعمال شوے دے او استعمالیږی. دغسې ړوند په ځائې ړانده بهتر دے. دعکسی نسخه کښې "ړند" دے.

۱۵۸- چاپي نسخه کښې "بدار و بدونی" غلط دے. دغسې کوږ هم غلط دے. او عکسی نسخه کښې کږ دے چې صحیح تلفّظ ئې کانه ولیکلے شو.

۱۵۹- چاپي نسخه کښې "بلے دوی وویني دے" خو په عکسی نسخه کښې "بیا به دوئ" ښکاری.

۱۶۰- عکسی نسخه کښې "خپل کرو" دے چې "خپله کرده" او "خپلې کردې" دواړه لیکلے شي چاپي نسخه کښې "خپله کرده" ده - موږ ته "خپلې کردې" بهتر قرأت ښکاري -

۱۶۱- عکسی نسخه کښې دا توری نشته - دَ چاپي نسخې تتبع وشوه -

۱۶۲- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "زما پې دیدن دَ رونډ له مقام" خو زموږ په خیال کښې زموږ قرأت بهتر دے -

۱۶۳- چاپي نسخه کښې "لکه کوری" لیکلے شوے دے او حاشیه کښې ئې دَ عکسی نسخې قرأت "لک ورتکوری" هم درج کړے دے داسې ښکاري چې ښاغلی حاشیه کښونکی دا تورے نه شو پاڅولے -

۱۶۴- چاپي نسخه کښې دَ "خپسر" په ځائې "خپل سر" لیکلے دے او حاشیه کښې ئې "خپسر" داسې راوستے دے لکه چې دَ حاشیه کښونکی په خیال کښې دا لفظ صحیح نه وي -

۱۶۵- دَ چاپي نسخې دَ فاضل حاشیه کښونکی دَ رائې مطابق دَ "پیر ناتمام" په ځائې "پیر تمام" بهتر وه -

۱۶۶- دَ دې ایت دَ فارسی ترجمې نه پس "په قرآن کښې دی عیان" راغلے دے -(عکسی نسخه کښې دَ فارسی ترجمه په حاشیه کښې ده) چې الحاق وګڼلے شو- دَ ایت ترجمه دا ده " هغه ورځ چې برغو پوک وهلے شي نو دَ دوئ ترمنځه به هیڅ نسبي رشته نه وي او نه به له یوه بله پښتنه کوي " دَ فارسی ترجمه کښې لږ ډیر تغیر هم بیان شوے دے -

۱۶۷- دا عبارت دَ چاپي نسخې په حاشیه کښې دے- په متن کښې لیکلے شوے عبارت داسې دے " ترو به وایم دَ ده وته"

۱۶۸- چاپي نسخه کښې " یا فلان و فلان" لیکلے شوے دے چې غلط دے- زموږ دَ متن دَ الفاظو معنیٰ ده " یا فلان ځوئې دَ فلان" په پښتو کښې تش حرف اضافت دَ ابنیت دَ رشتې ښئیلو دَ پاره استعمالیږي-

۱۶۹- چاپي نسخه کښې "به" نشته يعنې فقره داسې شروع کيږي۔ "چې بې تله بې لېدهالخ" "حصلوه" هم چاپي نسخه کښې "حاصله وه" (يعنې جديد تلفظ کښې) دے۔

۱۷۰- چاپي نسخه کښې دا الفاظ "په خپله نامه کښې" پاتې شوي دي۔

۱۷۱- دلته حاشيه کښې فاضل محقق ليکلي دي "يعنې دَ فلانی ځوئي يا دَ فلاني پس رو وګوري" زمونږ نوټ نمبر ۱۶۸۔

۱۷۲- چاپي نسخه کښې "مې" په ليندېو کښې ليکلې شوې ده حالانکه دَ عکسي نسخې متن کښې دا تورے ډېر واضح ښکاري۔

۱۷۳- چاپي نسخه کښې "اوس خپل نوم" پسې په ليندېو کښې "ويئم" ليکلے شوے دے خو موږ ئې ضرورت ونه ګڼلو ځکه چې وروستنے "ويئم" چې "خپله جار ويئم الخ" کښې را غلے دے۔

۱۷۴- چاپي نسخه کښې دَ نوټ باوجود دَ عکسي نسخې دَ قرأت تتبع شوې ده يعنې دا ځائې کښې داسې دے "ور به وَخپلو فرښتو الخ"

۱۷۵- چاپي او عکسي نسخې کښې عبارت داسې دے "چارا دې نه کړه په دا ايت" من عمل صالحًا فهو مومنٌ" دَ چاپي نسخې حاشيه کښونکي پرې دا نوټ ليکلے دے چې دا " ايت" قرآن کريم کښې نشته۔ ځکه نوهم دا ټول عبارت الحاقي وګڼلے شه۔

۱۷۶- چاپي نسخه کښې دَ "کوبنی کا" په ځائې " نه کښې" غلط ليکلے شوے دے۔

۱۷۷- چاپي نسخه کښې دَ "ننه" او "باسم" ترمنځه په ليندېو کښې "به" ليکلے دے چې څه ضرورت نه لري۔

۱۷۸- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "مقيمي ملکونه وَهر چې وي" يعنې دَ "هر" او "چې" ترمنځه "يو" نه دے ليکلے شوے۔

۱۷۹- دَ چاپي نسخې محشي دَ " ډارانده وه" نوري غلط لوستے دي او " ډارنه وه" ئې ليکلي دي۔

۱۸۰- چاپي نسخه کښې "رښتيا" دَ ورځ نه پس او دَ " نيکي بدي" نه بېل ليکلے شوے دے۔

خو زمونږ په خیال دَ متن قرأت زیات مناسب دے۔

۱۸۱۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې شروع کیږی "چې منافق ومری دَ ادمیانو" زمونږ قرأت صحیح دے۔ دغسې چاپي نسخه کښې ئې دَ پریوینځې عبارت غلط خو معنیٰ ئې صحیح لیکلې ده۔

۱۸۲۔ عکسی نسخه کښې "سری وه" او چاپي نسخه کښې "سړی" دے۔

۱۸۳۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "۔۔۔۔ اغستن هر چې په دې کښې وی" عکسی نسخه کښې "وی" نشته۔

۱۸۴۔ چاپي نسخه کښې "نور نعمت ئے عیان" صحیح نه ښکاری۔

۱۸۵۔ چاپي نسخه کښې دَ "یو یو له ادمیانو" په ځائې "یو له ادمیان" دے۔

۱۸۶۔ چاپي نسخه کښې دَ "بِه" په ځائې "په" دے چې اغلاط نامه کښې "به" شوے دے خو صحیح شوے نه دے۔

۱۸۷۔ چاپي نسخه کښې "ئې" نشته۔

۱۸۸۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "۔۔۔۔۔۔ دَ نوس دَ شیطان په ادمیان"

۱۸۹۔ چاپي نسخه کښې "کوره" نشته۔ دلته او نورو ځایونو کښې هم بایزید دَ اسلام دَ ارکانو سره دَ 'روا' صفت زیاتوی۔ مولینا عبدالقدوس صاحب پرې دا نوټ لیکلے دے۔ "بایزید مخکښې دَ پینځه واړو ارکانو سره "روا" لفظ په څه غرض لګوی۔ او غالبًا اشاره ئې دې ته ده چې دا ارکان دې رسمی په نفاق نه ادا کیږی بلکه مقصد دې پیشِ نظر وساتلے شی هله به دا روا وی" (چاپي نسخه ص۔ ۷۹) دَ مولینا عبدالقدوس صاحب دَ دې ګمان تائید دَ حالنامې دَ ص ص ۱۲۱، ۱۲۳، ۱۲۵، ۱۲۸ او ۱۲۹ ځنې کیږی چې هلته دیو ارکانو ته کله روا او کله جائز وائی۔

۱۹۰۔ چاپي نسخه کښې دا عبارت په غتو ټکو داسې لیکلے شوے دے "دَ نمانځه دَ فرض دَ واجب دَ سنت دے بیان"

۱۹۱۔ چاپي نسخه کښې دَ "شرم ځائې" غلط ښکاری "شرم ځائې" دَ بایزید روښان په

په اصطلاح یا شایې چې دَ هغې زمانې دَ اصطلاح مطابق "شرمګاه" ته وئیلے شوه۔

۱۹۲۔ چاپي نسخه کښې "پخو" غلط دے۔ له دې نه مخکښې چاپي نسخه کښې "دَ روا دی" په ځائې "روا ده" راغلی دی۔

۱۹۳۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "..... په لاس په ابه (هر) چې دَ وله وی" زمونږ په خیال په لیندیو کښې "هر" معنیٰ غلطوی ځکه چې دَ با یزید مطلب دا دے چې استنجا په شریعت کښې وَ په هغو ابو دَ لاسو ولل دی چې ونیځل پرې جائز وی۔

۱۹۴۔ دا عبارت که داسې ولُسلے شی نو معنیٰ ئې زیاته بنه شی "نزدیکی دې کا که له حلالو سره وی"

۱۹۵۔ عکسی نسخه کښې دَ "په هرام" نه پس "ده" زیاته ښکاری۔

۱۹۶۔ عبارت دَ عکسی او چاپي نسخو مطابق دے۔ ولې سیاق دَ کلام تقاضا کوی چې عبارت دې داسې وی "شرطونه او حکمونه دَ نمانځه یو نه وی"

۱۹۷۔ چاپي نسخه کښې "کوره" دَ تېر عبارت سره لیکلے شوے دے۔

۱۹۸۔ عکسی نسخه کښې "فائده" ده۔

۱۹۹۔ چاپي نسخه کښې "لارکانو" دے۔ عکسی نسخه کښې "لارکان" دے۔

۲۰۰۔ چاپي نسخه کښې دَ "ورے" په ځائې "ورمې" لیکلے دے۔

۲۰۱۔ چاپي نسخه کښې دَ "نترکولو" په ځائې "ترک کولو" دے۔

۲۰۲۔ چاپي نسخه کښې دا تورے "ورسنے" لیکلے شوے دے۔

۲۰۳۔ چاپي نسخه کښې دا توری داسې لیکلی شوی دی "ستوں ستروی" چې څه معنیٰ نه ښندی۔

۲۰۴۔ چاپي نسخه دَ "یستل" په ځائې "یستلی (کذا)"، دَ "ابو کوړول" په ځائې "ابه کوزول" دی۔

۲۰۵۔ دَ "ورجنې" په ځائې چاپي او عکسی نسخو کښې "ورجانے" "ورجانی" (بالترتیب) دے۔

۲۰۶- دَ چاپي نسخې "اچول" په عکسی نسخه کښې نشته -

۲۰۷- په چاپي نسخې کښې دا عنوان په جلی الفاظو کښې لیکلے شوے دے -

۲۰۸- چاپي نسخه کښې دَ "په حیض په نفاس" نه پس "دَمنی په وتل" الفاظ مکرراً نشته -

۲۰۹- دا تورے چاپي نسخه کښې "بیرہ مکرہ" غلط دے -

۲۱۰- عکسی او چاپي نسخو کښې دا تورے نشته - دَ مطلب دَ برابرولو دَ پارہ لہ ځانه ولیکلے شو -

۲۱۱- چاپي او عکسی نسخو کښې دَ "وبښنه" په ځائې "دبښمنه" صحیح نه ښکاری -

۲۱۲- چاپي نسخه کښې عبارت داسې شروع کیږی "دَ یتیم فرض او ماته ولی ئې الخ" لیکلے دے
چې معنیٰ نه ورکوی - دا لفظ، خو دغسې دے چې مونږ متن کښې راوړو او یا "ماته ونه ئې"
دے -

۲۱۳- "کم کاڼي" په چاپي نسخه کښې "کم کاڼے" لیکلے شوے دے -

۲۱۴- دَ عکسی نسخې عبارت "..... ابه پاک د او دَ اسمان" دَ چاپي نسخې حاشیه لیکونکی "ابه
پاکه دہ او دَ اسمان" لُستے دے -

۲۱۵- دا تورے چې په عکسی نسخه کښې ښه واضحه دے دَ چاپي نسخې مرتب "نرسی" لُستے
دے او شک ئې هم پرې ښکارہ کړے دے شاید چې فاضل مرتب "نرسی" دَ نرسوی (نسیال)
معنیٰ کښې یکارولے وی - لہ دې نه اګاهو ئې "نیزبی" ته هم استفهامیه اچولی دی -

۲۱۶- دواړو نسخو کښې "کوتر" او "چرګ" دے -

۲۱۷- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "لہ درې سوو پورې دا به ۳ او کاږدی - عیان -

۲۱۸- دَ چاپي نسخې قرأت دا دے "دَ یوشپې ورځې غوندې وجارباسی .... درې شپې روژو
غوندې ..... یا په څه بلوسېدلے وی"

۲۱۹- چاپي نسخه کښې "هیشو" دہ

۲۲۰- دا الفاظ په چاپي نسخه کښې په جلی خط داسې لیکلی شوی دی "بیان دَ پلیتۍ او پاکیزولی"

۲۲۱- چاپي نسخه کښې دَ "هر" نه پس "څه" په عکسی نسخه کښې نه ښکاری -

۲۲۲- متن دَ عکسی نسخې مطابق دے۔چاپی نسخه کښې عبارت داسې دے "کافروی یا مسلمان"

۲۲۳- داعبارت "نه پرې کیږی" "نه لرې کیږی" هم لُستے شی۔

۲۲۴- چاپی نسخه کښې "څودرمه" صحیح نه دے۔ځکه چې دلته دَ "څو" معنیٰ "څومره" ده۔

۲۲۵- چاپی نسخه کښې دَ "نمونځ" نه مخکښې "نو" په عکسی نسخه کښې نشته۔

۲۲۶- چاپی نسخه کښې دَ "واجب" نه مخکښې "دا" په عکسی نسخه کښې نه ښکاری۔

۲۲۷- چاپی نسخه کښې "شرط کړی ده دَ ایمان" دے۔

۲۲۸- دَ "که ته جامه" په ځائې چاپی نسخه کښې "کته جامه" لیکلې شوې ده او حاشیه کښې ئې ورته معنی "غټه جامه" لیکلې ده۔ دا قرأت غلط دے۔

۲۲۹- دَ چاپی نسخې فاضل مرتب دا تورے صحیح نه دے لُستے۔په متن کښې ئې "بزغرول" او حاشیه کښې ئې "بزغروی" (چې دَ عکسی نسخې اصل تورے دے) لیکلے دے۔

۲۳۰- چاپی نسخه کښې دَ "حکم ئې" په ځائې "حکمی" صحیح نه ښکاری۔

۲۳۱- چاپی نسخه کښې داعبارت په لیندیو کښې داسې دے۔(شفق دَ سرخې له پسه سفیدی)
عکسی نسخه کښې لیندې نشته او "ده" دَ "د" په صورت کښې ښکاری۔

۲۳۲- چاپی نسخه کښې دَ "هرچې ورځه وی" په ځائې "هر (څوک) چې ورځه وی" راغلے دے۔

۲۳۳- چاپی نسخه کښې "ښکاره درله دَ نیت دَ زړه فرض دی" زمونږ قرأت دَ عکسی نسخې مطابق دے او دا صحیح ځکه دے چې دا ټول بحث دَ نمانځه دَ وخت دَ پېژندلو راروان دے۔

۲۳۴- چاپی نسخه کښې دَصباح نه پس "سنت دَ رسول علیه السلام" څو عکسی نسخه کښې دَ "سنت" دَ لاندې درې ټکی هم شته۔ شاید چې فاضل مرتب دا خیال کړے وی چې 'س' دَ فارسۍ دَ پخوانۍ املا مطابق "پس" لیکلے شوے دے لیکن دَ خیرالبیان کاتب هرځائې دا التزام نه دے ساتلے۔ هم په دې مخ (۷ - ب) ورومبۍ کرښه کښې "مستحب" او وروستۍ کرښه کښې "هسی" دَ موجوده املا مطابق لیکلے دے او دَ 'س' دَ لاندې ئې درې ټکی نه دی کړی۔ دې عبارت کښې دَ چاپی او عکسی دواړو نسخو کښې "رکعت" هم "رکات" لیکلے شوے دے۔

۲۳۵- دې عبارت کښې دویم توری "دے" ( دَ میان نه پس ) زائد ښکاری - دَ چاپي نسخې فاضل مرتب دَ دې مشکل دَ حل دَ پاره دَ "راونسیه و ماوته" نه پس په لویو بریکټونو کښې "مکروهات دَ نمانځه اودَ جماعت" الفاظ دوباره لیکلی دی.

۲۳۶- دا فقره په چاپي نسخه کښې داسې ده "مکروهات دَ نمانځه لوبه ده لهٔ تن له جامې سره".

۲۳۷- په چاپي اوعکسی نسخو کښې دَ "پلتیه" نه مخکښې "په" نشته خو مونږ دَ ۲۳۸ نوټ دَ عبارت په رڼا کښې دا تکے زیات کړو -

۲۳۸- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "په پلتیه ناست په نمځدک کښې روا دی". دلته او هرځائې نسخه نویس "مزرک" لیکلے دے خو مونږ په خیال چې هرکله دا توری له نمانځه مشتق دے ځکه نو "نمځدک" لیکل ئې زیات صحیح دی -

۲۳۹- په عکسی نسخه کښې دَ "سپکه" نه مخکښې "په" نه ښکاری.

۲۴۰- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "چې و یا متیازی رواني وی" زمونږ متن دَعکسی نسخې مطابق دے.

۲۴۱- چاپي نسخه کښې دَ "ولا راستل" په ځائې "ولا راتل" غلط دے.

۲۴۲- دا توری دَ چاپي نسخې فاضل مرتب صحیح نه دے پاخولے او "یستل" ئې راوړے دے.

۲۴۳- دَ 'اسان' په ځائې په دواړو نسخو کښې "هسان" دے - چاپي نسخې حاشیه کښې "اسان" هم راوړے دے.

۲۴۴- چاپي نسخه کښې دَ "تړینه" په ځائې "نرینه" غلط دے.

۲۴۵- دا توری چاپي اوعکسی نسخو کښې هم داسې دے لکه چې ولیکلے شو ولې بهتر دا ښکاری چې "یسې" و لُستے شی.

۲۴۶- چاپي نسخه کښې "وائې" نشته.

۲۴۷- چاپي او عکسی نسخو کښې دَ لیښو په ځائې لینبی دی چې دَ نسخه نویس محلی لهجه ښکاری.

۲۴۸- دلته هم "دواړه ناستی" په دواړو نسخو کښې دی۔

۲۴۹- دَچاپي نسخې په حاشیه او په عکسی نسخه کښې "خپسر" دے دَ چاپي نسخې متن کښې "خپل سر" غلط دے۔

۲۵۰- دَچاپي نسخې فاضل مرتب دلته حاشیه کښې تصریح کړې ده چې غالبًا دا دې "دعا" ته اشاره ده "انی وجهت وجهی للذی فطر السمٰوٰت والارض حنیفًا وما انا من المشرکین" زمونږ په خیال نسخه نویس په غلطۍ دَ انی وجهت په ځاۓ "اللّٰهم انی" لیکلی دی لکه چې بناغلی فاضل مرتب دَ قرآن کریم دې عبارت ته "دُعا" ونُیلی دی۔

۲۵۱- چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې لیکلے شوے دے چې هیڅ معنیٰ نه ورکوی "پس دې پورې امین وائی په تا دې وی اعلام"

۲۵۲- عکسی نسخه کښې "هسان" دے۔

۲۵۳- دَ رکوع اختتام په تکبیر نه بلکه په "سمع الله لمن حمده" کیږی دلته څه اشکال شته۔

۲۵۴- "ترو دې تکبیر وائی ترو دې بله سجده کا الخ" په چاپي نسخه کښې نشته۔

۲۵۵- چاپي نسخه کښې عبارت په دې شکل څه بې معنی غندې دے "ترو دې سجده دَفرض دَ واجب دَ سنت له ادا کولو پس دِ ولاړ شی۔

۲۵۶- چاپي نسخه کښې عنوان په جلی الفاظو داسې لیکلے شوے دے "بیان دے دَ هیڅ چارې چې سجده پرې واجب شی" او حاشیه کښې دا نوټ راغلے دے" دا عبارت په کتاب کښې مسلسل دے کلمه ربط "دے" دا ښئ چې دا عنوان دے خو مخکښې په بله جمله کښې دَ "راوښیه" مفعول پاتې کیږی هلته به ئې محذوف وګڼو" هم له دې کبله مونږ دَ "بیان دے" په ځاۓ "بیان دې" ولیکلو چې "راوښیه" سره ئې ربط پاتې شی۔

۲۵۷- له دې جملې نه اګاهو په جعلی ټکو کښې "بیان دَ قضا ګنډارلو" فصل تړلے شوے دے او لویو بریکټونو کښې راګیر کړے شوے دے چې دا خرګندہ کړے شی چې په عکسی نسخه

کښې عنوان نشته۔

۲۵۸۔ عکسی نسخه کښې "سباه" او چاپي نسخه کښې "صبا" دے۔

۲۵۹۔ عکسی نسخه کښې "نمازښام" دے۔

۲۶۰۔ چاپي نسخه کښې دَ "پس" په ځائې "پسې" دے۔

۲۶۱۔ عکسی نسخه کښې دَ "که په خېمه" نه مخکښې 'و' نه ښکاری خو چاپي نسخې راوړے دے۔

۲۶۲۔ دَچاپي نسخې فاضل مرتب نه دلته غلطی شوې ده او بخبر له څه تصریحه ئې "کنه تن سبا کښې به ووځم" جمله له ځانه لیکلې ده۔ عکسی نسخه کښې بل که "بلکه" لیکلے شوے دے چې دَخیرالبیان دَ مخصوص لیک دود سره سم "بل کله" هم لوستلے شي۔

۲۶۳۔ دا لفظ په چاپي نسخه کښې نشته۔

۲۶۴۔ چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "چې دَ جمعې مونځ دَ نماز پېښین کا"

۲۶۵۔ چاپي نسخې کښې ئې دَ عبارت دَ سمولو دَ پاره 'وی' له ځانه لیکلے وه او عبارت داسې شوے دے "او له شرطو ئې وی" عکسی نسخه کښې عبارت داسې دے " او لشرتوی" دا تورے "اول شرط ئې وی" او "له شرطو ئې وی هم لوستے شي۔

۲۶۶۔ دلته دَچاپي نسخې مرتب په حاشیه کښې کښلی وی "دَ بایزید په دے مسئله پوه نه شو" شاید چې دَخیرالبیان دَ لیکونکی مطلب دا وی چې دَ جمعې دَ مانځه په رکعتونو کښې دَ سورتونو تعین نه دے شوے۔

۲۶۷۔ دا ځائې څخو اشکال لری۔

۲۶۸۔ دې توری ته دَچاپي نسخې مرتب استفهامیه نکولې او متبادل صورت ئې "بناریه" ورکړے دے۔ دَ متن قرأت ځکه بهتر دے چې 'بنهر' باندې حرف عامل "په" راشي نو 'بنهر' نه "بنارهِ" جوړ کړی۔

۲۶۹۔ چاپي نسخه کښې دَ "سجدهٔ" تورے نشته۔

۲۷۰۔ "دَخطبه (کذا) په محمل په غافل روا دی په ذاکر الخ" دَچاپي نسخې دې عبارت

اشکال پیدا کړے دے او بناغلی مرتب پرې نوټ لیکلے دےچې ” عبارت ګډوډ دے “

۲۷۱- چاپي نسخه کښې دَ ” نماز پښین “ نه پس ” نمونځ “ دےچې عکسي نسخه کښې نشته۔

۲۷۲- چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې دے ” نفل نمونځ (دې) دَ عید له مخکښې نه وړاندې (نه کا) - بین القوسین الفاظ فاضل مرتب له ځانه اضافه کړی دی - موږ دَ دغو الفاظو دَ کمولو دَ پاره دَ متن عبارت خوښ کړو۔

۲۷۳- چاپي نسخه کښې دَ ” نه “ په ځائې ” نهه “ دی۔

۲۷۴- چاپي نسخه کښې اخری عبارت داسې دے ” او درې دې پس ووائې “

۲۷۵- اخری عبارت په چاپي نسخه کښې داسې دے ” ..... له سورته سره دې لولی “

۲۷۶- چاپي نسخه کښې دَ عبارت اخری حصه داسې ده ” ترو دې تکبیر دَ وائې رکوع دې وکا “ خو عکسي نسخه کښې دغسې ښکاری لکه چې مو متن کښې راوړه۔

۲۷۷- چاپي نسخه کښې ” لس شو “ غلط دے۔

۲۷۸- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے ” ..... دَ هغه بویه چې ډېر استغفار دی وائې ... ....... دَ ګناه دَ کفارت دَ پاره دَ فقیرانو (ته) عیان “ دَ و فقیرانو معنیٰ کښې هغه ” ته “ شامل دےچې ښاغلی مرتب بین القوسین لیکلے دے۔

۲۷۹- چاپي او عکسي نسخو کښې ” حاله “ دے۔ دَ چاپي نسخې په حاشیه ئې دا نوټ هم لیکلے دے ” په هغې کښې اختلاف دےچې حیض دے که مرض “

۲۸۰- چاپي نسخه کښې دَ ” نو “ په ځائې ” نهو “ دے۔

۲۸۱- چاپي او عکسي نسخو کښې ” زیاتی “ دے۔

۲۸۲- چاپي نسخه کښې ” دے “ نشته۔

۲۸۳- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے ” هغه وینه وینه دَ استحاضې دے “

۲۸۴ دا عبارت په چاپي نسخه کښې په غټ قلم لیکلے شوے دے۔ له دې نه اګاهو په لویو ټکو کښې دَ (معذور - بانګ - دَ جنازې نمونځ) فصل تړلے شوے دے۔

۲۸۵- چاپي نسخه کښې "دَ ادا کوئے به وی" قرأت صحیح نه دے۔

۲۸۶- دَچاپي نسخې متن کښې "کوچي" او اغلاط نامه کښې "کوچنی" دے۔ ولې دَ عکسی نسخې متن کښې وضاحتاً "کوچي" لیکل شوے دے۔

۲۸۷- دَچاپي نسخې عبارت داسې دے "په صباح دې فلاح پسی......... درې واره وائی"

۲۸۸- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "له فلاح پس دې دوه وارې قد قامت الصلوٰة دې هم وائی" دې عبارت کښې "دې" دوه وارې راغلے دے۔ مونږ متن کښې صحیح کړو۔ عکسی نسخه کښې له فلاح پس دې دوه وارې ووائی" لیکلے شوے وه بیا دغه "ووائی" قلمزن شوے دے شاید چې "دی" له قلمزن کېدو پاتې شوے وی۔

۲۸۹- چاپي نسخه کښې فاضل مرتب په حاشیه کښې دا نوټ ورکړے دے "مطلب به ئې دا وی چې څوک چې په خپل جماعت کښې قرآن لولی او اذان وئیلے شی نو تلاوت دې پرېږدی او دَ اذان ځواب دې ورکوی او که له جماعت نه بهر وی نو خوښه ئې خپله ده که تلاوت کوی او که دَ اذان ځواب ورکوی" دا توجیه صحیح ده۔

۲۹۰- چاپي نسخه کښې دَ صلوٰة نه پس "دُعا" نشته۔

۲۹۱- له عبارته اګاهو په چاپي نسخه کښې "بیان دَ روژې" دَ بېل عنوان په ډول په لویو بریکټونو ( [ ] ) کښې راغلے دے۔

۲۹۲- چاپي او عکسی نسخو کښې دَ 'نمر' په ځائې "نور" دے۔ چاپي نسخه کښې ئې حاشیه کښې مسئله صحیح لیکلې ده خو ښکاری چې فاضل مرتب دَ "نمر" په ځائې دَ "نور" نورے څخو مشکلاتو کښې اچولے دے۔

۲۹۳- دا عبارت څه ګډوډ غندې ښکارې۔ چاپي نسخه کښې بناغلے مرتب په حاشیه کښې وائی چې دې کښې غلطی ده۔ زموږ په خیال دا عبارت داسې پکار وو۔ دَ روژه ماتی له نیته وړاندې هسې وایه ځکه چې دَ دې نه پس الفاظ دَ روژې دَماتولو دَ سنتو دُعا ترجمه ده۔

۲۹۴- چاپي نسخه کښې دَ سترګو تورول نه اګاهو "دَ سر غوړول" الفاظ هم راغلی دی چې په

## عـه

عکسی نسخه کښې نشته. چاپي او عکسي نسخه کښې "دَ سترګې تورول" دي چې دَ "سترګو تورول" محلي تلفظ دے.

۲۹۵- "اورتي سرهٔ لوبې کا" نه پس په عکسي او چاپي نسخو کښې "که" هم شته چې دَ تکرار له کبله مونږ حذف کړو.

۲۹۶- چاپي نسخه کښې دَ "وخوري" په ځائې "خوري" غلط دے.

۲۹۷- دا عبارت دَ محاورے خلاف دے. دَ "دوي په اتام" په ځائې "په دوي اتام" پکار دے.

۲۹۸- عکسي نسخه کښې باردارهٔ اورته ده.

۲۹۹- چاپي نسخه کښې دَ "روژې" په ځائې "ورځ" ده.

۳۰۰- دَ لېوني یا بې هوش دَ روژې په حقله دَ خیرالبیان مسئله دَ حنفي فقهې مطابق ده او مطلب ئې هم دا دے چې دَ هغو روژو به قضا کېږي کومې چې دَ لېونتوب یا بې هوښۍ نه پس ده نه دي نیولي. فاضل مرتب نه دې ضمن کښې څه غلط فهمي شوې ده.

۳۰۱- دَ ربط دَ قائم ساتلو دَ پاره چاپي نسخه کښې دَ "فرمان" او "اوسبحان" ترمنځه په لیندیو کښې "دَ زکوٰة بیان" عبارت زیات شوے دے. دَ دې غرض دَ پاره مونږ دَ "توانګرانو دے بیان" په ځائې "توانګرانو دې بیان" راوړے دے.

۳۰۲- چاپي نسخه کښې ټیټۍ ته ټیګی لیکلے شوے دے او "کیږدی" او "لیږدی" باندې سوالیه نخښې (؟) لګیدلي دي. دغه نسخه کښې دَ "پسول" نه مخکښې یو "په" زیاتي هم لیکلے شوے دے.

۳۰۳- چاپي نسخه کښې دَ "نړ پروزړو له شلو الخ" په ځائې "له نړ پړو له شلو" دے یعنې "زړ" ئې پر پیښے دے. په عنوان او نورو ځایونو کښې چې دَ 'نړ پړو' 'سپینو' او "نړرو" لیکل پکار وو هلته زېړ، سپین او نړر لیکلي شوي دي.

۳۰۴- عکسي نسخه کښې "تورا بهـ" دے چې "تورې ابهـ" هم لیستے شي. تورې ابهـ روانو ابهـ ته وائي چې له چینو حاصلې شوې وي.

## تعلیقات

۳۰۵- ''که هغه چې دَ کوهې .... الخ'' دا الفاظ څه اشکال پیدا کوی او دا سې ښکاری چې ځنې الفاظ دلته پاتې شوی دی۔ چاپي نسخې ئې داسې اصلاح کړې ده ''شلمه دې وباسی له هغه چې دَ کوهی په ابه پیدا شی او له یومې الخ۔

۳۰۶- چاپي نسخه کښې دَ عبارت اصلاح شوې ده یعنی عکسی نسخه کښې لیکلے ''بې حسیب'' په حسیب'' شوے دے۔ مونږ متن کښې دَ چاپي نسخې دَ حاشیې تقلید کړے دے۔

۳۰۷- چاپي نسخه کښې ''یا پس '' نشته۔

۳۰۸- چاپي نسخه کښې دَ ''بیان'' په ځائې'' زکوٰة'' دے۔

۳۰۹- په عکسی نسخه کښې'' دَ عباسی دَ جعفری، دَ عقیلی دَ حارثی دی'' الفاظ راغلی دی۔

۳۱۰- داسې ښکاری چې دَ عکسی نسخې لیکونکے دلته تیرو تلے دے ځکه چې مسئله رلکه چې دَ چاپي نسخې فاضل مرتب لیکلی دی) داسې نه ده۔ بلکه دَ دې برعکس او ځکه ''گران ئې خلاص شی'' پکار وه۔

۳۱۱- دَ چاپي نسخې فاضل مرتب واضحه کړې ده چې هغوی دَ ''تیځونی'' (چې دوئی ئې ''تیرونی'' لیکی) په معنیٰ پوه نه شو۔ تیځونی، سورلۍ ته وائې، څورے توښې ته وائې او دَ کاله خرڅ نفقه شوه چې دَ حج دَ پاره شرائط دی۔

۳۱۲- دلته دَ چاپي نسخې فاضل مرتب'' منداینې'' ته سوالیه نخښه (؟) لګولې او ورسره ئې ''کذا'' هم لیکلے دے۔ ښکاری چې فاضل مرتب دَ ''منداینې'' په معنیٰ نه پوهیږی مندا ینه یا ماندینه منکوحې ښځې ته وائې۔

۳۱۳- عکسی نسخه کښې دا عبارت داسې دے '' کعبه مې دَ خلیل کور مې کړے دے'' دَ چاپي نسخې تتبع وشوه۔

۳۱۴- عکسی نسخه کښې دواړه ځایه'' حصلیږی'' او چاپي نسخه کښې ''حاصلیږی'' دے۔

۳۱۵- دلته دَ خیرالبیان ورومبی حصّه (شریعت) ختمه شی او دَ هغه دَ تصوّف بیان شروع شی په دے لحاظ دا دَ خیرالبیان دویمه حصّه ده۔

۳۱۶- عکسی نسخه کښې "رحمت پهٔ دی او سلام" دے۔ دَ چاپي نسخې تتبع وشوه۔

۳۱۷- چاپي نسخه کښې "نهٔ نغته دَ نفس" وه اولهٔ دې نه پس" د ه" نشته۔

۳۱۸- دَ چاپي نسخې متن کښې دا تورے" نهٔ نغته" او پهٔ حاشیه کښې لکه دَ عکسی نسخې" پښت" راغلے دے۔

۳۱۹- لهٔ دې نه پس ته عکسی نسخه کښې دوه صحفه ۱۱۲- ب او ۱۱۳ الف پهٔ بدل خط لیکلی شوی دی او دَ ۱۱۳ الف پهٔ حاشیه دا نامکمل نوټ ښکاری" دا پاڼه نهٔ ده ځکه نو دَ پیښنو" دا سې معلومیږی چې دا دوه پاڼې لهٔ اصل عکسی نسخې ځنې ورکې شوی دی او دَ هغو پهٔ ځائې دَ پېښور دَ چاپي نسخې پهٔ مدد دوه پاڼې دوباره لیکلی شوی دی او کوښښ شوے دے چې دَ ټیک دود پهٔ لړ کښې دَ عکسی خیرالبیان تتبع وشی۔

۳۲۰- دَ چاپي نسخې مطابق دا کلمه پهٔ اصل عکسی نسخه کښې" دروهم" دے خو دَ کابل پهٔ عکسی نسخه کښې دَ پېښور دَ چاپي نسخې تتبع شوې ده۔

۳۲۱- "حصلیږی" دَ کابل نسخه کښې "حاصلیږ" او چاپي نسخه کښې" حاصلیږی" دے دَ هغه وخت دَ املا سره سم "حصلیږی" ولیکلے شهٔ۔

۳۲۲- لهٔ دې ځایه بیا دَ عکسی نسخې دَ اصل کاتب خط شروع شی۔

۳۲۳- دَ عبارت مفهوم مشکل دے۔ چاپي نسخه کښې ئې دا مفهوم بیان شوے دے" مطلب ئې دا دے"

۳۲۴- چاپي نسخه کښې" پهٔ تا شرم" دے۔ ښکاری چې دَ چاپي نسخې فاضل مرتب" پستا" داسې لوستے دے لکه چې ‌نن سبا مونږ" پښا" لولو۔ حالانکه خیرالبیان کښې اکثر" س" دَ" پس" پهٔ شکل راغلے دے۔

۳۲۵- چاپي نسخه دَ" وَ دوئ وته" پهٔ ځائې" دوئ وته" غلط دے۔

۳۲۶- چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې دے" یا به ئې لیږی چې یا دوی به دی پښتیښنا"

۳۲۷- چاپي نسخه کښې دَ" لهٔ مکره" پهٔ ځائې" مکر" غلط دے۔

۳۲۸- دې عبارت کښې چاپي نسخې دَ "ومال" "واورتو" او "وَ عزیزانو" په ځائې "دَمال" "دَ اورتې" او "دَ عزیزانو" لیکلي دے۔

۳۲۹- چاپي نسخه کښې دَ "فلان" په ځائې "فلانی" غلط دے۔

۳۳۰- عکسی او چاپي نسخو کښې "لوېې" دی خو دادَ کاتب خپله لهجه ښکاری۔

۳۳۱- دې عبارت کښې دَ "دنیا دَ خبرو دَ چارو په بهنه له بندګی" په ځائې په چاپي نسخه کښې "دَ دنیا دَ خبرو دَ چارو الخ" راغلي دے۔ دا عبارت "دَ دنیا دَ خبرې په بهنه" هم لُستے شی۔ دَ "ژبې لستنې" دوه ځل راغلي دے خو دا تکرار نه دے بلکه مطلب ئې دا دے چې شیطان دَ دنیا دَ کارونو په سبب انسان له بندګی او له لُستلو غافلوی او دَ دنیائی لستنو په سبب ئې له دائمی ذکره وباسی۔

۳۳۲- چاپي نسخه کښې دَ "په ښکری" په ځائې "له ښکری" او دَ "پوهه دَ نبی" په ځائې "پوهه دَ بنې" ترتیب صحیح نه دے۔

۳۳۳- چاپي نسخه کښې دَ "هغه وېنا چې قهر پیدا کېږی" په ځائې "هغه قهر چې پیدا کېږی" دے۔ دغسې کېږی په عکسی نسخه کښې "کېدونے" هم لُستے شی۔ دې عبارت کښې یو لفظ "پخوتل" دَ چاپي نسخې فاضل مرتب ته واضحه نه دے۔ دَ عکسی نسخې فرهنګ نګار استاد رشاد هم دا لفظ بې وضاحته پرېښے دے۔ دَ دې عبارت نه پس ته عبارت کښې ذهن کښې وساتلے شی نو دَ دې لفظ په باره کښې اندازه کېدے شی۔ یعنې دَ شیطان دَ مختلفو وسلو دَ مقابلې دَ پاره چې کوم علاجونه تجویز شوی دی هغو کښې ګمان په پرهېزګاری غېرت په ښکره دَ بدې وېنا غښتنه "زنا" په فکر قهر په قوت دَ زغملو هغه وېنا چې قهر پرې پیدا کېږی په پټه خلهه ورانے په قراری دَ اندام او اندوه په صبر رفع کېدے شی۔ دَ دې تصریحاتو په رنا کښې دا قیاس کېدے شی چې دا لفظ "په خله تل" دے چې دَ کاتب له خوا یو "له" پکښې پاتې شوې دے۔ دَ نوټ ۳۴۲ او نوټ ۳۴۳ ترمنځه دَ متن متعلقه عبارت خبره نوره هم صفا کوی۔

۳۳۴- د چاپي نسخې حاشیه کښې لیکلي دي چې د دغه نسخې مرتب د "لوی لوړ بیاه" په مطلب نه دے پوه شوے. مونږ په خپل قیاس عبارت داسې کړه لکه چې په متن کښې دے.

۳۳۵- چاپي نسخه کښې "راوښایه" غلط دے.

۳۳۶- دې عبارت کښې "خوی د زړه" او "اوسبحان" په جلي قلم لیکلي شوي دي دغسې له دې نه پس "او بایزید" هم په غټ قلم لیکلے شوے دے.

۳۳۷- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے "شپږ وکیږ [شپږ] وښی رخ وته. مونږ د "شپږ" ځائې بدل کړو.

۳۳۸- چاپي نسخه کښې له دې ځایه "ترو به هسې وائی" "تر" د ښی لوری له یارانو شی ادمیان" په نستعلیق کښې لیکلې شوې ده او پې شمیره غلطۍ لری. د "ځانګونو" په ځائې "ځنګونه" د "دوی تره د همت په ټینګه ویاسته" په ځائې "ترزحمت به ټینګ ویاست" د "هله به دې نه والوزوی" په ځائې "بل دې نه والوزوی د ګناهانو"

۳۳۹- دلته د چاپي نسخې فاضل مرتب دا نوټ لیکلے دے "کذا - اما "د ایمان" لفظ هیڅ مناسبت (نه - ناقل) لری" شاید چې فاضل مرتب ته غلط فهمي شوې ده. "د ایمان" لفظ مضمون سره مناسب دے ځکه چې د عبارت مطلب دا دے چې سړی لره نه دی پکار دی چې د ایمان د دارو د کرلو په ځائې د ایمان د پاره زهر وکری لکه چې د دې نه پس ته مضمون کښې د ایمان د دارو او زهرو ذکر شوے دے.

۳۴۰- چاپي نسخه کښې دې عبارت کښې د "نه نغته" په ځائې "نغته" ده حالانکه حاشیه کښې دا وضاحت شوے دے چې عکسی نسخه کښې "نه نغته" ده. د عبارت اخری فقره په چاپي نسخه کښې داسې ده "بل د ښی لوری الخ"

۳۴۱- چاپي نسخه کښې د "بشر" په ځائې "هنر" دے او ورته سوالیه نخښه او د کذا لفظ لیکلے شوے دے. دا لفظ د "بشر" په ځائې "په ربا" هم لُستے شی خو بیا به د 'عابد' نه مخکښې 'یا' غورځول پکار وی.

۳۴۲- دَ " هله به يُ زياته شى الخ " په ځايُ په چاپي نسخه کښې " به يُ زيات شى الخ " ليکلے دے۔

۳۴۳- چاپي نسخه کښې " خوری دې حلال " غلط دے۔

۳۴۴- چاپي نسخه کښې دا عبارت داسې راغلے دے " هر چې باور او چار کا " په عکسى نسخه کښې " هر چې باور او چارنک " دے چې مونږ داسې ولُستلو لکه چې په متن کښې دے دَ چاپي نسخې حاشيه کښې دا وضاحت شوے دے چې دَ عکسى نسخې " نه کا " مضمون سره سمون نه خوری۔

۳۴۵- په چاپي نسخه کښې دَ " پائنده راحت " په ځايُ " بلند راحت " دے۔

۳۴۶- چاپي نسخې " هر چې باور او چار کا " راوړے دے۔

۳۴۷- دَ " کهه وياست " يو شکل۔

۳۴۸- عکسى نسخه کښې " بکړد " دے۔

۳۴۹- چاپي نسخه کښې يُ " بناره " ته سواليه نخښه اچولې ده او ورسره يُ " کذا " ليکلے دے۔

۳۵۰- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے " يا يُ وران کا تر و يُ باغ کا بوستان "

۳۵۱- دَ چاپي نسخې قرأت دا دے " ترو کوم ځينږ پر ده روا شى وهل کهرمت او شى ادم پسندادى (؟ کذا)

۳۵۲- چاپي نسخه کښې " نه په بندګى " غلط دے۔

۳۵۳- چاپي نسخه کښې هغه عبارت نشته چې له " بد عمر مې دَ سرى " نه شروع کېږى او " زما بې نغتې يُ تېروى ادميان " پانداې ختمېږى۔

۳۵۴- چاپي نسخه کښې دَ " بسېګره کهه بدى، نغته کهه ګناه " په ځايُ " بسېګره کهه بدى کهه ګناه " ده۔ دَ " خپله چار به وفائى کا " په ځايُ " خپلې چارې بې وفائى کا " دے۔

۳۵۵- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے " دَ بدى يُ اختيار کړے دے واد ميان "

۳۵۶- چاپي نسخه کښې دَ " زه وکنېم " په ځايُ " زه وکېنم " دے۔

۳۵۷- چاپي نسخه کښې دَ "يوځبله" په ځائې "يو دبله" غلط دے۔

۳۵۸- چاپي نسخه کښې "په له غفلت له ګناهان" دے۔

۳۵۹- دا عبارت چاپي نسخه کښې داسې دے "...مخلوقاتو وته بشر وائي" او حاشيه کښې فاضل مرتب په فارسۍ ليکلي دي چې "دا کلمه په عکسي نسخه کښې واضحه نه ده راغلې او کلمه او معنیٰ دواړه سهيهې دي" دا کلمه "بشر" نه بلکه "به ستر" ده۔ او دَ "طمع دَ پاره" نه پس "به" زائد دے۔

۳۶۰- "موکل دی" په چاپي نسخه کښې نشته۔

۳۶۱- عبارت په چاپي نسخه کښې داسې دے "زما له خوی او قرار ئې[قرار] منلے وی۔

۳۶۲- عکسي نسخه کښې دا نورے "پکښېباسی" او چاپي نسخه کښې "پرې کښېباسی" دے هرکله چې دَ دې نه پس "ځنې وباسی" راغلے دے نو مونږ ورومبے تکے "ننه باسی" کړو۔

۳۶۳- چاپي نسخه کښې عبارت داسې شروع کیږی "ګوره زده کړه [وی] دَ نوس الخ۔ مونږ په بریکټ کښې دَزیات کړے شوی توری ضرورت ونه ګڼلو ځکه چې دَ عبارت مطلب په دې رنګ کښې واضح دے "دَ ادمیانو په ځان دَ نوس، دَ شیطان، دَ زړه، دَ روح زده کړه ګوره "

۳۶۴- دلته فاضل مرتب نوټ لیکلے دے "دا عبارت څه اغلاق لری خو غالبًا مطلب ئې دا دے چې ذکر دائم همیش جاری وی او نور عبادتونه خواه مخواه ځنې وخت دَ سرې نه پاتې شی" دا شبه شایدچې فاضل مرتب ته په دې شوې ده چې هغوی "پربکړه شی" (قطع شی) "پرې کړه شی" (پرې کړے شی) لُستے دے ګنی نودَ عبارت مطلب تقریبًا هم هغه دے چې فاضل مرتب بیان کړے دے۔ او څه اغلاق نه لری۔

۳۶۵- دې عبارت کښې فاضل مرتب دَ "ستروی" معنیٰ په حاشیه کښې "بزرګی" لیکلې ده۔ دَ عکسي نسخې فاضل فرهنګ نګار بناغلی استاد رشاد هم لغت نامه کښې دامعنیٰ

بیے

لیکلي ده - خو زمونږ په خیال دَ دې معنیٰ "ذات" دے۔

۳۶۶- چاپي نسخه کښې دَ "نه نخته" په ځائې "نغته" غلط دے۔

۳۶۷- دا عبارت چاپي نسخې په نستعلیق خط کښې داسې لیکلے دے "حاصل شی زما پېژندګلي وادمیان دَ ژبې په ښتنه دَ پښتو په تله په رښتینې یقین په چار دَ اندام په ذکر مدام په ترکول دَ ګمان او نیک خوی دَ ادمیان"۔

۳۶۸- "په تا دې وی اِعلام" په چاپي نسخه کښې په نستعلیق خط لیکلے شوے دے۔

۳۶۹- چاپي نسخه کښې دَ عبارت وروستې حصه داسې ده "بل ئې له ده زیات شي پوه دَ ښې لار ورایمان"۔

۳۷۰- دَ دې عبارت اخری حصه چاپي نسخه کښې په نستعلیق لیکلي شوې ده او دَ "عارف" نه مخکښې له ځانه ( په بریکټونو کښې ) "دَ" بې ضرورته زیات شوے دے۔

۳۷۱- دَ چاپي نسخې فاضل مرتب په "واجد" داسې نوټ لیکلے دے" په خیرالبیان کښې ئې دلته دَ واجد لفظ زیات کړے دے چې معنیٰ ئې "موندونکے" دے - خو دَ بایزید په مقاماتو کښې دَ وجد یا وجدان څه مقام نشته - ځکه دا کلمه هسې دَ وصف په طور استعمال شوې ده یو خاص مقام ته اشاره نه کوی"۔ دَ فاضل مرتب دا وینا پوره صحیح نه ده عارف واجد دَ معرفت موندونکی ته وائی چې لا دَ نوروسېرونو نه واقف نه وی - وګورئ نوټ ۳۸۰، ۳۸۳، ۳۸۵، ۳۸۷۔

۳۷۲- چاپي نسخه کښې "دَ شیطان" نه مخکښې "دَ نوس" سهواً پاتې شوے دے۔

۳۷۳- دا عبارت چاپي نسخه کښې په نستعلیق لیکلے شوے دے۔

۳۷۴- عکسی نسخه کښې "پاک تنی" دے چې چاپي نسخه کښې هم دغسې دے۔ شاید چې دا کلمه یا داسې وی لکه چې مونږه ولیکله او بیا "پاک تنی" وی۔

۳۷۵- چاپي نسخه کښې دلته بې ضرورته [سره] لیکلے شوے دے۔

۳۷۶ چاپي نسخه کښې له پیتې نه مخکښې "په" "په رښتینې" نه مخکښې "او" نشته۔

۳۷۷- دا عبارت چاپي نسخه کښې په نستعليق ليکلے شوے دے۔

۳۷۸- په چاپي نسخه کښې " ئې " نشته۔

۳۷۹- چاپي نسخې کښې دَ دې کلمې اوسنے شکل "حاصليږي" ليکلے شوے دے۔

۳۸۰- دَ عارف واجد په باره کښې وضاحت دَ غور قابل دے۔ دَ نوټ ۳۷۱ دَ عبارت په رڼا کښې دې دَ متن دا حصّه ولستلے شي۔

۳۸۱- عکسي او چاپي نسخو کښې "سترګې" دے چې دَ نسخه ليکونکي محلي لهجه ښکاري

۳۸۲- عکسي نسخه کښې " هرڅنبلي" دے۔ دَ چاپي نسخې تتبع وشوه۔

۳۸۳- دا عبارت هم دَ عارف واجد په باره کښې دَ کتلو دے۔

۳۸۴- چاپي نسخه کښې "ستروي" ده۔ خو دَ ستروي 'ي' دَ "لي" غُندې ښکاري۔ بهرکيف که "ستروي" وي هم دَ متن معنو کښې څه فرق نه راځي بلکه له دې زياته ثابتيږي چې "ستروي" او "لوئي" بېل بېل مفاهيم لري۔

۳۸۵- دَ عارف واجد په حقله دې عبارت کښې نور وضاحت هم شته۔

۳۸۶- چاپي نسخه کښې " ترهني پوري" دے۔

۳۸۷- چاپي نسخه کښې " واحد" دے خو ورته په لينډيو کښې " کذا " ليکلي شوي دي چې دا ترې څرګنديږي چې فاضل مرتب پرې مطمئن نه دے۔

۳۸۸- فاضل مرتب دلته دا نوټ ليکلے دے "دَ هغوئ ځيزونه او واړه ځيز" معنیٰ واضحه نه ده خو مطلب ئې تمام ځيزونه دي دا مطلب صحيح دے او دَ خيرالبيان دَ عبادت مطلب دا دے چې دا مذکوره ځيزونه او له دې نه علاوه نور ځيزونه مې په ا تکل کړي دي۔

۳۸۹- چاپي نسخه کښې " بې کوزي دَ " غلط دے۔

۳۹۰- دا ټول عبارت په چاپي نسخه کښې په نستعليق خط ليکلے شوے دے۔ دَ عبارت په اخري حصّه فاضل مرتب دا نوټ ليکلے دے " دَ دې عبارت مطلب واضح نه دے" ولې موږ ته پکښې څه اشکال ښکاره نه شه۔ دَ عبارت مطلب دا دے چې زما اوازصرف

هغه اوربدے شي چې شنواوی او هم داسې سرے په تسبیح او سرود خوښیدے شي۔

۳۹۱- چاپي نسخه کښې دَ "نه بویه" په ځائې "نه به وی" غلط دے۔

۳۹۲- چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے " له عبادته نه اوځی نور ادمیان" په عکسی نسخه کښې نور نشته۔

۳۹۳- چاپي نسخه کښې عبارت نامکمل دے۔ له " ناموا گاه شوې" نه پس چاپي نسخه کښې عبارت داسې دے " په بهښت دَ نعمت دَ درجې تښتن شوے "

۳۹۴- دومره حصه په چاپي نسخه کښې په نستعلیق خط کښې وه چاپي نسخه کښې " زیست ئې دے ناتمام" لیکلے دے چې مونږ " هستی ئې وی ناتمامه" ولوستو ځکه چې دَ دې نه پس عبارت کښې هم په دې ترتیب اخر کښې " نړ ما هستی ده بې نقصانه" راغلے دے۔

۳۹۵- چاپي نسخه کښې " څیز" نشته۔

۳۹۶- چاپي نسخه کښې "ما عزیزی" غلطه ده۔

۳۹۷- چاپي نسخه کښې" لکه ادمیان" دے۔

۳۹۸- چاپي نسخه کښې" سره" نشته۔

۳۹۹- دا حصه چاپي نسخه کښې په نستعلیق خط کښې ده۔ اخری عبارت کښې دَ "نوس" په ځائې په عکسی نسخه کښې "نور" دے چې صحیح نه ښکاری۔

۴۰۰- دې عبارت کښې فاضل مرتب دَ کوربدهسره په لیندیو کښې سوالیه نخښنه او خوزیدهٔ هم راوړی دی دَ بهیدهٔ په ځائې چاپي نسخه کښې " بهیرهٔ" په چاپي او عکسی نسخو کښې دَ " روانی" په ځائې "روان" دے۔

۴۰۱- دا ټول عبارت په نستعلیق خط کښې دے۔ چاپي نسخه کښې "له قیامه" نه پس بیا " له گناهه" لیکلے شوے دے۔

۴۰۲- چاپي نسخه کښې دا کلمه " کوزی (۹ خوزیدل) ده "

۴۰۳- دَ چاپي نسخې عبارت دا سې دے "هسې هر فرض واجب سنت (کښ) زده وی دَهر مقام" موندِ (کښ) "هسی" نه پس راوړو او دَ "سنت" نه پس "ئې" زیات کړو.

۴۰۴- چاپي او عکسي نسخو کښې "وته" نشته.

۴۰۵- "له کانړه والی دَ اروېږ ه وته" چاپي نسخه کښې نشته.

۴۰۶- دا الفاظ له چاپي نسخې واخستے شول. عکسي نسخه کښې سم نه ښکاری.

۴۰۷- دَ پناه نه پس عبارت په نستعلیق کښې دے.

# تتمه

له کرانو لستونکیو بخښنه غواړم چې د دردي مقدمې نه پس یوځل بیا ورته د خپل لیک د لُستو تکلیف ورکوم خو دا ډېر ضروري تکلیف دے ځکه چې د کتاب د کتابت نه پس ما ته ځنې داسې معلومات حاصل شو چې زه ئې کرانو لُستونکیو ته رسول ضروري گڼم. او د دغه مقصد د پاره دا پس لیک د تتمې په طور لیکم.

د خېرالبیان پېښنور چاپ کښې حافظ عبدالقدوس قاسمی صاحب د بایزید انصاري د دوه کتابونو مکتوبات او واجید دے اشلوک ذکر کړے وه. د دړومبي کتاب په باره کښې حافظ عبدالقدوس صاحب لیکي. " ډاکټر جهانګیر په خپل مضمون کښې لیکي. " پیر روشان کے مکتوبات میں ہے کہ ابراہیم دانشمند مدینہ کے رہنے والے تھے "، حافظ صاحب د دې حوالې نه پس خپله رائې داسې ښکاره کوي " خدائې ته معلومه ده چې د " پیر روشان مکتوبات " د ده د خطونو مجموعه ده که دا هم د دې حالنامې ذکر دے " [1]

بناغلي ښېنوا مرحوم د بایزید روښان یادونه کښې بغېرله څه تبصرې هم دغه الفاظ راخلي [2] خوجبیبي مرحوم مکتوبات او واجید دے شلوک " بې سنده " گڼي او د بایزید په تالیفاتو کښې ئې نه شمېري [3]

---

[1] مقدمه - ص. ۵۰ [2] د بایزید روښان یادونه - د کابل چاپ سریزه ص ۵۲
[3] د کابل چاپ د خېرالبیان سریزه - ص. ۲۹ او د روښان یاد - ص ص-۲۹۳-

تر څو چې دَ "مکتوبات" دَ استناد تعلق دے زما په خيال ښاغليو حافظ عبدالقدوس صاحب او دَ دوی په تتبع کښې بېنوا مرحوم ته غلط فهمی شوې ده خو حبيبی مرحوم ته دَ دوی دواړو په مقابله کښې لويه غلط فهمی شوې ده (لکه چې مخکښې به ئې ذکر راشی) حافظ عبدالقدوس او بېنوا مرحوم په دې شک (چې هم دَ حافظ عبدالقدوس صاحب الفاظ تکراروی) کښې دی چې "مکتوبات" او "حالنامه" کښې دا امکان شته چې ډاکټر جهانګير نه التباس شوے وی او دوی دَ حالنامې په ځائې "مکتوبات" ليکلی وی حالانکې ډاکټر جهانګير نه داسې غلطی هيڅکله نه شوه کېدے - اوّل خو په دې چې هغه دَ انصاريانو (برکيانو) دَ هم هغه خاندان فرد دے چې بايزيد انصاری پکښې پېدا شوے وه او دويم دا چې دَ يو محقق په حېث له هغه نه دَ دبستان مذاهب هغه بيان پټ نه شه پاتې کېدے چې دَ حالنامې په باره کښې دغه کتاب کښې راغلے دے او بله دا چې په دې مضمون کښې هم حالنامه دَ يو جدا کتاب په حېث معرفی شوې ده له ځکه نودَ مکتوبات په باره کښې دا شک بې بنياده دے چې ګني ښاغلی ډاکټر محمد جهانګير دَ غلط فهمی په بنياد حالنامه او مکتوبات يو کتاب ګڼلے دے۔

حبيبی مرحوم دَ خپل خيال او رائې دَ پاره څه بنياد نه بيانوی۔ خو ښکاره دا وه چې له هرڅا نه زياته دوی دا عقيده لرله چې مکتوبات دَ بايزيد روښان تاليف دے ځکه چې حافظ عبدالقدوس صاحب او بېنوا مرحوم ته دا غلطی شوې وه چې دَ مکتوبات په باره کښې دَ ډاکټر محمد جهانګير خيال دَ ستائيلی ډاکټر خپل خيال دے خو

## قصبح

حبیبی مرحوم خو خپلو ګنو مضمونونو کښې دَ هغه کتاب حواله ورکوی چې ډاکټر جهانګیر پرې دَ خپل خیال " بنیاد ایښے دے۔ دا دَ تذکرة الانصار په نامه یوه رساله ده چې علی محمد دانشمن په ۱۱۱۸ھ کښې لیکلې وه او دَ ډاکټر محمد جهانګیر دَ فروری ۱۹۵۵ دَ مضمون لویه حصه چې پکښې دَ مکتوبات او حالنامې ذکر هم راځی دَ تذکرة الانصار په متن مبنی ده۔ او شاید هم دَ دې تلخیص په بنیاد حبیبی مرحوم خپلو مضمونونو کښې دَ تذکرة الانصار حوالې ورکوی ځکه چې پخپله تذکرة الانصار دَ ډاکټر محمد جهانګیر په خیال کښې یو داسې کتاب دے چې تراوسه چاپ شوے نه دے او چې کومې نسخې نه ئو کاله مخکښې دوی استفاده کړې وه هغه په ۱۳۲۵ھ مطابق ۱۹۰۸ء کښې لیکلی شوې وه او دوی ته په جالندر کښې خان زمان خان ښئیلی وه خو دوی ته دا عِلم نشته چې خان زمان خان دَ تقسیم نه پس ځان سره دا نسخه راوړې وه او که نه۔ دَ دې کتاب دَ یوې بلې نسخې په باره کښې ډاکټر صاحب وائی چې دَ هند له وېشه مخکښې دوی اوریدلی وو چې دَ شیخ درویش اولاد سره دَ تذکرة الانصار یوه نسخه موجوده ده [1]

حبیبی مرحوم دَ تذکرة الانصار حواله دَ اعظم ګړھ دَ مجلې " معارف " دَ جون ۱۹۲۷ء دَ ګڼې په بنیاد ورکوی[2] خو دا ډیره غیرممکنه ده چې ډاکټر محمد جهانګیر به دَ معارف دغه ګڼه نظرانداز کړې وی۔ بهرکیف دَ " معارف " دغه ګڼه ما دَ ډیر کوشش

---

[1] ایضاً ص ۱۴۷۔ [2] دَ خیرالبیان سریزه ۔ ص ۔ ۷ ۔

باوجود هم و نه موندلے شوه ځکه نو ما سره دَ دې خبرې دَ تردید دَ پاره هیڅ ثبوت نشته چې حبیبی مرحوم ته غلط فهمی شوې ده او هغوی دَ اورینټل کالج دَ میګزین په ځاځ دَ "معارف" نوم لیکلے دے۔

خو هرڅه چې وی ډاکټر محمد جهانګیر دَ تذکرة الانصار تلخیص کښې دَ مکتوبات ذکر کوی او که حبیبی صاحب دَ تذکرة الانصار نور روایتونه منی نو دا روایت هم په دومره اسانه دَ رد کیدو نه دے۔

اوس به راشو دَ "واجید دے شلوک" لره۔ دَ خیرالبیان دَ پښبور چاپ په پیژندګلو کښې مولینا عبدالقادر مرحوم لیکی :۔

دَ لاهور دَ اورینټل کالج دَ فارسی دَ استاذ فاضل ډاکټر وحید قریشی چې دَ پنجابی او اردو ژبو دَ تحقیق په میدان کښې ممتاز حیثیت لری مونږ ته دَ بایزید انصاری دَ ځینې وینا ګانو (شلوکونو) په حقله ډیر قیمتی معلومات را استولی وو چې فاضل مولوی عبدالقدوس هغې ته دَ "بجیدا دے شلوک" یعنی دَ بایزید دَ ویناګانو په الفاظو په خپله مقدمه کښې اشاره کړې ده "[1]

مولوی عبدالقدوس صاحب په خپل وار دَ خیرالبیان په مقدمه کښې لیکی۔

۷- واجید دے شلوک۔ دَ پنجابی یو منظوم کتاب (مرتبه اونکلرناتھ) دے۔ دَ ځینې خلقو دا خیال دے چې دا هم دغه بایزید دے او دا نظمونه دَ ده دی "[2]

مولوی عبدالقدوس صاحب دَ "بجیدا دے شلوک" په ځاځ

---

[1] خیرالبیان۔ پیژندګلو۔ ص۔ ع۱۱۔ [2] ایضاً۔ مقدمه۔ ص۔ ۵۔

او بېنوا مرحوم په خپل تحقیق "دَ بایزید روښان یادونه" کښې هلاو دَ دې کتاب ذکر نه کوی - دَ دې مقصد دا دے چې هغوی دا کتاب دَ حبیبي مرحوم نه هم زیات بې سنده گڼلو ځکه چې حبیبي مرحوم ئې ذکر خو کړے دے خو بېنوا مرحوم دَ ذکر ورهم نه دے گڼلے -

کوم کتاب ته چې مولینا عبدالقادر "بجیدا دے شلوک" اوحافظ عبدالقدوس "واجید دے شلوک" (مرتبه او نګار ناتهه) وائې هغه خوما پېدا نه کړے شه البته دَ پنجابي ادب په تاریخونو کښې دَ پنجابي دَ یو پښتون شاعر "بابا وجید خان" "وجیدخان" او "وجید" ذکر راځی له چې دَ متفقه بیان مطابق په ۱۱۳۰ هـ کښې کابل سره نزدې پېدا شوے وه ظاهره خبره ده چې دا شاعر بایزید روښان نه شی کیدے ځکه چې نه خو بایزید روښان په ۱۱۳۰ هـ کښې پېدا شوے وه او نه دَ هغه دَ پېدائش ځائې کابل سره نژدې وه - دریو واړو تذکرو کښې دَ بابا وجید خان، وجیدخان یا وجید دَ وفات دَ کال ذکر نشته خو دَ پېدائش دَ کال نه ئې صفا پته لګی چې دَ بایزید روښان او دَ دې شاعر ترمنځه دَ زمانې ډېر لوئې فرق دے - دیو تذکرو کښې صرف اخری تذکره یعنی "پنجابی ادب دی کهانی" چې عبدالغفور قریشی په ۱۹۷۲ء کښې چاپ کړې ده "بابا وجید خان" او بایزید انصاری یو گڼی - دا تذکره نګار لیکی -

---

له پنجابی ادب دی کهانی - ازعبدالغفورقریشی ص - ۲۹۴، پنجابی ادب وتاریخ ازشمیم چوهدری - ص - ۱۰۲ او پنجابی شاعردا تذکره - ازمولا بخش کشته - ص ۱۱۱ - (په ترتیب)

دا کتاب "واجبه دے شلوک" په ځائې دا کتاب "واجبه دے شلوک" بللے دے او د ځنو خلقو (بغېر له تصریحه) په حواله ئې دا د بایزید انصاری کتاب ګڼلے دے۔

مولوی عبدالقدوس صاحب له بده مرغه د هغو "قیمتی معلوماتو" تفصیل هم نه بیانوی چې د مولینا عبدالقادر صاحب مرحوم د وېنا سره سم ډاکټر وحید قریشی صاحب دوی ته راستولی وو۔ ځکه نو د "واجبه دے شلوک" دا ماشوره نوره هم ورانه شی۔

ما د ډاکټر وحید قریشی صاحب سره د خپلو تعلقاتو په بنا له هغوی خواست وکړو چې که ممکن وی نو چې دغه "معلومات" ماته یوځل بیا راپېدا کړی۔ د ډاکټر صاحب عمر او صحت داسې نه دے چې دومره سترې کوونکے کار وکړی خو زه بیا هم د هغوی ډېره مننه کوم چې هغوی زما داسې رهنمائي وکړه چې د واجبه دے شلوک په باره کښې خپل لُستونکی له هغو غلط فهمیو راوباسم چې د حافظ عبدالقدوس صاحب د خاموشئ له کبله راپېدا شوې وې۔ دې ضمن کښې زه د ډاکټر وحید قریشی صاحب د لائق شاګرد ډاکټر انعام الحق جاوید هم مننه کوم چې د هغوی د عملی مدد په نتیجه کښې زه د دې غلط فهمیو د ازالې قابل شوم۔

"د واجبه دے شلوک" په باره کښې د خپلو معروضاتو نه مخکښې دا ضروری ګڼم چې بنا غلی لُستونکی په دې خبر کړم چې حبیبی مرحوم دا کتاب هم بغېر د څه سنده "بې سنده" ګڼی[1]

---

له د خېرالبیان کابل چاپ مقدمه۔ ص۔ ۲۹۔

"بابا وجید بارے نویں کھوج ایہہ دسدی اے کہ ایہناں دا اصل ناں بایزید انصاری سی۔ مذہبی علوم وچہ ایہناں دی مثنوی خیرالبیان ملدی اے۔ جیہڑی فارسی وچہ اے۔ ایہناں دے تفصیلی حالات تذکرۂ صوفیاتے سرحد وچہ ملدے نیں"۔ له

ترجمه: "دَ بابا وجید په باره کښې نوے تحقیق دا ښائي چې دَ دوی اصل نامه بایزید انصاری وه۔ مذهبی علومو کښې دَ دوی مثنوی خیرالبیان موندے شی چې فارسۍ کښې وه۔ دَ دوی تفصیلی حالات تذکرهٔ صوفیائے سرحد کښې شته۔"

اوس دا واضحه خبره ده چې نه خیرالبیان مثنوی ده نه دا کتاب یواځې فارسۍ کښې دے او نه تذکرهٔ صوفیائے سرحد کښې دا لیکلی دی چې بایزید انصاری هم هغه سړے وه چې پنجابی ادب کښې دَ "بابا وجید خان" "وجیدخان" او "وجید" په نامه پیژندے شی۔ که دې تذکره نګار تذکرهٔ صوفیائے سرحد لُستے وے نو هیڅرے به یُ دا غلط بیانی نه وه کړې۔

دَ کومو پنجابی تذکرو چې ما ذکر وکړو لږ هغو نه صرف یوه تذکره کښې دَ "واجید دے شلوک" ذکر دے۔ شمیم چودهری "پنجابی ادب و تاریخ" کښې وائی۔

"وجید نے اپنے کلام میں اللہ کی بے نیازی کو نہایت دلکش اور پیارے انداز میں پیش کیا ہے۔ آپ کا یہ کلام "وجید دے شلوک" کے نام سے مشہور ہے۔" له

ترجمه:- وجید په خپل کلام کښې دَ الله بې نیازی په ډېر زړه راکښونکی

---

له دغه کتاب۔ ص۔ ۱۰۲۔

او خوږ انداز کښې پېش کړې دہ۔ دَ دوی دا کلام ”واجید دے شلوک“ په نامه مشهور دے۔

دَ پنډت او نکار ناتهه بهاردواج ذکر په دوه تذکرو کښې تقریبًا یو شان لیکلے شوے دے۔ شمیم چودهری په خپله اردو تذکره کښې وائی:-

*”پنڈت اونکارناتھ بھاردواج لکھتے ہیں وجید بڑے اکڑفوں والے پٹھان تھے“*[1]

مولا بخش کشته په خپل کتاب پنجابی شاعراں دا تذکره کښې لیکی:-

*پنڈت اونکارناتھ بھاردواج دی کھوج مطابق اِہ پورے اکڑخان پٹھان سن“*[2]

دَ دواړو عبارتونو ترجمه په ترتیب داسې دہ:

”پنډت اونکارناتهه بهاردواج لیکی چې وجید ډېر کلا نکاری لروکے پښتون وه“ (شمیم چودهری)

”پنډت او نکار ناتهه بهاردواج مطابق دے پوره کلا نکار پښتون وه“ (مولا بخش کشته)

دیو دواړو بیانونو کښې دَ اونکارناتهه بهاردواج معرفی دَ ”واجید دے شلوک“ دَ مرتب په حېثیت نه بلکې دَ ادب دَ یو مؤرخ په حیثیت شوے دے۔

دیو دریو واړو تذکرو کښې دَ 'واجید' هم یو نظم دَ نمونهٔ کلام په طور نقل شوے دے او اګرچې دَ دغه نظم دَ بایزید انصاری سره هیڅ تعلق نشته بیا هم له دغه نظمه یو بند دلته رانقل کوو۔

آپ نبی مقبول رسول خدا دا
نبیاں دا سردار رسول خدا دا
امت دے بُت جیون اس دے جان مر
وجیدا کون صاحب نوں آکھے انج نہیں انج کر

---

[1] هم دغه کتاب هم دغه مخ [2] دغه کتاب ص - ۱۱۱

ترجمه:- پخپله نبی مقبول ته چې دَ خدائې رسول او دَ نبیانو سردار وه (خیال وکړه) چې دَ امتیانو زامن ژوندی وی او دَ هغه مړه شی- وجیدا صاحب ته څوک ووائی چې داسې کوه او دغسې مه کوه "

له دې بحثه دا خبرې ثابتې شوې-

۱- بایزید انصاری او واجید بیل بیل شخصیتونه وو-

۲- واجید دے شلوک دَ بایزید انصاری نه بلکې دَ واجید دَ کلام مجموعه ده چې دولسمه صدی هجری کښې دَ پنجابی یو پښتون شاعر وه-

۳- واجید دے اشلوک پنډت او نکار ناتهه نه دے مرتب کړے-

۴- پنډت او نکار ناتهه بهار دواج دَ پنجابی یو ادبی تذکره نگار دے-

فهوالمراد

قلندر مومند

۶ ر ستمبر ۱۹۸۷ء

# اشاریه

## ا

## نومونه

# اشاریه

# ب

# کتابونه

یادداشتونه: ۱۔ دَ دواړو اشاریو تعلق مقدمې او دَ هغې تتمې سره دے
۲۔ دَ اشاریو دَ ترتیب په سلسله کښې دَ ښاغلی اسد الله غضنفر دَ زیار منته کوم۔

# دَ ناشر عرض

زمونږ په ليک دود او املا کښې ډېرې کمې دي چې دَ هغو په وجه زمونږ سکولونو ته تلونکي هلکانو او جينکيو ته ډېرې پرېشانۍ پيښيږي. زمونږ ماشومان چې "تماچه" او "باغچه" کښې دَ "چه" تلفظ زده کړي او بيا دَ "چې" په ځائې په ليک کښې "چه" ويني نو دَ هغوی ذهن کښې خامخا دا سوال پېدا کيږي چې دا څنګه ژبه ده چې پکښې "چه" او "چې" يو شان ليکلے شي.

دغسې چې دوی "سړے" (بنيادم) "سړې" (ښځې) او "سړي" (بنيادمان) يو شان ليکلی ويني نو خامخا ئې په وړو وړو ذهنونو کښې سوالونه پېدا کيږي.

"زړه" (دل) او "زړه" (بوډۍ) بيل بيل ټکی دي که دا دواړه ټکي مونږ دَ "زړه" په شکل وليکو نو خپل ماشومان به په حېرت او پرېشانۍ کښې مبتلا کړُو. هم دغسې "کونړ" (هغه سړے چې خبره نه شي اورېدے) او "کونړ" (دَ علاقې او سيند نوم) که په يو شکل وليکلے شي نو نه صرف غلطه

بـکې دَ ماشومانو د پاره پرېشانی پیدا کوونکې خبره هم ده۔ غلطه په دې چې "کوڼ" کښې دَ "ڼ" دَ اواز نه پس یوه غنه ده چې هغه په کونړ کښې نشته - او دَ دې غلطۍ په وجه ډېرې پرېشانۍ پیدا کیږی۔

دَ "ی" یو آواز داسې دے چې څوک ئې تېره وائی او څوک پـخ۔ لکه چېلی کښې چې څوک ئې اَئ وائی او څوک ئې اَئے۔ دا تکے داسې لیکل پکار دی چې ټول پښتانه ئې دَ خپلې خپلې لهجې مطابق درست وویلے شی ځکه که داسې ی دَ ئ په شکل کښې ولیکلے شی نو دواړه لهجې ویونکی پرې داسې متفق کېدے شی لکه چې په "پښتون" باندې "پختون" او "پشتون" ویونکی متفق شوی دی۔

په پښتو کښې دَ لیک په سلسله کښې دَ اتفاق دَ را پیدا کولو، دَ ماشومانو ذهنونه دَ غېر ضروری شکونو او اعتراضونو نه دَ صفا کولو او دَ پښتو ژبې دَ ودې دَ پاره مونږ خپلو کتابونو کښې دا التزام ساتلے دے چې :۔

١- دَ زړې املا دَ "نړ" په ځائې به مونږ "ڼ" لیکو یعنی ښخوا به چې "کونړ" لیکلے کېدو اوس به ئې مونږ کوڼ لیکو "ورونړه" به "وروڼه" لیکو وعلی هذا القیاس۔

٢- ښخوا چې به په کومه "ه" مونږ دَ ء علامت اچولو اوس به هغه "ه" مونږ دَ "ه" په صورت لیکو۔ ځکه چې که چانه ء هېره شوه نو تکے به غلط شی۔ هسې هم زور، زېر او پېښ په تکو اچول دَ املا دَ جدیدو اصولو سره سمون نه

خوری او دَ ټائپ په سلسله کښې سختې ګرانۍ پېښوی
ځکه نو په يو ټکي ء اچول صحيح کار نه دے. بلهٔ داچې
"دهٔ" او "څهٔ" کښې ء په 'ه' او "ـه" اچول ماشوم
په مشکلاتو کښې مبتلا کوی - دَ دې په ځائې که موږ
"ه" وليکو نو دا مشکل به حل شی - "ه" تراوسه په
پښتو کښې صرف دَ ټکي په سر (لکه هر) يا دَ ټکي
په مينځ (لکه نهر) کښې استعماليږی - دَ ټکي اخرته دا
توړے موږ اوس محض په دې غرض استعمالوُو چې دَ پښتو
ژبې يو مشکل ختم شی او ماشومانو ته دَ پښتو ليک زده
کول اسان شی -

۳- زمونږه زړه املا کښې "مهې" (دال) او "مهے" (کب) دواړه
يو شان "مهے" ليکلے شی - دَ دې مشکل نه دَ خلاصی دَ پاره
دا ضروری وه چې دَ مهے (کب) او "مهې" (دال) ليک دې
بل بل شان وی چې که يو سړے وليکی چې " مهے خورې"
نو چې لُستونکے په دې پوه شی چې ليکونکے دال يا دوی
او که کب - ځکه نو داسې ئې، چې دَ زېر نه لږ زيات اواز
ورکوی، به "ې" ليکلے شی - لکه سړې (ېخې) - دا توړے
چې دَ ټکو په مينځ کښې راشی نو هغه 'ی' به صرف
په لاندې باندې ټکيو (:) څرګندهٔوُو لکه تېل - جېل وغېره

۴ هغه ی چې په مونثو اسمونو کښې راځی (لکه څپلۍ
جينۍ وغېره) به په "ۍ" ليکو او په دې وجه به
جالۍ، کرسۍ ليکو او جالئ، کرسئ به غلطه ګڼو -

ه هغه ی چې دَ زور دَ اواز نه لږه غُنډې وړ ده وی لکه
سړے . زمرے چې ورته نرمه ی یا مجهوله ی وایو دَ "ے"
په شکل لیکل پکار دی۔
ښېره "ی" (لکه په سړی، خوری۔ کری کښې) به
هم داسې یعنی دَ "ی" په شکل لیکو او داسې "ی" چې
دَ ټکو مینځ کښې راشی نو دَ . . (خوا په خوا ټکو)
په علامت به ئې څرګندوُو لکه "تحریر" "بهـیر"
"شوګیر" وغېره۔
خدائې پاک دې وکړی چې زمونږ ګران لُستونکی داڅوټکی
دَ هغه جذبې لاندې ولولی دَ کومې لاندې چې لیکلی شوی دی
او دَ پښتنو دَ اتحاد منزل پرې نورهم رالنډ شی۔ الهم امین

---

# سبحان الله

ا لهٔ ګرانو لُستونکیونه پهٔ ډېر معذرت دَ غلطیو دا وړد فهرست پېش کوؤ - مهربانی وکړئ دَ کتاب شروع کولو نه اګاهو دَ غلطیو اصلاح وکړئ - مونږ دا دعویٰ نهٔ لرو چې لهٔ دېو غلطیونه بغېر پهٔ دې کتاب کښې نورې غلطۍ نشته - لهٔ غلطیو پاک ذات دَ خدائ پاک دے دَ هغهٔ پهٔ تسبیح مونږ دَ خپلو غلطیو اعتراف کوؤ او لهٔ ګرانو لُستونکیو توقع لرو چې کهٔ دې کتاب کښې نورې غلطۍ دَ هغوی پهٔ نظر راشی نو مونږ دې ترې خبر کړی پیشګی مننه -

ب دَ اشاریه ا او ب تدوین مکمل طور سره دَ حروف تهجی مطابق او بشپړ نهٔ دے -

| مخ | کرښه | غلط | سم | مخ | کرښه | غلط | سم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جیم | ۳ | الرحمن | الرحمٰن | ۱۸ | ۹ | زخمته | زحمته |
| ۱ | ۱ | لوستونکیو | لُستونکیو | ۱۹ | ۵ | یو پړاو | یو بړو |
| ۱ | ۵ | او دَ محترمو | او محترمو | ۲۳ | ۹ | والحقیقة کمثل | دا جمله زیاتی ده - |
| ۳ | ۱۱ | اجر | ابتر | | | اللیل والطریقه | |
| ۴ | ۲ | حاشیه نګاروانی | حاشیه نګارائې | | | کمثل النجوم - | |
| ۴ | ۴ | دا دَ هغه | دا دَ هغهٔ | ۲۴ | ۱ | پیر دستګیر | دَ پیر دستګیر |
| ۴ | ۱۱ | "خدائ حکم" | "خدائی حکم" | ۲۲ | ۷ | دواړو | دَ ورو |
| ۵ | حاشیه دویمه کرښه | تذکرة الابرا بر | دَ تذکرة الابرار | ۲۴ | ۱۲ | واحد | واجد |
| ۷ | ۹ | کښې | کښی | ۲۴ | ۱۲ | توب دے | مقرب او سامع |
| ۷ | ۱۰ | فضلناهُ | فصّلناه | ۲۵ | ۱۳ | واحد | واجد |
| ۷ | ۱۲ | یقرقُ | یفرق | ۲۷ | ۵ | غوږهٔ | غوږ |
| ۷ | ۱۵ | بیا به دَ خپلې | بیا به وَ خپلې | ۲۸ | ۳ | الهام کتاب | الهامی کتاب |
| ۹ | ۲۰ | "خدائی لهٔ خوا | "خدائی لهٔ خوا | ۲۸ | ۲۱ | او یائې دا حال | دوه څله راغلې ده - |
| ۹ | ۲۰ | خطاب | خطاب" | | | شهٔ - | (توټ) |
| ۱۲ | حاشیه | له ۲ه حالنامه | ........ | ۲۹ | حاشیه ۲ | ورو ستے | دَ وروستی |
| ۱۳ | ۸ | غوان | نمودن | ۳۲ | ۵ | دعوی | دعوې |
| ۱۴ | ۱۱ | لوستونکیو | لُستونکیو | ۳۲ | ۱۲ | وقدرت داری وحمدی | زیاتی ده |
| ۱۶ | ۲۱ | پهٔ پاره | پهٔ باره | ۳۳ | ۱۱ | غالب هر | غالب دے هر |
| ۱۷ | ۲ | پهٔ بارهٔ کښې دومره ...... دَ خیرابیات | جمله دوه څله لیکلے شوې ده - | ۳۴ | حاشیه | ص - | ص - سهٔ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۶ | ۱۰ | داغېر | داغېرثبوت | ۷۰ | ۳ | امداد | احداد |
| ۳۶ | اخري | کانو | کوټو | ۷۰ | ۱۵ | (پهٔ سرمه | (پهٔ سربه |
| ۳۷ | ۱۸ | دَ دوين | دَ دوبين | ۷۱ | ۶ | کښې دا حکم.... | کښې مودا حکم... |
| ۳۸ | ۱۵ | پيدا شوی | پيدا شوے | ۷۲ | ۱۱ | خبره ده | خبره دا |
| ۳۹ | ۲ | رحمه | رحمة | ۷۳ | ۸ | پېش کوی | پېش کوم |
| ۴۰ | اخري | راله | داله | ۷۳ | ۱۲ | دَ شمس اباد کښې | دَ شمس اباد پهٔ |
| ۴۲ | ۹ | دے هرچا.... | دے چې هرچا.... | | | پهٔ رشيد اباد کښې | رشيد اباد کښې |
| ۴۴ | ۸ | اوردوئے | اردوئے | ۷۳ | ۱۶ | "نامنډير" | نامنډراد نانډير |
| ۴۶ | ۲-۴-۶ | امداد | احداد | ۷۳ | ۱۶ | "نامنډېر" | "نانډېر" |
| ۴۷ | ۱۰ | اګرې نهٔ | اګرې نه | ۷۵ | ۳ | هم نهٔ وهٔ | هم نهٔ وهٔ۔ |
| ۴۷ | ۱۱ | سنګهٔ | سنګه | ۷۵ | ۵ | ۱۹۲۶ھ | ۱۹۲۶ ء |
| ۵۲ | ۵-۷ ۸-۸ | امداد | احداد | ۸۱ | ۱۷ | فرق نهٔ دے | فرق نهٔ وے |
| ۵۲ | ۱۵ | اتبار | استاذ | ۸۱ | ۱۴ | دَ وجود ذکر | دَ موجودګۍ ذکر |
| ۵۴ | ۲۱ | ...... پس هم) | پس هم راځي وهٔ) | ۸۳ | ۱۴ | ورسره | ورلره |
| ۵۵ | ۱۵ | ستورې | مستورې | ۸۳ | ۱۲ | بل فهم دے | بل نوم دے |
| ۵۵ | ۱۶-۱۹ | امداد | احداد | ۸۵ | ۱۰ | ورځے | ورځ |
| ۵۶ | ۲ | کړے دے | نقل کړے دے | ۹۰ | ۸ | درک لګېدلے | درک لګېدلے دے له |
| ۵۶ | ۱۲-۱۵ | امداد | احداد | ۹۱ | ۱۵ | وموندے شي چې | وموندے شي |
| ۵۷ | ۲-۳ | امداد | احداد | ۹۱ | ۲۰ | لوستونکی | لُستونکی |
| ۵۹ | ۸ | اخلاقو | اخلافو | ۹۴ | ۷ | نصيحته | نصيحة |
| ۶۰ | ۱۳ | امداد | احداد | ۹۵ | ۱۸ | نوم ورکې رسالې | نوم ورکې رسالې |
| ۶۰ | ۲۱ | پرېږدی عيان | پرېږدې عيان | | | هم۔ | کښې هم۔ |
| ۶۱ | ۱۲ | يشغولی | مشغولی | ۹۵ | حاشيه ۱ | ص ۲۶۶ | ص ۲۹۹ |
| ۶۲ | ۱۳ | نهٔ بلکې | نه بلکې | ۹۵ | 〃 | دَ بردَ کلمات | بروکلمن |
| ۶۴ | ۱۶ | (دَ نجيم دَ عقيدې | (دَ تجسيم دَ عقيدې) | ۹۹ | ۱۳ | ومنقعهما | ومنفقهما |
| ۶۵ | ۱ | خالی ځائې | مسوده ورکه ده | ۱۰۲ | حاشيه ۴ | سروې | خلاصه |
| ۶۷ | ۷ | امداد | احداد | ۱۰۴ | ۱۴-۱۶ | البشتويه | البشتويه |
| ۶۹ | ۶ | خط | خطه | ۱۰۴ | ۱۹ | کړې | کړے |
| ۶۹ | ۱۳ | جهانګيرخان سره دَ...... | جهانګيرخان دَ.... | ۱۰۸ | ۱ | والعدون | والعدوان |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۰۸ | ۱۲ | يعقطون | يعقلون |
| ۱۰۸ | ۱۶ | منځه | منځ |
| ۱۱۱ | ۳ | خواب | خوب |
| ۱۱۴ | ۱۴ | عارف توب | عارف مقرب |
| ۱۱۵ | ۱۲ | اونه دا غلطي | اونهِ دا غلطي |
| ۱۱۶ | ۹ | شعرکښي | شعرکیږي |
| ۱۱۶ | حاشیه ۱ | لهِ فراقه | لهِ قرأته |
| ۱۱۸ | ۱۳ | غلطي | غلطی |
| ۱۲۱ | ۴ | درنظم و تقریر | درنظم تقریر |
| ۱۲۱ | ۱۰ | روایاتو | راویانو |
| ۱۲۵ | ۴ | اودَ عربي..... | اودَ "عربي..... |
| ۱۲۶ | ۱۸ | اورا | اودا |
| ۱۲۷ | ۷ | دې ضمن کښي بناءِ غلطي | دې ضمن کښي چې |
| ۱۲۷ | ۱۵ | اوداد رسالي | اودَ رسالي |
| ۱۳۱ | ۸ | لمحي دَپاره دا رسالة | لمحي دَپاره هم دارسالة |
| ۱۳۲ | ۱۷ | وآنځه وے | وآنچه وے |
| ۱۳۳ | ۸ | ورنجه وے | وآنچه وے |
| ۱۳۳ | ۱۶ | غضب | غصب |
| ۱۳۳ | ۲۱ | پوهه | پوه |
| ۱۳۴ | ۱۷ | توبیر | توپیر |
| ۱۴۰ | ۱۸ | اضافو | اصنافو |
| ۱۴۱ | ۴ | "فرزاندان" | "فرزندان" |
| ۱۴۱ | ۶ | اودَ بایزید | او بایزید |
| ۱۴۱ | ۱۰ | حاظ | حافظ |
| ۱۴۵ | ۱۵ | امداد | احداد |
| ۱۴۵ | ۱۸ | مهم | علم |
| ۱۴۹ | ۱۷ | مقدمه دَاخون درویزه ـ | مقدمه کښي دَ اخون درویزه ـ |
| ۱۴۹ | ۲۰ | اوخوارهٔ کړي دی | اوخوارهٔ کړي دی" |
| ۱۵۱ | ۱ | کښي نه دَ | کښي دَ |
| ۱۵۱ | ۸ | اودَاخون درویزه | اواخون درویزه |
| ۱۵۱ | ۹ | مراتب | مرتب |
| ۱۵۲ | ۸ | "فقر" | فقیر |
| ۱۵۲ | ۱۲ | معلوم بار | معلوم باد |
| ۱۵۴ | ۲۱ | یوه لړه | یوه یږه |
| ۱۵۵ | ۱۶ | بتاج | بتاراج |
| ۱۵۶ | ۲۲ | بآخرہیں | بآخرہمین |
| ۱۵۶ | ۲۱ | خضر | نفر |
| ۱۵۸ | ۳ | لیکونکی | لیکونکے یُ |
| ۱۵۹ | ۴ | شُنَ | شُنَّ |
| ۱۶۰ | ۱۹ | نوپیرچالاک.... | خوپیرچالاک.... |
| ۱۶۴ | ۷ | بوتللے شهِ | بوتللے وهِ |
| ۱۶۴ | ۱۴ | مدعا | ادّعا |
| ۱۶۵ | ۵ | محاصری | محاصري |
| ۱۶۹ | ۲ | بایزید روښان | پیرروښان |
| ۱۷۴ | ۵-۶-۹ | امداد | احداد |
| ۱۷۴ | ۷ | تللی | تللے |
| ۱۷۵ | ۵ | مورخین په | مورخین یُ په |
| ۱۷۶ | ۲۲ | رواح | رواج |
| ۱۷۷ | ۶ | پاکه وینه | پاکه دینه |
| ۱۷۷ | ۱۰ | لکه | ځکه |
| ۱۷۷ | ۱۵ | بلکه | ملکه |
| ۱۷۷ | ۱۷ | تورمل | تودړمل |
| ۱۷۸ | ۳ | دې مخزن | دې دَ مخزن |
| ۱۷۸ | ۴ | دَ تذکرې دَلیکونکی | دَ تذکرې لیکونکی |
| ۱۷۸ | ۵ | یُ بې ضرورته امداد | بې ضرورته احداد |
| ۱۷۸ | ۷ | نه وه | نه دهٔ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۷۹ | ۴ | مرحوم | محترم | ۳۳۹ | ۱ | بنوری ص | بنوری ص۱۴۶ |
| ۱۷۹ | ۱۳ | سید سیف الرحمٰن | سیف الرحمٰن سید | ۳۳۹ | ۱۲ | امداد | احداد |
| ۱۷۹ | ۱۷ | شکرے | شکریئ | ۳۴۱ | ۱۰ | حُمنو | حُمند |
| ۲۹۷ | نوټ نمبر۳۹ | —— | تصحیح دَ "سبحان | ۳۴۲ | ۱۳ | سید سیف الرحمٰن | سیف الرحمٰن سید |
| | | | الله" اخرکښي | ۳۴۲ | ۱۴ | سرراس | سن راس |
| | | | وګورئ | ۳۴۲ | ۴(۲) | ارعون | ارغون |
| ۲۹۸ | نوټ نمبر۴۶ | "مرامی" | "مردِ امی" | ۳۴۵ | ۴ | شترنه ص | شترنه ص۷۵ |
| ۳۳۴ | اخری | ۳۳۴ | ۳۳۵ | ۳۴۷ | ۱۴ | دیوان ص | دیوان ص۱۴۷ |
| ۳۳۵ | ۱ | داکتاب واجیددے | جمله دوه حُله | ۳۴۸ | ۱۳ | کلیات خوشحال ص | کلیات خوشحال ص۱۷۰ |
| | | شلوک "پهځایٔ | لیکلي ده۔ | ۳۴۸ | ۱۵(۲) | لینکوبج سروس | لنګوستک سروے |
| ۳۳۵ | اخری | ۳۳۵ | ۳۳۴ | ❊ | ❊ | ❊ ❊ ❊ | ❊ ❊ ❊ |

۲۹۷ نوټ نمبر۳۹ کښي دَ "عیان" نه پس دا عبارت ولولئ۔

خوهرکله چې دَ فارسی دَ ترجمې نه پس دا ایت "کلّ شئٍ عندهٗ بمقدارٍ" او دَ پښتو دَ ترجمې نه پس "انا کل شئٍ خلقناهُ بقدر" لیکلے شوے دے نو یا خو دا دَ خیرالبیان بل "قرأت" دے او یا پرې زما دَ رائې مزید تائید کیږی چې چاپ شوے خیرالبیان دَ اصل خیرالبیان تفسیر دے۔

---